# تفسیر ایوبی حنفی

تالیف

علامۃ العصر وحید الدہر ابو الفضل مولانا محمد عبد اللہ الایوبی
القندھاری العلیا خیلی الحنفی النقشبندی عفی عنہ

الناشر
مکتبۃ القراءۃ والتجوید
کاسی روڈ شالدن کوئٹہ

بسم الله الرحمن الرحیم

په پښتوژبه کښې اولنی او په افغاني تاریخ کښې بې ساری په زرګونو جدیدو مسئلو باندي مشتمل

# تفسیر ایوبي حنفي

أُتْلُ مَآ أُوحِيَ (۲۱) ❀❀ وَمَنْ يَّقْنُتْ (۲۲)

تالیف او تصنیف

د علامة العصر ابو الفضل شیخ التفسیر والحدیث فقیه دوران مفسر الزمان

## حضرت مولانا محمد عبد الله الایوبي

الکندهاري السلیمانخیلي الحنفي النقشبندي حفظه الله تعالی

مکتبة القراءة والتجوید
کاسي روډ شالدره کوټه

# د کتاب پېژندنه

د کتاب نوم.................. تفسیر ایوبي پښتو ځوارلسم ټوک
مفسر.................. الحاج مولنا محمد عبید الله الایوبي الکندهاري
السلیمانخیلي الحنفي حفظه الله تعالی بفضله الوهبي
کمپوزر.................. حبیب الحق حقاني
ټایپ.................. حقاني کمپیوټر اداره
نشر کوونکې اداره.......... مکتبة القراءت والتجوید کاسي روډ کوټه
د چاپ ځای.............. لاهور پاکستان

# یو نظر دې خوا

هیڅ یو مسلمان هم په قرآن مجید، احادیثو یا د فقهي په کتابو کي په قصده سره غلطي نه کوي، زموږ اداره تر خپله وسه پوري د کتابو تر لیکلو وروسته تصحیح ته زیاته پاملرنه کوي، چي له دې کبله زموږ کتابونه معیاري دي، خو بیا هم بنده بنده دی، یو نه یو ځای څه ناڅه غلطي په املاء کي یا په یوه جمله کي ځني صادره سي، نو زموږ د ټولو ناظرینو څخه دا خواست دی چي که ستاسي تر نظر داسي غلطي تېره سي لطفاً زموږ سره تماس ونیسئ، تر څو د کتاب د دوهم وار په چاپ کي د هغې تېروتنې اصلاح وسي.

په درناوي ستاسي ورور شمس الحق شمس

بسم الله الرحمن الرحيم



الطبعة الاولى

١٤٣١ هجري - ٢٠١٠ ميلادي

مكتبة القراءة و التجويد

شارع كانسي كوئته - بلوچستان

رقم الهاتف ٠٣٠٠٣٨٨٥٥٣٥

MAKTABTUL-QIRRAT WALTAJWEED
KANSI ROAD QUETTA
BALOCHISTAN

ISBN 2-7451-3140-0



اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ وَكَفٰى وَالصَّلٰوةُ وَالسَّلَامُ عَلٰى خَيْرِ الْوَرٰى

**وبعد:** محترمو لوستونكو! تاسو په دې حقيقت ښه خبرياست، چې دافضل الانبياء ﷺ راليږنه الله تبارك وتعالى د تولي نړۍ او ټوله عالم لپاره كړې ده.

او نبي كريم ﷺ اخيري نبي او استازى دى، نو دا دين به و مختلفو قومونو، مختلفو ژبو ويونكو، او مختلفو سيمو ته د دنيا څوك رسوي؟ د دې ځواب خپله نبي كريم ﷺ په خپلو مباركو ويناوو كښي فرمايلي دى، فرمايي: اَلْعُلَمَاءُ وَرَثَةُ الْأَنْبِيَاءِ. له انبياء كرامو څخه په ميراث كي سره او سپين زر نه دي پاته سوي، بلكې له هغوى څخه علم په ميراث پاته سوى دى.

نو معلومه سوه چې علماء كرام د انبيا كرامو عليهم السلام وارثين دي، او دوى به د آنحضرت ﷺ دا دين و خپلو قومونو ته رسوي، دا خبره هم تر لمر روښانه ده چې هر څوك پخپله مورنۍ ژبه باندې تر نورو ژبو ډېر ژر او په ډېره اسانه طريقه سره پوهېږي، او كوم مقصد او كومه

موخه چي دی له خپلي ژبې څخه اخستلای سي،
کېدای سي چي دی دي د نورو ژبو له کتابونو
څخه هغه مقصد وانه خلي، نو ځکه مفسر وخت
حضرت العلامة شيخ التفسير والحديث استاذ كل الحاج **مولانا محمد عبيدالله** الايوبي القندهاري صاحب د خپلو هيواد والو مسلمانانو د فائدې لپاره د معتبرو تفاسيرو څخه دا يوه علمي ذخيره په نامه د تفسير ايوبي حنفي. په خپله خوندوره او مورنۍ ژبه پښتو کښي وليکی. چي دادی څوارلسم ټوک چي پکښي يوويشتمه او دوه ويشتمه پاره ترتيب سوې ده ستاسي په لاسونو کښي دی.

مکتبه القرائت والتجويد په دې وياړ چي د قرآن مجيد ودې ستر خدمت ته يې ملا ترلې ده او د تجويد د کتابونو سره سره يې د علم تفسير، علم فقه او علم عقائد کتابونه هم چاپ ته سپارلي دي.

ستاسي د دعاؤ په هيله چي تر څو د حضرت ايوبي قلم نور هم ګړندی او صحت يې نور هم مخ په وړاندي سي.

والسلام

قاري فضل الحق حقاني
تلميذ حضرت ايوبي رباني مكتبة القرائت والتجويد

تفسير ايوبي حنفي د نصيراحمد احمدي لخوا سکين او pdf سو. د دعا محتاج احمدي! واتساپ ۰۷۴۹۸۴۹۵۶۹

بسم الله الرحمن الرحيم

اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعَالَمِيْنَ وَالصَّلٰوةُ وَالسَّلَامُ عَلٰى سَيِّدِ الْاَنْبِيَآءِ وَالْمُرْسَلِيْنَ.

وَعَلٰى آلِهٖ وَصَحْبِهٖ اَجْمَعِيْنَ.

درویش ابو الفضل الایوبي محمد عبید الله الکندهاري وایي چي ورځ د چهارشنبې وخت د څاښت، (۱۹) د میاشتې د صفر الخیر (۱۴۳۱) هجري قمري وُ چي ما په خپله حجره کي څلور رکعته د څاښت لمونځ شکرانه د توفیق د خدای ﷻ په شروع د تفسیر د یوویشتم (۲۱) جزء وکړه، په امید دې چي خدای ﷻ ما عاصي ته توفیق راکړي د تفسیر د (۲۰) جزء د قرآن عظیم هغه زما بادار کریم مهربان دی ماته به توفیق راکړي د تفسیر د (۲۱) جزء د قرآن بلکې د تفسیر د بقیه اجزاء د قرآن عزیز: اِنَّهٗ تَعَالٰى عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ وَبِالْاِجَابَةِ جَدِيْرٌ.

**فقیر وایي:** چي دا زېبا نوم د تفسیر القرآن که څه هم زما عاصي جهول له حال سره لائق نه دی، لکن قادر متعال جلت قدرته وتعالی شانه زما په زړه او دماغ کي دا سودا پیدا کړې وه چي په توکلت علی الله سره دا تفسیر کوه، اهل السنة والجماعة وایي چي خالق د افعالو د بندګانو خدای ﷻ دی، زه په دې تفسیر سره فخر نه کوم. ولي هغه حدیث صحیح ماته معلوم دی (ان الله قد یؤید هذا الدین بالرجل الفاجر) که رجل فاجر زه نه یم په مسلمانانو کي نو به څوک وي؟

**التجاء:**

الهی یا الهی یا الهی .......... ندارم جز امیدت تکیه گاهی
زکن موجود کردی جمله عالم .......... مرا از ذنب خود عذر خواهی
ندارم طاعت مقبول درگاه .......... بجز اشک ندامت آه آهی
ندارمت توشه راه قیامت .......... بجز شرمندگی و آه آهی
شفیع آورده روی محمد .......... کرم کن بر من گم کرده راهی

# أُتْلُ مَآ أُوْحِيَ إِلَيْكَ مِنَ الْكِتٰبِ

ته يا محمد تلاوت كوه (تلاوت د قرآن عظيم الشان قرائت ته وايي كه پر هره طريقه د هميشه توب وي) نو مراد له دې آيت څخه دادی چي ته يا محمد (ﷺ) قرائت كوه د هغه شي چي تاته يې وحي كړل سوي دي يعني من جانب الله تعالى من الكتاب اى القرآن الكريم لپاره د تقرب و خداى ﷻ ته، او لپاره د تحفظ د عباراتو د قرآن او لپاره د فكر وهلو په معانيو كي د قرآن، علماء كرام وايي چي د سړي چي معاني د قرآن زده وي، نو هر څو واره چي مكرر قرائت وكړي په هر وار كي نوي فائدې ورته كشف كېږي چي په مخه وار نه دي ورته كشف سوي.

او بل د دې لپاره ته تلاوت د قرآن كوه چي د خلكو لپاره به تبليغ وكړځي، او بل خلك پر عمل باعثه كوه يعني على عمل بما في القرآن من الاحكام.

**حكايت**: د امير المؤمنين عمر فاروق رضي الله عنه په دور كي د خلافت يوه سړي چي غلا يې كړې وه ورته راوستل سو، حضرت عمر رضي الله عنه د قطع اليد امر ورته بيان كړى او دا غل جاهل ؤ په احكامو سره د قرآن، نو هغه غله ورته وويل چي ته زما لاس ولي راپرېكوي؟ عمر رضي الله عنه ورته وويل چي په امر د خداى ﷻ په قرآن كي، هغه سړي ورته وويل چي ته ماته تلاوت د قرآن وكړه؟ يعني هغه ځاى چي د غله د قطع اليد ذكر پكښې وي، عمر رضي الله عنه وويل: أَعُوْذُ بِاللهِ مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيْمِ: اَلسَّارِقُ وَالسَّارِقَةُ فَاقْطَعُوْا أَيْدِيَهُمَا جَزَآءً بِمَا كَسَبَا نَكَالاً (اَىْ عَذَابًا) مِّنَ اللهِ. وَاللهُ عَزِيْزٌ حَكِيْمٌ. غله ورته وويل چي دا آيت ما تر اوسه نه ؤ اورېدلى، كه مي اورېدلى واى نو به مي غلا نه كولاى، نو عمر رضي الله عنه د قطع اليد حكم پر جاري كړى يعني په جهل يې دى معذور او معاف نه وګرځاوه لان الجهل ليس بعذر مسقط للاحكام الشريعة.

**فائده**: له حضرت علي رضي الله عنه څخه روايت دى چي څوك چي تلاوت د قرآن كريم په لمانځه كي په ولاړه سره وكړي په هر حرف سره سل (۱۰۰) نېكى ورته نوشته كېږي، او كه يې خارج الصلوة په اوداسه سره قرائت وكړي، نو پر هر حرف پنځه ويشت (۲۵) نېكى ورته نوشته كېږي، او كه يې خارج الصلوة بې اوداسه ووايه (يعني بېله مس المصحف، ولي مسه المصحف شريف بېله اوداسه حرامه ده، كريمه: لَا يَمَسُّهٗ إِلَّا الْمُطَهَّرُوْنَ، نو لس (۱۰) نېكى ورته نوشته كېږي.

# وَاَقِمِ الصَّلٰوةَ ؕ اِنَّ الصَّلٰوةَ تَنۡهٰى عَنِ الۡفَحۡشَآءِ وَالۡمُنۡكَرِ ؕ

چونکه امر لپاره د وجوب دی، نو مراد له صلوة څخه صلوات مفرضه دي (او معنی د اقامة الصلوة په اتفاق د مفسرينو دوام د لمونځو دی چي په قصد دي فرضي لمونځونه نه قضاء کوي. ولي کبيره ګناه ده بالاجماع) په تحقيق سره لمونځ مصلي منع کوي له زنی څخه او له منکر في الشرع کارو څخه.

**پوښتنه**: امر د اقم الصلوة خو خطاب و عليه الصلوة والسلام ته ؤ، او په عليه الصلوة والسلام کي فحشا، او منکر متصور نه دي للعصمة؟

**ځواب**: سيد محمود آلوسي رح وايي چي صلوة مشتمل وه پنځو سرو لمونځو ته چي په جماعت به اداء کېږي. نو امر د عليه الصلوة والسلام په اقامت سره متضمن دی امر لره د امت په اقامت سره، نو تعليل په ان الصلوة تنهی آه صحيح دی. نو په امت کي خو فحشاء او منکر متصور دي، نو ګويا عليه الصلوة والسلام ته داسي وويل سول: صل بهم ان الصلوة تنهاهم ای الامة عن الفحشاء والمنکر. ولي چي په لمانځه کي قسم عبادات سته من اعمال القلب کالخشوع و حضور القلب واعمال اللسان کالتسبيح والتکبير والقرائة واعمال الجوارح کالرکوع والسجود له سبحانه تعالى الدالة على غاية التعظيم (يعني السجدة) والقيام بين يدي الله، نو چي پنځه لمونځونه څوک په دغه ترتيب على الدوام کوي نو هغه به فحشاء او منکر نه کوي.

**فائده**: دا جمله يعني ان الصلوة تنهٰى آه، تعليل دی د امر بالصلوة او فحشاء ماظهر قبحه شرعًا وعقلاً کالزنٰى واللواطة وغيرهما او منکر هغه کار ته وايي چي په حکم کي د شريعت منهي عنه وي. کذا في الوسيط.

بغوي رح په روايت د حضرت انس رضي الله عنه وايي: چي يو ځوان ؤ له انصارو څخه چي پنځه سره لمونځونه يې د رسول الله ﷺ سره په جماعت کول. او دغه ځوان هيڅ شی له فواحشو څخه نه پرېښو کاوه به يې، يو چا و عليه الصلوة والسلام ته د دې ځوان حال بيان کړی، فقال رسول الله ﷺ ان صلوته تنها يومًا (لمونځونه دده به دی منع کړي له فحواشو څخه يوه ورځ) فلم يلبث ان تاب وحسن حاله (ده څنګه

ونه کړی چي توبه يې له فواحشو څخه وکښل او حال يې ښه سو. او په مسند کي د اسحاق او بزار او ابو یعلی رحمهم الله څخه په روایت لـه ابو هريره رضي الله عنه چي يو سړی وه نبي کریم ﷺ ته راغلی چي فلانی سړی د شپې تهجد کوي، چي ورځ سي بيا غلا کوي، قال علیه الصلوة والسلام ان صلوته تنهاه (یعني فکان کما قال رسول الله ﷺ) بغوي رحمه الله وايي چي ابن عباس او ابن مسعود رضي الله عنهما وايي: في الصلوة منتهی ومزدجر عن المعاصي فمن لم تامره صلاته بالمعروف ولم تنهه عن المنکر لم يزدد صلاته من الله الا بعداً، او بعض مفسرين وايي چي مراد له صلوة څخه قرآن کریم دی کما في قوله تعالی ولاتجهر بصلاتک یعني بالقرآن في الصلوة ولاشک ان القرآن ينهى عن الفحشاء والمنکر، ورته روايات په منع کي د لمونځو د فحشاء او منکر څخه نور هم راغلي دي.

**درويش وايي**: چي دغه واقعاتي چي تاسي واورېدلې د عليه الصلوة والسلام د لمانځه برکت وُ. نو چونکه قرن د صحابه کرامو رضي الله عنهم افضل القرون وُ شايد په دغه عصر او قرن کي به نوري داسي واقعاتي رونما سوي وي چي مصداق د ان الصلوة تنهٰی عن الفحشاء والمنکر وي، او عصر د تابعينو چي د خير القرون دويمه برخه ده او د تبع تابعين چي د خير القرون درېيمه برخه ده هم په سبب د قرب الزمان وقرن اول ته هم ورته واقعاتي منځ ته راغلي وي، لکن پوښتنه داده.

**پوښتنه**: په وروسته زمانو کي داسي خلک ډېر دي چي پنځه وخته لمونځ په جماعت کوي لکن د مرګ تر وخته په ګوم بد کار چي دوی مبتلی وي هغه نه پرېږدي، حتی الخواص چي بعض علماء د امت مرحومه په ګناه د رياء، کبر، بهتان، حب الدنيا، غيبت، بيله جوازه شرعي زکوة اخستل الی غير ذالک د مرګ تر ساعته په دغه کبيره ګنهو اخته وي، نو د دوی لمونځونو ولي دوی منع نه کړه له فحشاء او منکر څخه؟

**ځواب**: روح البيان وايي چي د دغو کسانو لمونځ حقيقةً لمونځ نه دی، ولي حقيقةً لمونځ هغه دی چي په کامل حضور قلبي او خشيت د خدای جل جلاله ادا کړل سي، او علامه بغدادي رحمه الله ډېر معقول او په زړه پوري جواب ددې اشکال ورکړی دی، دی وايي چي مضمون د آيت کريمه يعني ان الصلوة تنهٰی عن الفحشاء

والمنکر خو دا دی چي لمونځ سړی منع کوي د فحشاء او منکر څخه لکن نهي خو انتهٰی یعني د سړي نه دی مستلزم نه دی، عرب وايي: نهيت فلانًا فلم ينته، دی وايي چي مبنی د سوال پر توهم دی چي نهي انتها لره مستلزم دی وهو توهم باطل وتخييل عاطل لايشهد له عقل ولا يؤيده نقل، بل النقل يخالفه ويناقضه، قال الله تعالی ان الله يامر بالعدل والاحسان وايتاء ذی القربٰی وينهٰی عن الفحشاء والمنكر والبغي آه مع ان الناس لاينتهون بمقتضٰی هذه الآية عن الفحشاء والمنكر والبغي او سره ددې چي نهي د لمانځه خو اعلٰی رتبهٌ نه دی تر نهي د باري ﷻ، انتهٰی مع الزيادة قليلة په پښتو ژباړه.

وَلَذِكْرُ اللّٰهِ اَكْبَرُ ط

**پوه سه**: چي مراد له ذکر الله څخه لمونځ دی والمعنی ان الصلوة اکبر من سائر الطاعات وفي الحديث الصحيح ان الصلوة عماد الدين فمن اقامها فقد اقام الدين ومن هدمها فقد هدم الدين.

**پوښتنه**: تعبير له لمانځه څخه په ذکر سره د څه حکمت لپاره وکړل سو؟

**ځواب**: لپاره د تنبه پر دې چي ذکر الله عمدة دی په لمانځه کي لکه په هغه آيت کي د جمعې د لمانځه په باره کي راغلی دی هم له لمانځه څخه په ذکر سره کړی دی يعني فاسعوا الی ذکر الله، ای الی صلوة الجمعة لان ثواب ذكر الله من جانب العبد ذکر الله للعبد کريمه: فاذكروني اذكركم، تاسي ما يادوئ زه به تاسي يادوم.

الاحاديث الواردة في فضيلة الذکر: احمد رحمه الله روايت کړی دی په کتاب الزهد کي او ابن المنذر د معاذ بن جبل رضي الله عنه څخه، ده وويل ما عمل آدمي عملاً انجٰی من عذاب الله تعالی من الذكر (نه دی کړی يو انسان يو عمل چي ښه نجات ورکوونکی وي له عذاب څخه د خدای ﷻ تر ذکر) قالوا ولا الجهاد في سبيل الله؟ (يعني جهاد في سبيل الله هم نه دی ورسره برابر؟) قال ولا ان يضرب بسيفه حتی ينقطع لان الله تعالی يقول في کتابه ولذکر الله اکبر، واخرج ابن ابی شيبة وابن جرير عن ابی الدرداء رضي الله عنه، قال الا اخبرکم بخير اعمالكم واحبها الی مليككم؟ (معاذ رضي الله عنه وويل چي زه دا سي عمل نه درو ښيم چي ستاسي تر ټولو عملو خير وي او محبوب وي ستاسي وباداړ ته) واسماها في درجاتكم (او لوړونکی ستاسي په درجو کي) وخير من ان تغزوا

عدوكم فيضربوا رقابكم وتضربوا رقابهم وخير من اعطاء الدنانير والدراهم (او هغه عمل خير وي تر دې چي تاسي غزا کوي د دښمن سره هغه دښمن ستاسي غاړي پرې کوي او تاسي د هغو غاړي پرې کوئ، او خير ويي تر ورکړي د دينارو او د درهمو يعني في سبيل الله) قالوا وماهو يا ابا الدرداء؟ (خلکو ورته وويل چي هغه نو کوم عمل دی ای ابو الدرداء) قال ذکر الله ولذکر الله اکبر. يعني دا آيت يې دليل د خپلي مدعٰی وګرځاوه، واخرج ابن جرير عن سلمان الفارسي ﷺ چي له ده څخه پوښتنه وکړل سوه اى العمل افضل؟ سلمان ﷺ ورته وويل چي تا قرآن نه دی ويلی يعني ولذکر الله اکبر، اخرج سعيد بن منصور وابن ابى شيبة وابن المنذر والحاکم في الکنى والبيهقي في شعب الايمان عن مغيرة ﷺ قال قلت لابن عباس ﷺ اى العمل افضل؟ قال ذکر الله اکبر، الحديث، وعن ابى سعيد الخدري ﷺ عن رسول الله ﷺ چي له رسول الله ﷺ څخه چا پوښتنه وکړه اى العباد افضل وارفع درجة عند الله (کوم يو د بندګانو بهتر دی او په درجه بالا دی په نيز د خدای ﷻ) قال ؑ الذاکرون الله کثيرًا والذاکرات (يعني نر چي د خدای ﷻ ذکر ډېر کوي او هغه ښځي چي د خدای ﷻ ذکر ډېر کوي) چا ورته وويل تر غازي في سبيل الله هم افضل او ارفع درجة دی؟ قال ؑ لو ضرب بسيفه الکفار حتى تنکسر وتخضب دمًا (عليه الصلوة والسلام ورته وويل که وهي په توره سره خپل کافران حتى چي توره يې ماته سي او په وينو ککړه سي) لکان الذاکرون لله کثيرًا، افضل درجةً منه، رواه احمد والترمذي، او له عبد الله بن بسر ﷺ څخه روايت دی چي يو صحرائي و عليه الصلوة والسلام ته راغلی او ده وويل اى الناس خير؟ (کوم يو له خلکو څخه خير دی) عليه الصلوة والسلام ورته وويل) طوبٰى لمن طال عمره وحسن عمله (خوشحالي ده هغه چا لره چي عمر يې دراز وي او عمل يې ښه وي) قال يا رسول الله ﷺ اى الاعمال افضل؟ قال ؑ ان تفارق الدنيا ولسانک رطب من ذکر الله، رواه احمد والترمذي (چي ته جلا کېږې له دنيا څخه يعني مرې او ستا ژبه لنده وي په ذکر سره د خدای ﷻ) وعن ابى موسٰى ﷺ قال قال رسول الله ﷺ مثل الذي يذکر ربه والذي لايذکر ربه مثل الحي (يعني الذاکر ربه) والميت (يعني الذي لايذکر ربه) بخاري مسلم.

**درویش وایي:** چي امثال د دغو حدیثو په باره کي د ذاکرون الله نهایت ډېر دي بعض طویل بعض کثیر دي، وفیما اوردناه کفایة لمن اعطاه الله البصیرة في الدین.

وَاللّٰهُ يَعْلَمُ مَا تَصْنَعُوْنَ ﴿۴۵﴾

او خدای پاک خبر دی او علم لري چي تاسي یې عمل کوئ یعني نو به جزاء د خیر او شر درکړي په ورځ د قیامت، کریمه: فمن یعمل مثقال ذرة خیرًا یره (ای ثوابه) ومن یعمل مثقال ذرة شرًا یره (ای عقابه ان شاء)

وَلَا تُجَادِلُوْٓا اَهْلَ الْكِتٰبِ اِلَّا بِالَّتِيْ هِيَ اَحْسَنُ ۖ

تاسي خصومت مه کوئ، والمخاطب رسول الله ﷺ والمؤمنون.

**بوه سه:** چي په تاج المصادر کي وایي المجادلة پیکار سخت کردن بایک دیگر، او راغب اصفهاني وایي المجادلة المفاوضة، یعني بحث کول یو له بل سره د منازعت او مغالبت پر طریقه.

**بوه سه:** چي دا جمله عطف ده پر اقم الصلوة آه، من عطف الانشاء على الانشاء.

اَهْلَ الْكِتٰبِ: یعني الیهود والنصارى (اِلَّا بِالَّتِيْ هِيَ اَحْسَنُ) مگر نه په هغه خصلت سره (نو ځکه یې التي مؤنث راوړی) چي هغه ښه خصلت وي یعني بالقرآن والدعوة الى الله بآیاته والتنبیه على حججه، او یا معنی داده چي هغه احسن د کافرانو تر فعل و رسره کوه مثلاً که هغو په خبرو کي ځیږوالی کاوه تاسي نرمي ورته کوئ، او که یې په غضب خبري کولې تاسي یې نوشوئ چي کظم یې بولي په عربي، او که هغه مشاغبه کوله ناحقه بحث یې کاوه، تاسي نصیحت ورته کوئ. نو پر دې تقدیر استثناء منقطع ده لان اللین والکظم والنصح لیس بمجادلة.

اِلَّا الَّذِيْنَ ظَلَمُوْا مِنْهُمْ

مگر نه هغه کسان چي ظلم یې کړی وي له دوی څخه.

**درویش وایي:** چي سعید بن جبیر رض وایي چي اهل الحرب مستثنی دي یعني د هغو سره دي حسن مجادلة نه کوي بلکې قتال بالسیف دي وسره وکړي تر هغو چي دوی اسلام راوړي یا جزیه ورکوي په خپل لاس، نو دا آیت محمول دی پر غلظة

باللسان والسيف والسنان وعلى هذا حمله صاحب روح البيان، لكن روح المعاني وايي چي دا آيت خو مكي دی لكون هذه السورة مكية او قتال بالسيف او اخذ الجزية من اهل الكتاب خو په مدينه منوره كي بعد الهجرة مشروع سوي ده. نو بناء على هذا روح المعاني او مظهري او بيضاوي ددې آيت داسي ترجمه كوي چي ددې آيت د استثناء معنى داده چي حسن المجادلة چي په دمخه آيت كي راغلې وه، نو د الا الذين څخه مراد هغه كسان دي چي افراط په ظلم او عناد كي كوي او دا وايي چي خداى ﷻ لره ولد سته، او يا وايي ان يد الله مغلولة، او يا وايي چي ان الله فقير ونحن اغنياء لكه يهودانو چي به ويل، نو د آيت معنى داده چي د داسي مفرط اهل كتابو سره حسن مجادله مه كوئ بلكې په ډېر غلظت سره خبري ورسره كوئ، نو پر دې تقدير مقاتل او قتاده وايي چي دا آيت منسوخ دی په آية السيف سره چي امر د جهاد دی چي په مدينه منوره كي نازل سوی دی يعني غلظت په بحث كي كافي نه دی د اهل كتابو لپاره بلكې ددوی سره جنګ په توره كوئ چي يا اسلام راوړي او يعطوا الجزية عن يد وهم صاغرون فافهم.

**وَقُولُوٓا ءَامَنَّا بِٱلَّذِىٓ أُنزِلَ إِلَيۡنَا وَأُنزِلَ إِلَيۡكُمۡ**

او تاسي وايا ست ايها المؤمنون، ايمان راوړی دی موږ يعني بالصدق والاخلاص پر هغه كتاب چي نازل سوی دی پر موږ يعني القرآن العزيز او پر هغه كتاب چي نازل سوی دی پر تاسي يعني من التورات والانجيل.

**درويش وايي:** چي ددې آيت تفسير مفسرين دوه قسمه كوي (١) دا بيان دی د حسن مجادلة (٢) دا چي يهودانو او نصاراوو به د تورات او انجيل بعض آيتونه مسلمانانو ته په عربي ترجمه كول، نو عليه الصلوة والسلام مسلمانانو ته وويل، لاتصدقوا اهل الكتاب، تاسي تصديق مه كوئ د اهل كتاب، يعني فيما تقولوه اليكم بالعربية، ولي اهل كتابو په تورات او انجيل كي بعض آيتونه د خپله خانه درج كړي دي لاغراضهم الفاسدة، يعني هغه آيتونه درته رانقل كړي يې نه وي نو تصديق د هغو خو كفر دی، ولاتكذبوهم، او مه يې تكذيب كوئ، ولي چي شايد دوی به هغه واقعي آيتونه درته رانقل كړي وي، نو بيا خو يې تكذيب كفر دی، بل قولوا آمنا الآية.

**پوښتنه:** تصديق او تکذيب به نقيضين نه وي، چي ارتفاع د نقيضين خو روا نه ده؟

ځواب: لا! نقيضان نه دي، ولي دواړه مفهومه وجود لري او يو د بل عدم نه دی يعني داسي نه ده چي تصديق عدم التکذيب دی يا تکذيب عدم التصديق دی حتی يکونان نقيضين، ولي واسطه په منځ کي د تصديق او تکذيب سته وهي ان تقولوا امنا آه، يعني دا خو نه تصديق او نه تکذيب دی.

**فائده:** که داس شی دوی رانقل کړي چي کذب يې يقيني ؤ، بيا تکذيب روا بلکې واجب دی. لکه يهودان چي وايي چي په تورات کي سته چي دين د موسٰی ؑ به ابدي وي يعني نسخ يې نسته. او يا دوی وايي چي موږ عيسٰی ؑ قتل کړی. کريمه: وما قتلوه وما صلبوه ولكن شبه لهم. او يا نصاری وايي چي عيسی ابن الله دی. او نور ورته خبري کوي چي دد خبرو تکذيب لازم دی. او که دوی نه قانع کېدل يا مباهله ورسره وکړئ يا قولوا آمنا بالذي آه. ورته ووايا ست.

وَإِلَٰهُنَا وَإِلَٰهُكُمْ وَاحِدٌ وَنَحْنُ لَهُ مُسْلِمُونَ ﴿٤٦﴾

زموږ خدای او ستاسي خدای يو دی، او موږ مطيعين يو د خپل خدای خاصة يعني لا لغيره.

**درويش وايي:** چي روح البيان او روح المعاني او امام رازي رح او مظهري رح وايي چي په دې آيت کي تعريض دی پر اهل کتابو كما حكى الله تعالى عنهم في آية اخرى في موضع آخر، اتخذوا احبارهم ورهبانهم اربابًا من دون الله الآية. له ابو نملة انصاري رض څخه روايت دی چي زه ناست وم په مجلس کي د رسول الله ﷺ چي يو سړی د يهوانو ورته راغلی په داسي حال کي چي يوه جنازه تېرېدل، نو هغه يهودي ورته وويل يا محمد (ﷺ) انها يتكلم دا جنازه والا مړی خبري کوي. فقال رسول الله ﷺ ماحدثكم اهل الكتاب لا تصدقوهم ولا تكذبوهم، وقولوا آمنا بالله وكتبه ورسله. فان كان باطلاً (يعني دروغ وه) لم تصدقوا هم (تاسي يې تصديق ونه کړئ) وان كان حقًا (که رشتيا وه) تاسي يې تکذيب ونه کړئ.

وَكَذَٰلِكَ أَنزَلْنَا إِلَيْكَ الْكِتَابَ ۚ

او داغه رنګه لکه چي موږ نازل کړي تر تا د مخه انبياء عليهم السلام باندي کتابونه

يعني په ذريعه د وحي چي تصديق کونکی دی ستا کتاب د دمخه کتابو لکه په دې وروسته آيت کي چي به راسي.

فَالَّذِيْنَ اٰتَيْنٰهُمُ الْكِتٰبَ يُؤْمِنُوْنَ بِهٖ ۚ

پس هغه کسان چي موږ ورکړی دی دوی ته کتاب.

**پوه سه**: چي مراد له الذين آه يا مؤمنين د اهل الکتاب دي لکه عبدالله بن سلام رض و امثاله، او يا معنی د آيت داده چي الذين آتيناهم الکتاب، ټولو ايمان درلودی پر کتاب د محمد ﷺ لکن دمخه تر بعثت د نبي ﷺ، کريمه: فلما جائهم ما عرفوا کفروا به الآية، له سببه د عناد او لپاره د مراعات د خپل جاه و جلال او د طلب د اموالو د خپلو سفله وو څخه.

**فائده**: بعض مفسرين وايي چي پر تقدير د دې چي مراد د الذين آتيناهم الکتاب مثل د عبدالله بن سلام رض سي، نو که څه هم سورت مکي دی لکن دغه آيتونه مدني دي، ولي چي اسلام د عبدالله بن سلام رض خو په مدينه منوره کي ؤ، والله اعلم، او هغه چي بعض کسان وايي چي په مکه مکرمه کي خدای ﷻ عليه الصلوة والسلام خبر کړی ؤ په دې سره چي په مستقبل کي به پر تا ايمان راوړي اهل کتاب بعيد جداً.

وَمِنْ هٰٓؤُلَآءِ مَنْ يُّؤْمِنُ بِهٖ ۭ

او بعض د دې کسانو څخه هغه دي چي ايمان به راوړي پر قرآن (نو کلمه د من د تبعيض لپاره ده او مراد له هؤلاء څخه يا اهل مکه دي يا مطلق عرب دي يا هغه کسان دي چي په عصر نبوي کي موجود وه من اهل الکتابين التوراة والانجيل.

وَمَا يَجْحَدُ بِاٰيٰتِنَآ اِلَّا الْكٰفِرُوْنَ ۝

او انکار نه کوي له آياتو څخه زموږ يعني آيات القرآن مگر نه هغه کسان چي کافران وي يعني پر کفر مصمم وي او په آياتو کي د قرآن له قلب څخه کار نه اخلي، مراد دادی چي هغه کسان چي قرآن نه مني هغه کسان تورات او انجيل هم نه مني، ولي تورات او انجيل تصديق د قرآن کوي، نو تکذيب د قرآن تکذيب دی د تورات او انجيل هم.

**تفريع:** څوک چې دعوه د ايمان پر تورات او انجيل کوي او قرآن نه مني، نو دعوه د هغه باطله ده، قتاده رح وايي چې د جحود معنی انکار دی وروسته تر معرفت فعرفوا ان القرآن حق وان محمداً ﷺ رسوله لکن جحدوا.

**درويش وايي:** چې اهل اللغة وايي چې جحود نفي ما في القلب اثباته (يعني انکار د هغه شي دی چې په زړه کې د هغه شي اثبات وي) او اثبات ما في القلب نفيه (يا په خوله اثبات د يو شي دی چې په زړه کې نفي وي) په مثنوي کې وايي:

هر کرا مشک نصيحت سود نيست .... لاجرم با بوی بد خو گرد نيست

مغز را خالی کن از انکار يار ........... تا که ريحان يا بد از گلزار يار

وَمَا كُنْتَ تَتْلُوْا مِنْ قَبْلِهٖ مِنْ كِتٰبٍ وَّلَا تَخُطُّهٗ بِيَمِيْنِكَ

ته وې يا محمد (ﷺ) عطف على كذالک انزلنا اليک الکتاب آه، من قبله ای قبل انزال الکتاب اليک (من کتاب) يو کتاب له کتابو څخه کلمه د من لپاره د استغراق د نفي ده، يعني که آسماني کتاب وي او که تاريخي وي لکونه نبيًا اميًا (ولا تخطه بيمينک) نه تا ليکلای سوای يو شی په راسته لاس.

**پوه سه:** چې ذکر د يمين مبني دی پر اغلب او معتاد ولي چې غالب ليکل د خط په راسته لاس سره وي لپاره د احتراز د چپه لاس څخه نه دی يعني چې په چپه لاس دي خط ليکلی سوای، فان الخط بالشمال من ابعد النوادر، او شيعه ګان خذلهم الله وايي چې د عليه الصلوة والسلام دمخه تر نبوت خط زده ؤ چې نبي سو بيا خدای نهي کړی له خط ليکلو څخه.

**درويش وايي:** چې دا قول د شيعه ګانو مخالف دی د ظاهر سره د آياتو د قرآن او د ټولو احاديثو مبارکه وو او د اجماع سره د امت مرحومه قبل هذه الفرقة الضالة.

إِذًا لَّارْتَابَ الْمُبْطِلُوْنَ ۝

که چېري (يعني که قاري وای د کتب متقدمه وو او کاتب وای) نو به شک پيدا کېدای کفارو ته د اهل مکه، ولي دوی به ويلای چې دا چې دی قرآن منزل من عند الله بولي له قسمه څخه د قصص او امثالو دا دي له کتب څخه د تواريخ قديمه وو نقل کوي.

**تنبیه**: کفار مکه یې له دې سببه مبطلین وبلل لکفرهم وعنادهم مع وجود المعجزات المتکاثرة، او بعض مفسرین وایي چي د علیه الصلوة والسلام که خط زده وای، نو اهل کتابو ته به شکل پیدا سوی وای چي دی نبي موعود نه دی، ولي چي نبي موعود ددوی په تورات او انجیل کي د امي په وصف موصوف، نو پر دې تقدیر له مبطلون څخه اهل کتاب یهود او نصاری مراد دي.

## بَلْ هُوَ اٰیٰتٌۢ بَیِّنٰتٌ

(بل هو) ای القرآن آیتونه دي واضح الدلالة پر صدق خپل، کریمه: لَوْ کُنْتُمْ فِیْ رَیْبٍ مِّمَّا نَزَّلْنَا عَلٰی عَبْدِنَا فَاْتُوْا بِسُوْرَةٍ مِّنْ مِّثْلِهٖ الآیة، حسین کاشفي هروي رح وایي: درشک افتادندی تبه کاران وکج روان یعنی مشرکان عرب گفتندی کی چون میخواند ومینویسد، پس قرآن را از کتب پیشینگان التقاط کرده وبر ما می خواند که این وحي آسمانی بمن می آید ومن رسول خدا میباشم، یا جهودان درشک افتادند که درکتب خوانده ایم که پیغمبر آخیر الزمان امی می باشد واین کس قاری وکاتب است، انتهی.

## فِیْ صُدُوْرِ الَّذِیْنَ اُوْتُوا الْعِلْمَ ؕ

په سینو کي یعني په زړو کي د هغه کسانو چي دوی ته ورکړل سوی دی علم، والمراد بالموصول هغه کسان چي مؤمنان وه او قرآن یې په یاد ؤ چي هیڅ چا ته طاقت د تحریف د قرآن نه ؤ.

**درویش وایي**: چي دا دویمه معجزه د قرآن مبارک ده چي له تحریف او تغییر بالزیادة والنقصان محفوظ پاته دی، کریمه: وانا له لحافظون. بلکي تر دې سنه (۱۴۳۱) پوري د قرآن مبارک حافظان ورځ په ورځ ډېرېږي بخلاف الکتب المقدمة فانها لم تکن لها تلک المعجزة ای الحفظ في صدور الذین اوتوا العلم، ځکه علما، د یهودانو د خپل غرض دنیاوي لپاره تحریف د کتاب الله تورات تحریف کاوه، کریمه: یحرفون الکلم عن مواضعها او د متقدمه کتابو تلاوت د مصاحفو څخه کېدی وبس.

وَمَا يَجْحَدُ بِاٰيٰتِنَآ اِلَّا الظّٰلِمُوْنَ ﴿۴۹﴾

او انکار نه کوي له آياتو ځنخه زموږ مګر هغه کسان چي ظالمان دي يعني چي متجاوزين وي تر حد في الشر والمكابرة والفساد، ولي چي آيات د قرآن عزيز معجز دي واضح الدلالة دي پر صدق خپل از روی نظم او معنی فمن جحد بها بعد وضوح اعجازها فهو الظالم المكابر للحق.

وَقَالُوْا لَوْلَآ اُنْزِلَ عَلَيْهِ اٰيٰتٌ مِّنْ رَّبِّهٖ ؕ

او وويل دوی ولي نه نازلېږي پر محمد (ﷺ) معجزات لکه تر ده د مخه انبياؤ باندي چي نازلي سوي وې لکه ناقه د صالح[ع] او عصا د موسیٰ[ع] او مائده د عيسیٰ[ع].

**پوه سه:** چي ''قالوا'' عطف دی پر قال الذين كفروا للذين آمنوا آه، ضمير د قالوا راجع دی و کفارو ته د قريشو په تعليم د بعض اهل الكتاب، وقيل الضمير راجع الى اهل الكتاب.

**پوه سه:** چي اکثره اهل کوفه لفظ د آية مفرد وايي او د جمع قرائت د نافع او ابن عامر چي د بصرې قاريان دي او حفص.

قُلْ اِنَّمَا الْاٰيٰتُ عِنْدَ اللّٰهِ ؕ وَاِنَّمَآ اَنَا نَذِيْرٌ مُّبِيْنٌ ﴿۵۰﴾

يا محمد ﷺ ته ورته ووايه دوی ته نه دي آيات مګر په قدرت کي د خدای ﷻ دي دده په قدرت پوري مربوط دي، زه يې مالک نه يم چي تاسي ته به راتګ کوم په هر شي چي تاسي يې طلب کوئ، او زما له شان ځنخه نه دی مګر په ښکاره تو ګه يا ښکاره کول د هغو معجزاتو چي خدای ﷻ ماته راکړي دي.

**پوښتنه:** ولي عليه الصلوٰة والسلام خدای ﷻ ته خواست نه کاوه چي دغه آيات چي دوی يې غوارې نازل کړي؟

**ځواب:** د دوی خو مقصود اصل ايمان پر صدق د عليه الصلوة والسلام په دعوی کي د رسالت او پر صدق د قرآن چي من عند الله دی نه ؤ، که وای خو معجزات د عليه الصلوة والسلام لکه شق القمر او نوري معجزې دده د صدق لپاره په دعوی کي د رسالت کافي وې، او اعجاز د قرآن په صدق کي د قرآن کافي

ؤ. بلکې د دوی مقصد صرف او صرف مکابره وه. که دغه معجزات فرضًا ظاهري
سوې هم وای بیا به يې د نورو طلب کاوه حتی يتسلسل، فتدبر. ولذا قال الله ﷻ.

**اَوَلَمۡ یَكۡفِهِمۡ اَنَّاۤ اَنۡزَلۡنَا عَلَیۡكَ الۡكِتٰبَ یُتۡلٰی عَلَیۡهِمۡ ؕ**

آیا دوی لره کافي نه دہ.

**بوه سه:** چې همزه لپاره د انکار دی او نفي د نفي اثبات دی یعني کافي يې دہ.
او واو للحال من فاعل فعل مقدر، تقديره اتطلبون منک آية والحال انه لم يكفهم
آية مغنية عما طلبوه وهي " انا انزلنا عليک الکتب" چې مونږ نازل کړې پر تا قرآن
معجز د بلغاؤ د عربو دی چې اتیان دې په مثل سره د ادنی سورت وکړي او په عین
حال کې دا قرآن جامع دی د علومو شریفه وو او د قصصو د انبیاء متقدمینو او د
د دوی د امتو د احوالو موافق د کتب الهيه وو قدیمه وو لکه تورات، انجيل
وغيرهما او سره د دې چې نبي امي يې.
" يتلى عليهم " چې پر دوی يې تلاوت کړل کېږي ستا د خوا څخه همیشه.
مظهري رح دا دوه بیته راوړي دي:

لم يقترن بزمان وهي تخبرنا ....... عن المعاد وعن عاد وارم
دامت لدينا ففاقت كل معجزة ......... من النبيين اذ جاءت ولم تدم

**اِنَّ فِیۡ ذٰلِكَ لَرَحۡمَةً وَّذِكۡرٰی لِقَوۡمٍ یُّؤۡمِنُوۡنَ ﴿۵۱﴾**

په تحقیق په دغه کتاب کې چې معجزه مستمره ده کر الازمان ومر الدهور
" لرحمة " يعني نعمت عظيمه لاهل زمانه او پند، وعظ او نصيحت دی لپاره د
هغه قوم چې په طلب کې دا ایمان وي او صرف تعنت یعني بې ځایه مطالبې يې
غرض نه وي کما مر من قولهم لولا انزل علیه آیات آه.

**درویش وایي:** چې ابن جریر او ابن ابی حاتم او دارمي رح په خپلو مسندو کې او ابو
داؤد رح په خپل مرسلو حدیثو کې په روایت د عمرو بن دینار عن یحیی بن جعدة قال
جاء ناس من المسلمین بکتف (یعني د پسه یا د غوایي ولی) چې په هغه کې نوشته
وې ځيني هغه خبرې چې له یهودانو څخه دوی اورېدلي وې او علیه الصلوة والسلام
ته يې ښکاره کړې، نو علیه الصلوة والسلام وویل کفی بقوم ضلالة ان یرغبوا عما جاء

بەنبيهم الی ماجاءبەغیرەلغیرهم فنزلت. اولم یکفهم انا انزلنا علیک الکتاب الآیة.
فقیر وایي: چي روح المعاني دا شان نزول چي مظهري راوړی دی رد کړی دی په دې
الفاظو چي سیاق او سباق سره د کافرانو دی او دا آیت او لم یکفهم الخ جواب دی د دې
قول د کافرانو لو لا انزل الخ او راوړونکی د کتف خو مسلمانو. نو څرنګه دا آیت په
شان کي د مسلمان نازل سوی بلل کېدای سي؟! والله اعلم.
**بنهاته فائده**: علماء دین وایي چي نقل له تورات یا انجیل څخه و عربي ته یا
فارسي ته الی غیر ذالک من الالسنة ممنوع دی چي دا منع د سیدتنا عائشة رضي الله عنها
څخه منقول ده. چنانچه ابن عساکر د ابن ابی ملیکه څخه روایت کړی دی چي
عبدالله بن عامر بن رکن ودې ته یوه هدیه راواستول. دا چي خبره سوه چي
راليږونکی د هديې عبدالله بن عامر دی نو هدیه یې بیرته ور رد کړه او علت د رد
یې دا ووایه چي دغه راستونکی د دې په خیال عبدالله بن عمرو دی تتبع یعني
کرځي او مطالعه کوي د کتب متقدمه یعني تورات او انجیل او د هغه کتابو څخه
په عربي ترجمه کوي او سره د دې چي خدای ﷻ ویلي دي. اولم یکفهم انا انزلنا
علیک الکتاب یتلی علیهم لکه چي دمخه دا آیت سره د ترجمې تېر سوی دی. نو
سیدتنا عائشه رضي الله عنها ته یو چا وویل چي دا استونکی د هديې هغه ناقل یعني عبدالله
بن عمرو نه دی بلکې عبدالله بن عامر دی. نو سیدتنا عائشه رضي الله عنها هدیه قبوله کړه.
او روح المعاني وایي وجاء في عدة اخبار ما یقتضي المنع (او په څو خبرو کي
راغلي ده منع د نقل څخه د تورات او انجیل) دی وایي اخرج عبدالرزاق في
المصنف والبیهقي في شعب الایمان عن الزهري چي حفصه (بنت عمر رضي الله عنه زوجة
النبي ﷺ) و علیه الصلوة والسلام ته راغله یو کاغذ ور سره ؤ ده قصه د یوسف علیه السلام
نو حفصه رضي الله عنها هغه مکتوب منقول من التورات و علیه الصلوة والسلام ته وایه او
رنګ د علیه الصلوة والسلام تغیر خوړی او حفصه رضي الله عنها ته یې داسي وویل والذي
نفسي بیده لو اتاکم یوسف وانا بینکم فاتبعتموه وترکتموني ضللتم.
**ترجمه**: زما دي قسم وي په هغه خدای ﷻ چي زما روح د هغه په قدرت کي
دی که فرضًا یوسف علیه السلام په خپله تاسي ته راغلی وای او زه ستاسي په مابین کي وای
تاسي د هغه متابعت کولای زه مو پرېښولای تاسي به ګمراهان وای. (انا حظکم

من النبيين وانتم حظي من الامم) زه ستاسي برخه يم په انبياؤ کي او تاسي زما برخه ياست په امتو کي. واخرج عبد الرزاق والبيهقي ايضًا چي عمر بن الخطاب رضي الله عنه پر يو سړي تېرېدى چي هغه يو کتاب وايه (يعني منقول من التورات په عربي ژباړه) نو عمر رضي الله عنه يو ګړى غوږ ورته ونيوى او ښه خوند يې ورکړى. نو عمر رضي الله عنه و هغه سړي ته وويل اکتب لي من هذا الکتاب. هغه سړي ورته وويل نعم، نو هغه سړي يوه توټه څرمن رانيول او هغه يې په لاس کي سره کش کړه يعني د نوشتې قابل يې وګرځول او پر مخ او شا يې هغه کتاب چي ده وايه عمر رضي الله عنه ته نوشته کړى. نو عمر رضي الله عنه هغه مکتبو راواخستى او عليه الصلوة والسلام ته يې وايه، ده چي دا مکتوب رايه د عليه الصلوة والسلام مخ تغيير کاوه يعني د عمر رضي الله عنه فکر نه ؤ مکتوب ته يې کتل، نو يو سړى له انصارو څخه تېرېدى د عليه الصلوة والسلام مخ مبارک ته چي يې وکتل نو هغه مکتوب يې د عمر رضي الله عنه له لاسه څخه وغورځاوه او عمر رضي الله عنه ته يې داسي وويل، ثکلتک امک يا ابن الخطاب، مور دي درباندي بوره سي اى عمره.

(درويش وايي: چي حقيقت د دې عبارت چي ښرا ده مراد نه دى بلکي د عربو دا عادت دى چي په وخت کي د ملامتيا د يو چا دغه عبارت وايي)

الاترى وجه رسول الله ﷺ منذ اليوم وانت تقرء عليه هذا الکتاب (ته نه وينې مخ مبارک د ورځي په اوږدو کي په داسي حال کي چي ته قرائت د دې کتاب ورته کوې) يعني څومره يې مخ مبارک تغيير خوري، فقال النبي ﷺ عند ذالک، انما بعثت فاتحًا وخاتمًا واعطيت جوامع الکلم وخواتمه (زه فاتح يم يعني د دين اسلام او خاتم يم د انبياؤ او ماته راکړى کلم جامعه چي لفظ يې مختصر وي او معنى يې جزيل وي حديث طويل دى الى اخير الحديث به ووايو، په اخير کي د حديث داسي راغلي دي فلا يهلکنکم المتهوکون تاسي دي هلاک نه کړي يعني چي دين مو تغيير دروسوي يا مو يهوديت ته مائل کړي يا نصرانيت ته هغه کسان چي پر هره خبره غوږ نسي په بې فکرى سره، يا معنى د متهوکون داده چي حيران وي وه ورته خبرو ته، په يوه روايت کي راغلي دي چي کعب بن الاشرف ذالک الخبيث من اليهود وعليه الصلوة والسلام ته وويل من يشهد انک رسول الله فنزلت هذه الآية.

قُلْ كَفٰى بِاللّٰهِ بَيْنِىْ وَبَيْنَكُمْ شَهِيْدًا ۚ يَعْلَمُ مَا فِى السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ؕ

ته ورته ووایه چې کافي دی خدای ﷻ (کلمه د باء زائده ده په فاعل ولې چې کفٰی په خپله متعدي دی) په منځ کې زما او ستاسې شاهد د صدق زما په دعوی کې د رسالت او خدای ﷻ علم لري پر ما في السموات والارض باندې لايخفٰی عليه شئ فيهما، دا جمله تعليل ده د کفٰی بالله الخ، او يا معنٰی د کفٰی بالله آه داده چې خدای ﷻ شاهد دی پر ما چې ما انذار او تبليغ درته کړی دی، او پر تاسې هم شاهد دی چې تاسې زما تکذيب او له نبوت څخه زما مو انکار وکړی، نو خدای ﷻ به وهر چاته جزاء بما يليق بحاله ورکړي يعني په ورځ د قيامت.

وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا بِالْبَاطِلِ وَكَفَرُوْا بِاللّٰهِ ۙ اُولٰٓئِكَ هُمُ الْخٰسِرُوْنَ ۝

هغه کسان چې ايمان يې راوړی وي پر باطل باندې، ابن عباس رضي الله عنه وايي ای بغير الله ﷻ يعني که صنم وي او که ملائکه وي او که عيسٰی ؑ وي، او کفر يې کړی وي په خدای سره چې واحد لاشريک دی دوی شريک ورته وايي دغو کسانو تاوان وکړی په تجارت کې، ولې چې او ر يعني دوږخ يې په جنت رانيوی او باطل يې پر حق غوره کړی، وهذه الجملة معطوفة علٰی کفٰی آه.

**پوښتنه**: عيسٰی، ملائکه ؑ او داغه رنګه صنم ته څرنګه باطل ويل کېدای سي هغه خو يو ډبره ده؟

**ځواب**: په حقيقت کې باطل د دغو مذکوره انواعو عبادت دی، نو پر دوی يې اطلاق مبالغةً دی، او مقاتل رحمه الله وايي بعبادة الشيطان د شيطان له نومانو څخه باطل هم دی.

**درويش وايي**: چې اصل د خسران تاوان دی په تجارت کې او استعمال يې په آيت کې استعاره او مجاز دی.

وَيَسْتَعْجِلُوْنَكَ بِالْعَذَابِ ؕ وَلَوْلَآ اَجَلٌ مُّسَمًّى

او دوی ژر غواړي عذاب الهي له تا څخه يا محمد (ﷺ) (دا آيت په شان کې د نضر بن الحارث نازل سوی دی چې ده به ويل ان کان هو الحق من عندک فامطر علينا حجارة من السماء، دا جمله عطف ده علی قوله تعالی لولا انزل الآية) که نه

واى وخت معين په علم کي د خداى ﷻ، ابن عباس رضي الله عنه وايي چي دا اجل معين هغه دى چي د عليه الصلوة والسلام سره خداى ﷻ وعده کړې ده چي زه ستا قوم په عذاب د استيصال نه هلاکوم لکه نور امتونه د انبياء کرامو عليهم السلام بلکې عذاب به يې و ورځي ته د قيامت ځنډوم کما قال عز من قائل بل الساعة موعدهم الآية، او ضحاک رحمه الله وايي چي مراد اجل مسمى مدت د عمر د دوى په دنيا کي لانهم اذا ماتوا صاروا الى العذاب، وفي الحديث من مات فقد قامت قيامته، او بعض مفسرين وايي چي مراد يوم بدر ده.

لَّجَآءَهُمُ الْعَذَابُ ۚ وَلَيَأْتِيَنَّهُم بَغْتَةً وَهُمْ لَا يَشْعُرُونَ ﴿٥٣﴾

عاجلاً او هرآئينه رابسي عذاب وقيل الاجل، ناببره يعني په دنيا کي لکه ورځ د بدر او په آخرت کي عند نزول الموت بهم، دوى به خبر نه وي په وخت د راتلو سره، دا جمله تاکيد ده معنى د بغتة.

**فائده:** دوى يعني کفارو د قريشو څرنګه مطالبه د استعجال د عذاب کوله عذاب خو د مېلي شى نه ؤ؟

**ځواب:** دا سوال د دوى استهزاء او تعجيزاً او د انکار پر ه ول ؤ کما قالوا متى هذا الوعد ان کنتم صادقين... سعيد شيرازي رحمه الله وايي:

تو غافل در انديشه سود و مال ........ که سر مايهٔ عمر شد پا يمال
طريقى بدست آرد وصلحى بجوى ........ شفيعى برانگيز وعذرى بگوى
که يک لحظه صورت نه بندد امان ........ چو پيمانه پر شد بدورى زمان

ولذا قيل: موتوا قبل ان تموتوا اى موتوا بالاختيار قبل ان تموتوا بالاضطرار.

يَسْتَعْجِلُونَكَ بِالْعَذَابِ ۚ وَإِنَّ جَهَنَّمَ لَمُحِيطَةٌ بِالْكَافِرِينَ ﴿٥٤﴾

او په تحقيق دوزخ احاطه کونکى دى (يعني عن قريب لان ماهو ات قريب) پر کافرانو. ولهذا قيل ما اقرب ما هو آت وابعد ما هو فات، اويا معنى داده چي اور او دوزخ بالفعل پر دوى لان الكفر والمعاصي موجودة فيهم فعلاً وهي اسباب للنار.

**فائده:** کلمه د لام لپاره د عهد ده او الكافرين من قبيل الظاهر موضع الضمير لپاره د دلالة پر موجب د احاطة جهنم بهم وهو الكفر فلا يرد ان الاولى ان يقال بهم فتدبر.

يَوْمَ يَغْشٰهُمُ الْعَذَابُ مِنْ فَوْقِهِمْ وَمِنْ تَحْتِ اَرْجُلِهِمْ

**پوه سه:** چي يوم ظرف د لسحيطة دى هغه ورځ چي پټ كړي دوى عذاب يعني اور د دوږخ د لوړي خوا څخه يعني د سر له خوا څخه او لاندي تر پښو ددوى يعني له جوانبو چهار ګانه وو څخه، ولي د سر او پښتو پټ والى په او رسره پټ والى لره د جنبنو مستلزم دى كما لايخفى.

وَيَقُوْلُ ذُوْقُوْا مَا كُنْتُمْ تَعْمَلُوْنَ ﴿٥٥﴾

**پوه سه:** چي نافع او كوفيون (يقول) په يا د غيبت وايي، والضمير اما راجع الى الله او يا بعض الملائكة په امر د خداى ﷻ، او نور قراء يې نقول پر صيغه د متكلم وايي ''ذوقوا'' ليس المراد من الذوق معناه المتعارف اى ذوق الفم بل معناه جربوا او ما كنتم په حذف سره د مضاف اى جزاء ما كنتم تعملون، كلمه د ما يا مصدريه ده اى جزاء عملكم او يا موصوله ده، والعائد محذوف اى جزاء ما كنتم تعملونه من الكفر و المعاصي.

يٰعِبَادِىَ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْۤا اِنَّ اَرْضِىْ وَاسِعَةٌ فَاِيَّاىَ فَاعْبُدُوْنِ ﴿٥٦﴾

اې زما هغو بندګانو چي ايمان يې راوړى وي په تحقيق زما مځكه فراخه ده، يعني كه يو ځاى عبادت د خداى ﷻ لكه لمونځ د كفارو د لاسه يې نسئ كولاى، نو بل ځاى ته هجرت وكړئ چي هوري عبادت د خداى ﷻ په ازاده توګه كولاى سئ، نو هوري خاص زما عبادت كوئ.

**الاعراب:** پوه سه! چي اياى منصوب دى په فعل مضمر سره چي تفسير يې وروسته شرطيه كوي، والفاء جواب لشرط محذوف تقديره وان لم تستطيعوا ان تعبدوني في الارض التي كنتم فيه فاعبدوني في ارض غيرها، فحذف الشرط او عوض د حذف يې تقديم د مفعول وګرځاوه او ضمير متصل يې منفصل وګرځاوه و افاد تقديمه الاختصاص كما في اياك نعبد، فصار فاياي اعبدوا بيا هغه فعل ناصب چي اعبدوا حذف كړى او بيا يې تفسير وكړى بقوله فاعبدوني لپاره د افادې د تاكيد كانه قال فاعبدوني فاعبدوني، هذا ما قاله العلامة البغدادي رحمه الله في روح المعاني و المظهري.

**پوه سه:** چي مقاتل او كلبي رحمه الله وايي چي دا آيت په شان كي د مسلمانانو د ضعفاؤ

نازل سوی دی چې په مکه مکرمه کې تنګ وه د کفارو د لاسه څخه په اظهار د عبادت
یې نسو کولای. نو په دې آیت کې خدای پاک دوی ته امر ورکړی چې هجرت و کړئ و
بلې مځکې ته لکه مدینه منوره چې هورې بېله خوفه خپل د خدای ﷻ عبادت و کړئ.
دا ؤ قول د اکثرو مفسرینو، او بعض مفسرین وایي که څه هم مورد د ایت خاص دی
لکن حکم یې عام دی چې هر څوک چې قدرت نه لري پر اداء کولو د امورو د دین کما
ینبغي په یوه مځکه کې له جهته څخه د ممانعت د کافرانو و غیرهم. نو پر هغه چا
هجرت واجب دی و داسې ځای ته چې ازادانه عبادت د خدای ﷻ کولای سي. وروی
هذا عن ابن جبیر و عطاء و مجاهد و مالک بن انس رحمهم الله، او مطرف بن السخیر رح
وایي چې دا وعده د خدای ﷻ د فراخۍ د رزق په تولو مځکو کې.

**درويش وايي:** چې دا تجربه ماته حاصله ده. ولې څه وخت چې روسانو پر
افغانستان یرغل وکړی او ټوله افغانستان یې په قبضه کې واخستې په معاونت د
حزب الخلق یا حزب پرچم و غیرهم او هورې ګذاره د علماؤ خصوصًا او د تاجرانو
ډېره سخته سوه. علماء به بندي کېدل او وژل کېدل. نو د ډېرو علماؤ په شمول ما
هم وه همسایه ملک پاکستان ته چې د مسلمانانو لپاره تر دې اوسه یعني (۱۴۳۱)
پورې قلعه ده هجرت و کړی. او په افغانستان کې به مې د یو مسجد یا جامع
مسجد امامت کاوه په اجر ذلیل د زکوة. پاکستان ته چې سره د اهل او عیال راغلم
البته یو څو کاله خو مشکلات د هجرت وه. نه مو د اوسېدو سرای درلودی. نو ما
او زامنو به مو مزدوري کولې لکن الحمد لله وروسته تر محدودې زمانې خپل
ملکي سرای خدای ﷻ راکړی او بیا یو کوچنی مسجد خدای ﷻ راکړی یعني
خپل نه د زکوة و غیره په اخستلو سره بیا خدای پاک هغه کوچنی مسجد په جامع
مسجد رابدل کړی چې رفته رفته په وروسته هغه کوچنی مسجد مو شهید کړی
دوه منزله پوخ جامع مسجد په سیخ او کانګرېټو مو بناء کړی چې په دواړو یعني
لوړ او کښته مسجد کې ښې ښې قیمتي قالین اوارې دي. خدای پاک رابدل کړی
نه د چا زکوة اخلم نه سرسایه. دا وه تجربه د فقیر په هجرت کې.

او سعید بن جبیر رح وایي چې که په یو وطن کې سری د ګنهو سره دست او
ګرېوان ؤ نو د هغه وطن څخه دې هجرت وکړي. کریمه: فان ارضي واسعة، وقال
عطاء رح اذا امرتم بالمعاصي في ارض فاهجروا منها فان ارضي واسعة، او بعض



Scanned by CamScanner

کسان وايي چي په هغو کسانو کي نازل سوې دی چي له مکې مکرمې څخه به يې هجرت و مدينة المنوره ته نه کاوه او دوی به دا عذر وايه چي موږ بېرېږو له لوږي څخه که هجرت وکړو فانزل الله تعالى هذه الآية، او دا يې ددوی عذر ونه ګڼی په ترک کي د هجرت، مطرف بن عبد الله رح وايي ان ارضي واسعة چي معنا يې داده چي رزقي لکم واسع فاخرجوا، قال رسول الله ﷺ من فر بدينه من ارض الى ارض ولو شبراً استوجب الجنة وکان رفيق ابراهيم ومحمد عليهما السلام، رواه الثعلبي عن حديث الحسن مرسلاً... قال الشاعر:

سفر کن چو جای تو ناخوش بود ...... کزين جای رفتن بدان تنگ نيست
وگر تنگ گردد ترا جايگاه..... خدای جهان را جهان تنگ نيست

## كُلُّ نَفْسٍ ذَآئِقَةُ الْمَوْتِ

هر سړی واجد دی د حرارت د مرګ او د تلخی د زکندن، ولهذا قال سيد نوع البشر ﷺ اللهم للموت سکرات په وخت کي د زکندن لکه ديو شي چي سړی خوند کوري د ماقبل سره ددې آيت ربط دادی، نو په دار الشر کي د مرګ له بېري مه اوسېږه بلکې د مرګ لپاره بايد ځان سړی چمتو کړي په عبادت سره.

## ثُمَّ إِلَيْنَا تُرْجَعُونَ ۝٥٧

وروسته تر مرينې بيا موږ ته راجع کړل کېږي بالبعث بعد الموت، يعني فيجازيكم باعمالكم فهاجروا في سبيل الله چي موږ جزاء او ثواب د هجرت درکړو.

## وَالَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ لَنُبَوِّئَنَّهُمْ مِنَ الْجَنَّةِ غُرَفًا

او هغه کسان چي ايمان يې راوړی وي او اعمال صالحه يې هم کړي وي هر آئينه به موږ داخل کړو دوی د جنت په بالا خانو کي، د غرفا جمع غرفة ده، يعني چي د ملغلرو او يا قوتو او زبرجد څخه به جوړي وي.

## تَجْرِي مِنْ تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ خَالِدِينَ فِيهَا نِعْمَ أَجْرُ الْعَامِلِينَ ۝٥٨

چي بهېږي به لاندي تر دغو غرفو ويالې (۱) من الماء الذي لم يتغير طعمه، (۲) والخمر التي لاغول فيها ولاهم ينزفون (۳) واللبن الخالص (۴) والعسل

المصفی، چي همېشه به وي دوی په دا غرفو کي بلا موت ولا مرض ولا تکلیف بالصلوة والصیام وغیرهما من العبادات.

**پوه سه:** چي مخصوص بالمدح د نعم محذوف دی دل علیه ماقبله ای غرف الجنة او اجورهم.

## الَّذِيْنَ صَبَرُوْا وَعَلٰى رَبِّهِمْ يَتَوَكَّلُوْنَ

هغه کسان چي دوی په دنیا کي صبر کړی ؤ پر ازار د مشرکانو والهجرة من الوطن المالوف في سبیل الله وغیر ذالک من التکالیف الشاقة لاجل مرضات الله.

ع:..... براحتی نه رسید آنکه زحمتی نکشید

بیت: تدوم العز ثم تنام لیلاً ...... ومن طلب العلی سهر اللیالي

بقدر الکد تکتسب المعالي ...... یغوص البحر من طلب الآلي

"وعلی ربهم یتوکلون" او پر خدای ﷻ یې کامل اعتماد وي بان یرزقهم من حیث لم یحتسبوا.

**درویش وایي:** چي بغوي وایي چي نبي ﷺ وه هغو مسلمانانو ته چي په مکه مکرمه کي تر ازار او رېړو د مشرکانو زیر اثر وه په ذریعه د مکتوب یا د قاصد داسي پیغام واستاوه چي مدینې منورې ته هجرت وکړئ، نو دوی په خپلو کي سره وویل چي موږ څرنګه مدینې ته ولاړ سو نه هورې موږ سرای د اوسېدو لرو او نه مال لرو. نو موږ ته خوراکي مواد څوک راکوي! او موږ ته به او به څوک راکوي. نو دا آیت نازل سو.

## وَكَاَيِّنْ مِّنْ دَآبَّةٍ

**پوه سه:** چي کاین لپاره د تکثیر دی لکه کم خبریه کاف د تشبیه یې سره د ای مرکب کړی، معنی افرادي د د دواړو پاته سوه بلکي مجموع دوه لفظه لکه یو مبني علی السکون چي په اخیر کي یې نون ساکنه دی کما في من. او دا نون تنوین تمکن نه دی کما في ضربت زیداً دلیل یې دا دی چي وروسته تر یا نون په خپل صورت نوشته دی، سره ددې چي تنوین تمکن په خط کي صورت نه لري کما في ضربت زیداً. نو کاین مبتدا ده او جمله ده:

لَا تَحْمِلُ رِزْقَهَا ۖ اللَّهُ يَرْزُقُهَا وَإِيَّاكُمْ ۚ

لاتحمل رزقها يعني د خپل ځان سره رزق نسي وړلای او ذخيره د بلي ورځي لپاره هم برابروي. دا جمله صفت د دابة ده "الله يرزقها واياكم" يې خبر دی، والمعنى ډېر لـه دوابو څخه چي محتاج و غذا ته دي من البهائم والطيور حتى مېږيانو ته په خپلو ښارو کي خدای ﷻ رزق ورکوي او تاسي ته هم هر ځای چي ياست که په مكة المكرمة کي ياست او که په مدينة المنوره کي ياست، نو تاسي ولي وايـاست چي موږ څرنګه هجرت مدينې منورې ته وکړو الی اخير مامر، چي بهائم او دابو تـه خدای پـاک رزق ورکوي چي هغـه تر تاسي ضعيف البنية دي او تاسي قوت د کسب او کار هم لرئ، رازق د ټولو ذو الجلال والاكرام دی، کريمه: وما من دآبة الا على الله رزقها . فلاتخافوا الفقر بالمهاجرة الى دار الغربة.. شعر:

هست ز فيض كرم ذو الجلال ......... مشرب ارزاق پر آب زلال
شاه و گدا روزی ازان ميخورند ......... مور و ملخ قسمت ازو ميبرند

وَهُوَ السَّمِيعُ الْعَلِيمُ ۝

نو ستاسي هغه ماضي خبري خدای پـاک هم اوري چي پـه بـاره کي د رزق مو کولې او ستاسي پر زړو خدای پاک علم لري.

**حکایت**: از ابو سعيد خراز قدس سره نقل است كه در شهری بودم نام من در آنجا بسيار مشهور شد چنانچه اگر پوست خربوزه كه از دست من بيفتادی مردم بر داشتند واز يک ديگر بصد دينار می خريدند وبر آن هم ميافزردند ، باخود گفتم كه اين نه جای منست، ولائق روزگار من پس از آنجا هجرت كردم وبجای افتادم كه مرا زنديق می گفتند وهر روز دوباره سنگ باران همی كرند همان جای مقام ساختم وآن رنج وبلا می كشيدم وخوش همی بودم زيرا كه تانفس مرده وذليل نشود بر فتوح وزنده نخواهد شد.

لـه ابن عمر رض څخـه روايت دی چي زه د رسول الله ﷺ سره داخل سوم يو بـاغ تـه، باغ د انصارو ؤ (يعني د خورما باغ ؤ) نو رسول الله ﷺ دا لنده خورما شكول او خوړل يې، ماته يې وويل يا ابن عمر كل (خوره يې) ما ورتـه وويـل زمـا اشتها نـه ورته كيږي، عليه الصلوة والسلام راتـه وويل چي زما خو اشتها ورته كيږي، او

زياته يې كړه چې دا ځلورمه ورځ ده چې ما هيڅ طعام نه دی خوړلی او نه مې پيدا کړی دی، فقلت والله المستعان يعني د تعجب لپاره مې دا خبره وکړه، عليه الصلوة والسلام راته وويل يا ابن عمر لو سئلت ربي لاعطاني مثل ملک کسری وقيصر اضعافًا مضاعفة ولکن اجوع يومًا واشبع يومًا، وروسته يې راته وويل يا ابن عمر کيف بک يا ابن عمر، کله تا ته خدای پاک عمر درکړی او باقي پاتې سې په يو قوم کې چې دوی د يوه کال نفقه لري او يقين يې پر خدای د رزق په باره هم لا ضعيف وي، ابن عمر رض وايي چې لږ وروسته دا آيت نازل سو "وکاين من دآبة الآية" وعن انس رض ان النبي ﷺ كان لايدخر لغد رواه الترمذي، وعن عمر رض قال سمعت رسول الله ﷺ يقول لو انکم تتوکلون على الله حق توکله لرزقکم ما يرزق الطير تغدو خماصًا وتروح بطانًا، رواه الترمذي وابن ماجه، ترجمه: که تاسي توکل وکړئ پر خدای ج په کامل توکل سره د خدای يعني په باره کې د رزق تاسي ته به خدای ﷻ رزق درکولای لکه وه مرغه ته چې سهار له خپل ځای څخه وږی ولاړ سي ما ښام په ډک نس راسي، له ابن مسعود رض څخه روايت دی قال قال رسول الله ﷺ ليس من شيئ يقربوکم من الجنة ويباعدکم من النار الا امرتکم به (نسته داسي يعني له امورو څخه د دين چې تاسي نژدې کوي و جنت ته او لېري کوي مو له اوره يعني في الآخرة مگر نه ما تاسي په امر کړي ياست په هغه سره) وليس من شيئ يقربکم من النار ويباعدکم من الجنة الا قد نهيتکم منه (او نسته داسي يو عمل چې تاسي نژدې کوي و اور ته او لېري کوي مو له جنت څخه يعني من المعاصي، مگر نه ما تاسي له هغه عمل څخه نهي کړي ياست) وان روح القدس نفث في روحي (او په تحقيق سره جبرئيل ع چې پاک روح دی زما په زړه کې را اچولي دي) ان نفسًا لن تموت حتى تستکمل رزقها (نفس نه مري تر هغو چې خپل رزق يعني په دنيا کې چې د خدای ﷻ له خوا مقدر دی پای ته ونه رسوي) الا فاتقوا الله واجملوا في الطلب (آگاه اوسئ له خدای ﷻ څخه وبېرېږئ، يعني له عذاب څخه د قيامت د ورځي او د هغې ورځ له حساب څخه، تاسي له صبر جميل څخه کار واخلئ په طلب کې د رزق چې دا وروسته يې بيان دی) ولا يحملنکم استبطاء الرزق ان تطلبوا بمعاصي الله (او تاسي دي باعث نه کړي ځنډېدل د رزق يعني الحلال پر دې باندې چې په معاصي د خدای ﷻ لکه سود، غلا، کيسه بري،

راهزني وغير ذالك سره طلب د رزق کوئ) فانه لايدرک ما عند الله الا بطاعته (ولي په تحقيق چي نه پيدا کيږي هغه رزق چي په نيز د خدای ﷻ يعني الرزق الحلال مګر نه په طاعت سره د خدای ﷻ. نو دا سوال نه وارديږي چي ډېر خلک په ذکر سوي معاصيو سره رزقونه تر لاسه کوي. ولي هغه رزق خو ما عند الله نه دی يعني حلال فافهم) رواه البغوي ؒ في شرح السنة وذکره في المعالم.

**وَلَئِنْ سَأَلْتَهُمْ مَنْ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضَ وَسَخَّرَ الشَّمْسَ وَالْقَمَرَ**

يعني که ته سوال وکړې له اهل مکه څخه (کلمه د لام جواب د قسم محذوف ده کما مر مرارًا) چي چا پيدا کړي دي اسمانونه او ځمکه او مسخر يې کړځولي دي لمر او سپوږمۍ. يعني په خپل شبانه روزي رفتار کي.

**پوه سه:** چي من خلق آه جمله استفهاميه ده واقع ده په تاويل د مفرد په محل کي د نصب على المصدرية د سألتهم. والتقدير سألتهم هذا السوال يعني من خلق آه.

**لَيَقُولُنَّ اللّٰهُ ۚ فَأَنّٰى يُؤْفَكُونَ ﴿٦١﴾**

نو ضرور به دوی وايي چي الله پيدا کړي دي.

**پوه سه:** چي اسم جليل فاعل دی د فعل محذوف. والتقدير ليقولن خلقهن الله و ليقولن جواب دی د قسم محذوف لفظًا وجواب الشرط معنًى يعني والله لايقولن الا هذا الجواب لما تقرر في العقول السليمة من انها من الممکنات المحتاجة الى ذات واحدة واجب لذاته (فانى يؤفکون) يعني دغه اقرار هم کوي يعني ليقولن الله نو څرنګه مصروف سولاست ايها المشرکون د توحيد د هغه يعني په عبادت سره و شرک ته د بتانو په عبادت سره. والحال انها جمادات لاتضر ولا تنفع.

**اَللّٰهُ يَبْسُطُ الرِّزْقَ لِمَنْ يَّشَآءُ مِنْ عِبَادِهٖ وَيَقْدِرُ لَهٗ ۖ**

خدای پاک دی چي په قدرت عظيمه رزق فراخه کوي و هغه چاته چي دده ورته اراده سي او تنګوي رزق و هغه چاته چي دده ورته اراده سي (نو ضمير د له راجع و من يشا ء ته دی نو ځکه فقير ترجمه داسي وکړه و هغه چاته چي دده ورته اراده سي فتدبر) سعدي شيرازي قدس سره وايي:

اديم زمين سفره عام اوست ..... برين خوان يغما چه دشمن چه دوست

**درویش وابي**: چي مفسرین رح تول وايي چي دا احتمال سته چي موسع له او مضيق عليه دي يو سړی وي پر سبيل د تعاقب في الزمان، او دا هم احتمال سته چي ضمير د له په ځای کي د من يشاء راوړی وي لکه فقير چي اول هم دا غه ترجمه وکړه، نو لکه من يشآء چي مبهم دی ضمير هم مبهم دی.

إِنَّ اللَّهَ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيمٌ ﴿٦٢﴾

په تحقيق خدای وسع علمه په هر شي خبر دی يعني په مصالحو د هر چا او په مفاسدو د هر چا چي د بعض مسلمانانو فراخي د رزق داعي و عبادت ته د خدای ج ده او د بعض مسلمانانو لپاره فراخي د رزق يې سبب د فتنې في الدين ګرځي، او تنګي د رزق سبب د صلاح ګرځي وبالعكس، او په بعض مسلمانانو کي کله فراخي کله تنګي سبب د صلاح وي فيفعل مايشاء وهو اعلم بالمصلحين والمفسدين وباسباب الصلاح والفساد كما ورد في الحديث القدسي الذي رواه البغوي رح: قال الله تعالى ان من عبادي المؤمنين لمن يسئلي الباب من العبادة (يعني فتح الباب من العبادة آية عبادة كانت) فاكفه عنه (زه هغه دروازه نه ورخلاصوم) لايدخله عجب فيفسده (که ده هغه عبادت دروازه ورخلاصه کړم دده څخه خود بيني او کبر کبرې نو هغه عجب دده عبادت ور فاسدوي) وان من عبادي المؤمنين ان لايصلح ايمانه الا الغناء لو افقرته لافسده ذالک (او بعض زما د بندګانو مؤمنانو لايصلح اصلاح د ايمان دده نه کوي مګر غناء يې کوي که يې فقير کړم دا فقر به دده ايمان فاسد کړي يعني غلا وي به کوي يا راهزني او يا به الفاظ د کفر وايي وغير ذالک من المفاسد المربوطة بالفقر) وان من عبادي المؤمنين لمن لايصلح ايمانه الا الفقر ولو اغنيته لافسده ذالک (او بعض زما د بندګانو مؤمنانو څخه داسي کسان سته چي د ايمان اصلاح يې نه کوي مګر صحت د بدن، که يې زه ناجوړی کړم فاسد به کړي دده ايمان د غه دين دده مثلاً په صورت جوړ وي پنځه وخته جماعته به کوي او د مسلمانانو جنازې او نور ورته کارونه چي په صحت البدن پوري مربوط دي او چي ناجوړی يې کړم شکايت به د خدای جل جلاله څخه او بې صبري به کوي. او ناوړه الفاظ به يې ترخوله وځي) وان من عبادي المؤمنين من لايصلح ايمانه الا السقم (بعض زما د بندګانو څخه ايمان ته يې فائده نه کوي مګر ناجوړي چي خدای جل جلاله ته بد تل عجز او نياز کوي خپل صحت غواړي. او که يې زه په

صورت جوړ کړم ناجائز کارونه به کوي او د هر سروز او فسق په مجلسو کې به کښېني
الی غیر ذالک من آفات الصحت، اني علیم خبیر.

**درویش وايي:** چې یو شاعر د فقر حال داسې بیان کړی دی.

بر فلک بر تر بود اسرار او ........ شیئًا للہ شیئًا للہ کار او

ولهذا قال سید نوع البشر ﷺ اجوع یومًا واطعم یومًا کما مر في حدیث ابن
عمر چې زه د رسول الله ﷺ سره یو باغ ته د انصارو ورغلم. الخ، ومن ههنا قال
رسول الله ﷺ الفقر فخري.

**وَلَئِن سَأَلْتَهُم مَّن نَّزَّلَ مِنَ السَّمَاءِ مَاءً فَأَحْيَا بِهِ الْأَرْضَ مِن بَعْدِ مَوْتِهَا لَيَقُولُنَّ اللَّهُ**

که ته سوال او پوښتنه وکړې له مکې والو څخه (عطف دی پر لئن سئالتم السابق)
چې چا نازل کړې دي یعني په بار بار (کما هو مقتضی باب التفعیل له اسمان څخه یا له
وریځې څخه. لان کل ما علاک فهو سماء) او به یعني د باران په ذریعه.

**درویش وايي:** چې چونکه په مکه او اطرافو کې بېله بارانه د بل شي او رښت نه
وُ، نو ځکه یې واوره چې ثلج یې بولي نه کړه ذکر یا له دې سبب چې ثلج خو هم
بالآخره اوبه کرځي، نو یې ژوندۍ کړه مځکه په هغو سره.

**فائده:** حیوة د مځکې دا دی چې په نباتاتو سره سرسبزه او شاداب وګرځي لکه
مرګ د مځکې چې دا دی د نباتاتو څخه خلاصه سي او سپېره پاته سي وروسته تر مرګ
د مځکې. هر آئینه دوی یعني مشرکان د مکې وايي الله دغه کارونه کوي. اذ لا جواب
غیره، یعني نسبت د دې کارو دوی هم خپلو بتانو ته نسي کولای لانه خلاف البداهة.

**قُلِ الْحَمْدُ لِلَّهِ ۚ بَلْ أَكْثَرُهُمْ لَا يَعْقِلُونَ ﴿٦٣﴾**

ته ورته ووایه حمد دي وي خدای ج لره، یعني زه ستاسې له ضلالت څخه ساتلی
یم (او یا د الحمد لله معنی دا ده چې ستا تصدیق او ببرغ د توحید په دغو شیانو کې
دوی هم پوره ته کړي) بلکې ډېر د دوی نه پوهېږي په قبح سره او په تناقض سره د
اقوالو د دوی چې یو وار نسبت د ممکناتو ذات پاک ته کوي او بیا په عبادت کې
بتان ورشریکوي چې هغه پر خلق د هیڅ شي قدرت نه لري ولا تنفع ولا تضر.

**یوه سه:** چي اکثر یې له دې کبله وایه چي بعض د دوی خو پوهېدل لکن تکبراً او عناداً د بتانو په شراکت ډاډه وه، له دې آیته دا معلومه سوه چي له کفارو څخه هم خدای ﷻ رزق او اسباب د رزق لکه بارانونه نه سپموي فکیف یقطع ارزاق المؤمنین مع ایمانهم... سعدي شیرازي رحمه الله وایي:

ای کریمی که از خزانه غیب...... گبرو ترسا وظیفه خورداری

دوستان را کجا کنی محروم...... تو که با دشمنان نظر داری

علماء وایي چي ذات پاک ﷻ له بندګانو څخه نه غواړي مګر توحید او تقوی، صبر او توکل فان الرزق علی الله الکریم، مولی الجامي قدس سره السامي وایي:

در ین خرابه مکش بهر گنج غصه ورنج

چو نقد وقت تو شد فقر خاک بر سر گنج

بقصر عشرت وایوان عیش شاهان بین

که زاغ نغمه سرا گشت وجعد قافیه سنج

## وَمَا هٰذِهِ الْحَيٰوةُ الدُّنْيَآ اِلَّا لَهْوٌ وَّلَعِبٌ ۭ

نه دی دغه ژوند ددې دنیا یعني مشاغل او کارونه ددې دنیا.

**فائده:** اشاره د هذه لپاره د تحقیر ده.

**یوه سه:** چي لهو و هغه کارو ته وایي چي د اصل مقصود څخه سړی لرې کوي فان الاشتغال بامور الدنیا سړی منع کوي د ما یفیده في الحیوة المؤبدة "ولعب" ساتېرى دی یعني عبث کار دی لکه کوچنیان چي په خاورو کي باغونه جوړوي لانها فانیة.

**پوښتنه:** په حیوة الدنیا کي خو مسلمانان لمونځونه کوي، حجونه کوي الی غیر ذالک، نو دا هم لهو او لعب دي که څرنګه؟

**ځواب:** طاعات خو د دنیا شیان نه دي بلکي د آخرت کارونه دي ولي چي مېوه یې په آخرت کي ښکاره کېږي، په کشف الاسرار کي وایي چي دنیا یې ولي لهو او لعب وبلل او سره ددې چي دنیا چي خدای پاک پیدا کړې ده د یو حکمت او مصلحت لپاره یې پیدا کړې ده؟ ددې ځواب دادی چي خطابات قرآنیه مبني پر اغلب دي ولایخفی ان غرض اکثر الناس من الدنیا اللهو و اللعب، مولنا جلال الدین الرومي رحمه الله په مثنوي کي داسي وایي:

چیست دنیا از خدای غافل شدن..... نی قماش نقره و فرزند زن
مال را کزبهر دین باشی حمول..... نعم مال صالح خواندش رسول
آب در کشتی هلاک کشتی است..... آب اندر زیر کشتی پشتی است

وَإِنَّ الدَّارَ الْآخِرَةَ لَهِيَ الْحَيَوَانُ لَوْ كَانُوا يَعْلَمُونَ ﴿٦٤﴾

او حیوة د ورځي د قیامت حیوة دی وبس لامتناع طریان الموت علیها او یا ذات د ورځي د قیامت یې حیوة وبالد مبالغة.

**فائده:** حیوان مصدر دی په معنی د حیوة اصل یې حییان بالیایین قلبت الثانیة واوًا وهو ابلغ من الحیوة، ولي چي صیغه د حیوان چي وزن یې فعلان دی دلالت پر حرکت کوي چي لازم د حیوة سره دی.

**پوهنه:** چي مفعول د یعلمون محذوف دی یعني بفناء الدنیا وبقاء الآخرة، او جواب د شرط هم محذوف دی یعني دوی به نه وای مختاره کړې دنیا پر آخرت باندي، فضیل بن عیاض رحمه الله وایي که د دنیا کورونه د سرو زرو وای او پاني کېدای او د آخرت کورونه د کودرو لکن باقي وای لکان ینبغي لنا ان نختار الخذف علی الذهب لکن الامر بالعکس حقیقة ومع ذالک یختار اهل الدنیا الخذف علی الذهب، والله المستعان.

فَإِذَا رَكِبُوا فِي الْفُلْكِ دَعَوُا اللَّهَ مُخْلِصِينَ لَهُ الدِّينَ ۚ

چي دوی سپاره سي په کښتی، کي یعني کښتی، طوفاني سي او دوی له غرق څخه وبېرېږي، نو دوی خدای جل جلاله ته خواست یعني نجات من الغرق کوي، په داسي حال کي ځانونه د مخلصینو پر ډول وګرځوي یعني المؤمنین یعني لایذکرون الا الله ولایدعون اللاة والعزی، ولي چي دوی ته دا یقین دی چي کاشف الضر لیس الا الله.

تاریخ وایي: چي مشرکان چي به په کښتی، کي سفر کاوه یو بت به یې د ځان سره اخستی نو چي پر غرق به وبېرېدل هغه بت به یې دریاب ته وغورځاوه او تضرع او زاری به یې خاصة لله کولې.

فَلَمَّا نَجّٰىهُمْ إِلَى الْبَرِّ إِذَا هُمْ يُشْرِكُونَ ﴿٦٥﴾

نو هغه وخت چي خداى ﷻ به نجات ورکړی دوی ته وه مځکي ته يعني له درياب څخه به خداى ﷻ سالم را ويستل نابيره يا سمدلاسه به دوی بيرته په پخوانی بت پرستي لاس پوري کړی او بتانو ته به يې سجدې او عبادت شروع کړی.

**فائده:** فقير په ترجمه کي د آيت داسي وويل چي ځانونه بې د مخلصينو پر ډول وګرځول، نو هغه سوال دفع سو چي حقيقت اخلاص د کافر متصور نه دی. ولي چي هغه په ايمان پوري مربوط دی.

لِيَكْفُرُوا بِمَا آتَيْنٰهُمْ

**پوهه:** چي لام په دې ځای کي او په وروسته کي روح البيان، روح المعاني او مظهري په ګډه سره وايي چي دا لام لام د امر غائب دی.

**پوښتنه:** خداى ﷻ د څه حکمت لپاره امر د کفر ورکوي؟

**ځواب:** دا امر تکليف نه دی بلکي لام تهديد او وعيد دی کما في قوله اعملوا ما شئتم اني بما تعملون بصير.

**درويش وايي:** چي داسي امر د تهديد لپاره په هره ژبه کي سته مثلاً د سړي زوی يو بد کار کوي پلار يې ورته وايي چي ته فلانی کار کوې زه درخبريم، يا يو غائب سړی ياد کړي او دی چي دی دغه بد کار کوي بيا به يې سره ګورو، وامثال ذالک کثيرة. والمعنی دوی يعني د کښتۍ سپاره چي د غرق سره مخامخ سوه او ماته يې زاری وکړې او ما دوی ته نجات ورکړی، نو دوی دې د نعمت انکار کوي. او ناموري مفسرين وايي دا هم احتمال سته چي دا لام دې په معنی د کی وي، والمعنی يشرکون ليکونوا کافرين بشرکهم نعمت الانجاء من الغرق.

وَلِيَتَمَتَّعُوا فَسَوْفَ يَعْلَمُونَ ﴿٦٦﴾

په دې لام کي هم هغه دوه احتماله ذکر کړل سوي دي، او دا احتمال هم ذکر کړل سوی دی چي معنی د آيت دې دا وي لا فائدة لهم في الاشراک بعد الانجاء الا الکفر بالله والتمتع بما يستمتعون في الدار العاجلة من غير نصب لهم في الآخرة بخلاف عادة المؤمنين المخلصين فانهم يشکرون نعمت الله اذا انجاهم او دوی

نور هم ازدياد د طاعت د خداى ﷻ كوي "فسوف يعلمون" ژر دى چي په عاقبت د شرک بعد النجات وغير ذالک من المعاصي يعني يعاقبون بالنار.

## اَوَلَمْ يَرَوْا اَنَّا جَعَلْنَا حَرَمًا اٰمِنًا

آيا دوى نه ويني يا علم نه لري؟ (الاستفهام للانكار ونفي النفي اثبات يعني ويني يې او هم علم پر لري (ترديد فقير په دې سبب وكړى چي رؤيت بصري او علمي دواړه كېداى سي فافهم) والواو عطف على المقدر كما هو القانون النحوي لا للعطف على ماقبل الاستفهام، ولې چي صدرات د استفهام ته خلل دى، والتقدير الم يتفكروا ولم ينظروا اهل مكة) "انا جعلنا حرمًا امنًا" موږ كرځولى دى د مكې حرم يعني محفوظ د تاړاک او تجاوز څخه د دښمنانو من العرب والعجم آمن دى، يعني اهل يې په امن كي دي د قتل او له سبې چي شاهد يې سورت الم تر كيف فعل ربک باصحاب الفيل تر اخيره د سورت دى.

## وَّيُتَخَطَّفُ النَّاسُ مِنْ حَوْلِهِمْ

او حمله كړل كېږي پر خلكو د شا له خوا څخه د اهل مكه او په دوى څوک كار نه لري، وايي چي اهل مكه اهل د حرم د خداى ﷻ دي. او په جاهليت كي دا قانون ؤ چي عربو به غير د اهل مكه يعني د شا و خوا خلک بې وژل او ښځي او ځوانان او هلكان به يې په سبي ځندي بېول.

## اَفَبِالْبَاطِلِ يُؤْمِنُوْنَ وَبِنِعْمَةِ اللّٰهِ يَكْفُرُوْنَ ﴿۶۷﴾

همزه لپاره د انكار دى او كلمه د فاء تفريع ده پر مضمون د ماسبق، والمعنى انعم الله على اهل مكة هذه النعمة العظمى او دوى د دغه نعمت سره سره وغيرها چي بېله خالق مقتدر سبحانه تعالى څوک قدرت نه پر لري په باطل سره چي عبارت د بتانو څخه يا د شيطان څخه او داهم احتمال سته چي له باطل څخه دي مراد ټول ماسوىٰ الله وي، كما ورد في الحديث الصحيح چي عليه الصلوة والسلام وويل احسن القول ما قاله لبيد، چي د يو شاعر نوم دى: الاكل شيئ ما خلى الله باطل.

**ترجمه:** پر باطل دوى ايمان راوړي او تصديق پر كوي او په نعمت د خداى ج لكه چي تېر سوه دوى كفر كوي يعني شكر يې نه وايي كلمه توحيد الله ﷻ داسي يې نه

وويل سول يكفرون بنعمة الله للاهتمام بشان النعمة او يا لپاره د اختصاص مبالغة. او بعض مفسرين وايي چي مراد له نعمت الله څخه محمد ﷺ او قرآن عظيم الشان دی.

## وَمَنْ أَظْلَمُ مِمَّنِ افْتَرَىٰ عَلَى اللَّهِ كَذِبًا

او څوک ډېر ظالم دی تر هغه چا چي پر خدای ﷻ دروغ وايي (الاستفهام للانكار ای لا احد اظلم) يعني خدای ﷻ ته شريک وايي، ما تفسير په خاص سره وکړی يعني الافتراء بالشرک. له دې سببه چي د مخه آيتونه ټول د مشرکينو د مکې لپاره وه، ولې مفترين على الله نور هم ډېر سته لکه نصاری چي عيسی ابن الله بولي او يهودان چي عزير ابن الله بولي.

## أَوْ كَذَّبَ بِالْحَقِّ لَمَّا جَاءَهُ ۚ أَلَيْسَ فِي جَهَنَّمَ مَثْوًى لِّلْكَافِرِينَ ﴿٦٨﴾

او يا تكذيب د حق کوي چي دوی ته راغلی يعني القرآن ومحمد ﷺ يعني بلا توقف او بيله فکره او تامل سره يې په تکذيب او انكار خوله پوري کړه، آيا نسته ځای د قرار او اقامت الى الابد كافرانو لره بلکې سته.

**درويش وايي:** چي بعض مفسرين وايي چي همزه لپاره د انكار دی پر حرف نفي داخل سو او نفي د نفي لپاره اثبات دی، او بعض وايي چي استفهام لپاره د تقرير دی. والمآل واحد ای الا يستوجبون الثواء ای القرار في جنهم او حال دا دی چي دوی پر خدای ﷻ دروغ وويل په شرک ويلو سره او تكذيب او انكار يې وکړی له حقه څخه چي رسول او قرآن دي، نو دې دومره جرئة عظيمه ځای نار دی ابد الآبدين. والعجب لمن لا يستطيع الصبر على نار فتيلة الشمع التي هي اضعف النيران سويعة كيف تجرء على عمل يعني الكذب على الله وانكار الحق الذي يستوجب له النار التي وقودها الناس والحجارة.

## وَالَّذِينَ جَاهَدُوا فِينَا

جهاد په عربي کې بذل الوسع والطاقة ته وايي والمعنى هغه کسان چي کوشش او خپل طاقت نه سپموي له جهاده د كافرانو سره او خپل ځانونه يې قرباني ته اماده کړي وي چي دې جهاد ته آنحضرت ﷺ جهاد اصغر ويلی دی. كما جاء في الحديث الصحيح، او يا معنی دا ده چي د نفس د خواهشاتو او هواء

سره مقابله او جهاد کوي چې په هغه حدیث کې رسول اللهﷺ جهاد اکبر ویلی دی، وجه يې هم دا ده چې جهاد د کفارو سره ګاهې ګاهې پېښېږي او جهاد د نفس او هوای دائمي دی الی وقت الموت "فینا" ای في ابتغاء مرضاتنا ونصرة دیننا وامتثال اوامرنا والانتهاء عن مناهینا.

لَنَهۡدِيَنَّهُمۡ سُبُلَنَاۚ

موږ به ده ته هدایت وکړو د لارو د رسېدو موږ ته بلا کیف. یا معنی دا ده چې هدایت د لارو د رسېدلو موږ ته بلا کیف یا معنی دا ده چې هدایت د لارو او کارو د خیر به ورته وکړو او توفیق د عمل به هم ورکو قال الله تعالی والذین اهتدوا زادهم الهدی، له ابی درداء رضی الله عنه څخه روایت دی چې ده وویل چې معنی د آیت دا ده الذین جاهدوا فیما علموا لنهدینهم الی مالم یعلموا، او عطاء رحمه الله وایي معنی د آیت دا ده الذین جاهدوا في رضائنا لنهدینهم سبل ثوابنا، او جنید بغدادي رحمه الله وایي والذین جاهدوا في التوبة لنهدینهم سبل الاخلاص.

**درویش وایي:** چې په متعلق د دې آیت او د دې د تفاسیرو د علماء الاسلام مناسب یو تاریخي حکایت ته غوږ ونسئ:

تاریخ وایي: د ابراهیم خواص رحمه الله (چې د یو ناموري ولي الله نوم دی) دا عادت ؤ چې په سفر به یو خوا ته تلی څوک يې نه خبرول او نه يې خپل د سفر جهت چا ته بیاناوه، بلکې خپل د اوبو مشکوله به يې ورسره واخستل راهي به سو، حامد رحمه الله وایي (چې د ابراهیم خواص رحمه الله مخلص ؤ) چې موږ یوه ورځ د ده سره په مسجد کې ناست ؤ، ابراهیم رحمه الله خپله مشکوله را واخستل راهي سو، حامد وایي چې زه وروسته د لېرې څخه په پسې ووم حتی چې قادسیه ته ورسېدلو، حامد وایي چې ابراهیم رحمه الله ما ته وویل یا حامد الی این؟ (چېرې ځې) ما ورته وویل چې زه په تا پسې یا سیدي را ووتم مقصد د سفر مې نه دی را معلوم، ابراهیم رحمه الله را ته وویل انا ارید مکة ان شاء الله تعالی، حامد رحمه الله وایي ما ورته وویل چې زه هم اراده د مکې لرم ان شاء الله تعالی. څو ورځې چې مو سفر پر لور د مکې وکړی، یو ځوان را سره ملګری سو، نو زموږ یوه شبانه روز ملګری ؤ چې لمونځ يې نه کاوه، حامد وایي ما ابراهیم رحمه الله ته وویل چې دا ځوان لمونځ نه کوي، نو ابراهیم رحمه الله کښېنستی او ځوان ته يې وویل چې ته چېرې ځې؟

ځوان ورته وويل چې حج ته د بیت الله ځم ان شاء الله تعالی، نو ابراهیم رح ورته وويل يا غلام مالک لاتصلي والصلوة اوجب عليک من الحج. ځوان ورته وويل يا شيخ ما علي صلوة، پر ما لمونځ نه دی فرض، ابراهیم رح ورته وويل چې ته مسلمان نه يې؟ ځوان ورته وويل يا، ابراهيم رح ورته وويل چې ته په کوم دين يې؟ ځوان ورته وويل زه نصراني يم. لکن موږ په دين نصرانيت کې اشارات د توکل على الله ډېرې ليدلي دي، نو ما د خپل ځان سره قرار داد وکړی چې زه به د توکل على الله ملکه (يعني عادت) په ځان کې پيدا کوم، حامد وايي ابراهيم رح ماته وويل کار مه په لره راسره ملګری دي وي، نو ځوان راسره ملګری دی حتى چې بطن مرو ته ورسېدلو چې له هغه ځايه احرام تړل کېدی يعني ميقات ؤ، نو ابراهيم رح خپل کالي وکښل يعني د سفر کالي چې خيرن سوي وه او په اوبو يې پاک پرېوله، ابراهيم رح کښېنستی او ځوان ته يې وويل چې نوم دي څه شی دی؟ ځوان ورته وويل عبد المسيح، نو ابراهيم رح ورته وويل يا عبد المسيح دا د حرم مکي حدود دي چې په احرام خلک ور داخلېږي او په مثل ستا يعني چې مسلمان نه وي د خول د حرم حرام دی، قال الله تعالى انما المشركون نجس فلا يقربوا المسجد الحرام بعد عامهم هذا.

**سوال:** په دې آيت کې خو مشرکون ذکر سوي دي، ځوان خو نصراني ؤ، نو دا آيت د منع د ځوان ځرنګه کېدای سي؟

**ځواب:** نصارى که څه هم د بت عبادت نه کوي لکن عيسى ابن الله بولي د هغه عبادت کوي او د صليب هم عبادت کوي. خير ابراهيم رح ورته وويل يا عبد المسيح تاچې خپل کشف الحال ماته وکړی چې زه نصراني يم ډېر فهم کوه چې مکې ته داخل نه سې، که په مکه کې ما ته وليدلې موږ پر تا سخت انکار کوو، خير حامد وايي ځوان مو پرېښو، موږ احرامونه وتړل مکې مکرمې ته ولاړو، حامد وايي چې موږ چې د مکې له اعمالو څخه فارغه سوو عرفات ته ولاړو، موږ په عرفات کې ناست يو هغه زموږ ملګری ځوان محرم دی په خلکو کې شاوخوا ګوري حتى موږ يې وليدلو پر ابراهيم رح ور نسکور سو سر او لاس ونه يې ورمچ کړه ابراهيم رح ورته وويل ما الحال يا عبد المسيح؟ ده ورته وويل هيهات انا اليوم عبد من المسيح عبده (زه نته ورځ عبد المسيح نه يم بلکې بنده د هغه چا يم چې مسيح يې بنده ؤ) ابراهيم رح ورته وويل

چي خپله قصه راته وکړه، ځوان ورته وويل چي زه چي تاسي له ځانه جلا کړم يو ځای کښېنستم چي قافله د حاجيانو راغله زه ورولاړ سوم ځان مي دوی ته داسي معرفي کړی چي زه هم مسلمان يم او محرم يم نو زه ددوی سره حرم مکي ته داخل سوم او زما سترګې پر کعبه مبارکي ولګېدلې نو له دينو نه مي له زړه څخه وتل بېله اسلامه نو مي کلمه مبارکه وويل مسلمان سوم، بيا مي غسل وکړی او احرام مي وتاړه، د حج نيت مي وکړی دا ئن ګرده ورځ په تاسي پسي ګرځېدم، حامد وايي چي ابراهيم رحمه الله ماته وکتل او وه يې ويل انظر الى بركة الصدق في النصرانية كيف هداه الى الاسلام. نو ځوان زموږ ملګری سو حتى مات بين الفقراء رحمه الله.

وَإِنَّ ٱللَّهَ لَمَعَ ٱلۡمُحۡسِنِينَ ﴿٦٩﴾

او په تحقيق خدای جل جلاله ملګری دی د محصنانو بالنصر والاعانة في الدنيا والثواب والمغفرة في العقبٰى.

**درويش وايي**: چي تفسير د سورت العنکبوت پر يوولس (۱۱) بجې د ورځي د جمعې مبارکي د صفر الخير (۱۴۳۱) هـ ق په توفيق او فضل د خدای جل جلاله پای ته ورسېدی، الحمد لله والمنة والصلوة والسلام على سيد البرية وآله الكملة وصحبه البررة، وروسته تفسير د سورت روم شروع کېږي ان شاء الله تعالى العزيز.

**((مناجات))**

**چهار چيز اورده ام شها که در ګنج تو نيست**
**عاجزی و مسکينی فقر ګناه آور ده ام**

الهي عبدک العاصي آتاکا ......... مقراً بالذنوب و قد دعاکا
فان ترحم فانت لذاک اهل ......... وانوان تطرد فمن يرحم سواکا
حاشالجودک ان تقنط عاصياً ......... الفضل اجزل والمواهب اوسع



سُوْرَةُ الرُّوْمِ مَكِّيَّةٌ وَّهِيَ **بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ** سِتُّوْنَ اٰيَةً وَّسِتُّ رُكُوْعَاتٍ

سورت روم مكي دی او آيتونه يې شپېته دي، روح البيان وايي پېله فسبحان الله الآية. چې هغه مدني دی، او روح المعاني وايي چې ابن عباس او ابن الزبير ﷺ يې مكي بولي، بلكې ابن عطيه او نور وايي چې په مكي والي كې دد ې سورت اختلاف نسته او هيڅ آيت مدني نسته پكښې، او حسن رح وايي الا قوله تعالى فسبحان الله حين تمسون الآية: رب يسر ولا تعسر وتممه بالخير والعافية وبک نستعين.

**الٓمّٓ ۝١ غُلِبَتِ الرُّوْمُ ۝٢**

**درويش وايي:** چې د حروف مقطعه قرآنيه بيان د سورت بقره په شروع كې تېر سوی دی او اختلافات د مذاهبو هم هلته ذكر سوي دي.

ترجمه: مغلوب كړل سوه روميان چې اهل كتاب وه د فارسيانو له خوا څخه چې بت پرستان وه.

**درويش وايي:** چې ترمذي او حاكم له ابن عباس رض څخه روايت كړی دی چې د مشركانو د مكې دا خوښه وه چې په دې جنګ كې د روم او د فارس، فارس كاميابه سي او روميانو ته شكست وركړي، ولې اهل فارس بت پرستان وه، او د مسلمانانو دا پېرزوينه وه چې روميان كاميابه سي او فارسيانو ته ماته په نصيب سي، ولې روميان كه څه هم كافران وه لكن اهل كتاب وه، نو په جنګ كې ابتداء فارسيان كاميابه وه او روميانو ته يې شكست وركړی، نو دا آيت نازل سو.

روح المعاني وايي چې روم د يوې لويې قبيلې نوم دی چې بعضي مؤرخينو يې نسب داسې بيان كړی دی: من اولاد رومي من يونان بن علجان بن يافث بن نوح[۳]. او بعض اهل تاريخ وايي من ولد يافان بن يافث بن نوح[۴]، او بعض وايي من ولد رعويل بن عيص بن اسحاق بن ابراهيم[۴].

**فِيْٓ اَدْنَى الْاَرْضِ وَهُمْ مِّنْۢ بَعْدِ غَلَبِهِمْ سَيَغْلِبُوْنَ ۝٣**

او روميان وروسته تر مغلوبيت (غلب مصدر دی مبني للمفعول) ژر دی چې غلبه به پيدا كړي پر فارس په يو څو كاله كې.

فِي بِضْعِ سِنِينَ ؕ

**پوهـه:** چي لفظ د بضع، بعض اهل لغت وايي چي له (۳) څخه تر (۷) پوري او بعض وايي تر (۹) پوري او بعض وايي چي ما دون تر (۱۰)، جوهري مصنف الصحاح في اللغة کي ويلي دي چي تر شل چي تېر سي لفظ د بضع نه استعمالېږي لکن قول دده باطل دی؛ ولې چي په صحيح حديث کي راغلي دي: الايمان بضع و سبعون شعبة.

تفصيل: هذه الآية، کسرٰی يعني پرويز بن هرمز بن نوشيروان چي د فارس شاه ؤ د روند لښکر يې روم ته واستاوه چي قومندان بر جسته د فوج د شهريزاد په نامه ؤ او قيصر روم د روميانو سلطان خپل لښکر واستاوه چي د قومندان نوم يې يحيس ؤ، نو دا دوه لښکره په اذرعات او بصره کي سره مخامخ سوه چي دا ځای هغه نژدې ځای دی شام ته مخکو ته د عربو، نو اهل فارس غالبه سوه روميانو شکست وخوړی، نو مسلمانانو ته د مکې چي دا خبر د مغلوبيت د روميانو ورسېدی ډېر سخت خوابدي سوه او کفار مکه چي مشرکان وه ډېر خوشحاله او مسلمانانو ته د مکې به يې دا ويل چي تاسي اهل کتاب ياست او نصاری هم اهل کتاب دي، او موږ لکه فارسيان اميون يو، او دا دی زموږ وروڼو اهل فارس خو ستاسي پر وروڼو روميانو غلبه پيدا کړه، نو که تاسي زموږ سره يو وخت جنګ شروع کړی موږ درباندي غالبه کېږو، نو دا آيت نازل سو يعني وهم من غلبتهم سيغلبون الآية، نو ابوبکر ؓ راووتی مشرکانو ته د مکې يې وويل چي تاسي خو خوشحاله سولاست په غلبه ستاسي د وروڼو فارسيانو؛ نو قسم په خدای دی چي بېرته به په بل جنګ کي روم پر فارس غلبه پيدا کوي على ما اخبرنا بذالک نبينا ﷺ، نو ابي بن خلف و ابوبکر ؓ ته وويل کذبت، ابوبکر ؓ انت کذبت يا عدو الله، ابي ورته وويل چي راسه ما او تا ګرو يعني قمار سره کښېږدو (او قمار په هغه وخت کي نه ؤ حرام سوی) چي په پښتو وايي شرط به سره کښېږدو تر معلوم وخت پوري، نو لس لس اوښان يې سره شرط کړه او مده يې درې کاله کښېښوله يعني که په درې کاله کي روم غالبه سو، ابي ورته وويل زه به لس اوښان درکوم او که فارس غالبه سو ته به لس اوښان راکوې، خير دا قرار داد يې سره وکړی او ابوبکر ؓ رسول الله ﷺ ته يې دا حال بيان کړی، عليه الصلوة و السلام ورته وويل چي ما خو تاته داسي نه وه ويلي، يعني ما خو بضع په منځ کي تر درو پوري نه

وه ذکر کړي، ابوبکر ﷺ ته یې وویل چې ورسه بیرته د ابي سره مده ډېره کښېږده او شرط تر لس ډېر ورسره کښېږده، نو ابوبکر ﷺ بیرته ابي بن خلف ته ورغلی ابي ورته وویل څه کوې پښېمانه سوی خو نه یې، ابوبکر ﷺ ورته وویل یا پښېمانه نه یم لکن شرط به ډېر کړو او مده به هم ډېره کړو، ابي ورته وویل چې ښه دی شرط یې سل سل (۱۰۰) اوښان مده یې نهه (۹) کاله، بیا قرداد وکړل سو. او بعض راویانه وایي مده اووه (۷) کاله سوه، څه وخت چې أبي پر دې وېرېدی چې نباید ابوبکر ونه تښتي له مکې څخه نو ورته راغلی ابوبکر ﷺ ته یې وویل چې زه بېرېږم چې ته به له مکې څخه وتښتې، نو ماته به ضامن راکوې، ابوبکر ﷺ ورته وویل چې زما زوی عبدالرحمن ستا ژامن دی یعني که زه وتښتېدم او تا شرط وګټی زما عبدالرحمن زوی به تاته سل (۱۰۰) اوښان درکوي، اخیر الامر رسول الله ﷺ او ابوبکر ﷺ مدینې ته هجرت وکړی، نو اووه کاله چې پر پوره کېدو سوه له وخت څخه د قرارداد رومیانو پر فارسیانو غلبه وکړه او خپل آسان یې په مدائن کې د فارسیانو وتړل، په دې دوران کې د احد غزاء منځ ته راغله ابي بن خلف هم په هغه غزاء کې د کفارو په لښکر کې شامل سو جنګ چې جوړ سو د علیه الصلوة والسلام او د ابي بن خلف په مبارزه کې رسول الله ﷺ ابي بن خلف په خپله توره وواهه سخت ټپي سو، نو ابي بن خلف د ټپي کېدلو له سببه بیرته مکې ته راستون سو او په مکه کې مړ سو او شرط ابوبکر ﷺ وګاټه، نو له ورثه څخه د ابي یې سل اوښان واخستل هغه اوښان یې و علیه الصلوة والسلام ته راوستل، علیه الصلوة والسلام ورته وویل تصدق یې، خیرات یې کړه. واخرج الترمذي حدیث ابي بکر ﷺ مثله.

**مسئله:** امام ائمة ابو حنیفه ﷺ وایي چې عقود فاسده لکه ربوا او قمار په دار حرب کې په منځ کې د مسلمانانو او د کافرانو روا دی، دلیل یې قصه د ابوبکر ﷺ او د ابي بن خلف ده کما مر چې په هغه وخت کې مکه مبارکه نه وه فتح سوې او دار حرب وه، او بل دا دلیل دی چې اموال د کافر په دار حرب کې معصوم نه دي یجوز اخذها مالم یکن عذرًا بعد الاستیمان، یعني په پاسپورټ ورغلی وي کذا قال المظهري.

**درویش وایي:** چې په سبب کې د غلبة الروم پر فارس باندې په تواریخو قدیمه وو کې اختلاف دی. په روضة الصفاء کې وایي چې د خسرو پرویز چې د فارس

سلطان ؤ څلور کاله د سلطنت پر رومیانو تېر سوه غدر یې وکړی د رومیانو د بادشاه سره او بادشاه یې سره د یوه زوی بناطوس قتل کړی او بل زوی یې ؤ خسرو و تښتېدی، نو خسرو دده کومک وکړی او دري لوړ قدره رئیسان یې ورسره کړه سره د لوی لښکره فدخلوا الشام وفلسطین وبیت المقدس او د رومیانو ډېر ملایان چي په رومي ژبه ملا ته دوی اسقف وایي بنديان يې کړه او د نصاری ؤ یعني د رومیانو صلیب چي هوري ښخ وه په یوه تابوت کي د سرو زرو هغه یې و خسرو ته ورواستاوه او پر اسکندریه یې حمله وکړه هغه ښاریې هم له رومیانو څخه ونیوی او ښارونه د نوبة یې څندي ونیول حتی تر اطرافو د قسطنطنیه ورسېدل او رومیان یې وهځول چي زوی ته د قیصر تسلیم سول، او رومیانو پر خپلو ځانو بیعت د یو ستر شخصیت چي نوم یې هرقل ؤ وکړی دا یو سلطان عادل ؤ چي له خدایه یې ډېری چي خرابي د فارسیانو په ښارو کي د روم ولیدلی او قتل د رومیانو او غارت کړي د فارسیانو ولیدل خدای ﷻ ته یې عجز وکړی او ژړل به یې چي خدایه ته په خپل قدرت عظیمه سره رومیان له تسلط څخه د فارسیانو خلاص کړې دعاء یې د وخت سره د اجابت مصادف سوه، څو شپې یې پرله پسې خوب ولیدی چي یو چا وده ته خسرو راوستی په غاړه کي یې ځنځیر ؤ او په خوب کي چا وده ته وویل چي تلوار وکړه په محاربه کي د پرویز خسرو، ولي تاته خدای ﷻ بری درکوي او نصرت درسره کوي، نو هرقل خپل عسکر سره جمع کړه اعتمادًا علی تلک الرؤیاء المتعددة، خسرو پرویز چي خبر سو (۱۲۰۰۰) زره فوج یې سره د غټو قوماندانانو په مشري ورته راوستل جنګ لاس په لاس شروع سو، هرقل د کسری پرویز فوج داسي ماته ورکړه چي نهه زره (۹۰۰) عسکر د پیروز خسرو سره د رئیسانو ورقتل کړه او خوبونه یې خدای ﷻ رشتیا کړه، له قسطنطنیه څخه راوتلی ؤ بیرته خپل پای تخت ته ستانه سوه. وصدق قوله تعالی وهم (ای الروم) بعد غلبهم (وروسته تر مغلوبیت د فارس د فوجو د خوا) سیغلبون (رومیانو بیرته غلبه پیدا کړه پر فارسیانو) او په بعض روایاتو کي راغلي دي چي روم خپل آسان په مدائن کي چي د خسرو د مملکت یو لوی ښار ؤ ودرول؛ روح المعاني وایي چي ما په بعض کتابو کي ولیدل چي سبب د ظهور د رومیانو پر فارسیانو دا ؤ چي کسری یعني د فارس باچا و خپل

امير ته چي شهريار يې نوم ؤ چي په جنګ كي د روميانو دى سپه سالار مقرر سوى ؤ خط نوشته كړى چي ته خپل وروږ فرخان قتل كړه چي فرخان يوه خبره كړې وه چي هغه خبره دا وه چي زه خپل ځان داسي وينم چي پر تخت د كسرىٰ ناست يم، دا خبره كسره ته رسېدلې وه او ډېر درد ورغلى ؤ چي فرخان لكه چي زما د قتل توطيه ترلي ده، نو له دې سببه يې شهريار ته امر وركړى چي ته خپل وروږ فرخان قتل كړه، نو شهريار خپل وروږ فرخان قتل نه كړى، كسرىٰ چي خبر سو چي شهريار خپل وروږ فرخان قتل نه كړى. نو بل مكتوب يې صادر كړى چي شهريار زما له خوا معزول دى، او فرخان يې دده پر ځان مقرر كړى، دده خبيث دا خيال ؤ چي ددې دوو وروڼو تر منځ چاک پيدا كړي يو به بل قتل كړي، فرخان چي په دې حقيقت حال خبر سو دده حكومت ورور شهريار ته ور پرېښو، او شهريار د خپل ورور فرخان په مشوره و قيصر روم ته خط نوشته كړى او دوى د ملک الروم څخه كومک وغوښتى چي زموږ سره كومک وكړه پر قتال د فارس ملک الروم هم همدا غسي وكړه او فارسيانو ته يې شكست وركړى او دا خبر مسلمانانو ته ورسېدى، ففرح المسلمون وهو قوله تعالى وهم من بعد غلبهم (او روميان وروسته تر مغلوبيت به پر فارسيانو غلبه پيدا كړي) نو دا غلبه د روميانو پر فارسيانو باندي له آيات بيناتو څخه ده چي شاهد ده پر صدق د نبوت د عليه الصلوة والسلام او پر دې چي قرآن مجيد من عند الله دى، ولي دى كه اخبار بالغيب دى الذي لايعلمه الا الله العليم الخبير.

**فائده مهمه**: حضرت علي، ابن عباس، ابن عمر او ابو سعيد الخدري ﷺ دا عبارت قرآني غلبت الروم پر صيغه د معلوم وايي او سيغلبون پر صيغه د مجهول وايي، نو معنى د آيت داسي ګرځي چي روم غلبه پيدا كړه پر اطرافو د شام او دوى به مغلوب كړل سي د مسلمانانو له خوا څخه وقد غزاهم المسلمون في السنة التاسعة من نزول الآية ففتحوا بعض بلاد الروم يعني چي ددوى په قبضه كي وه، مظهري وايي چي دا قرآئت قرائت شاذه دى او اول قرائت متواتره دى، او مظهري ددې قرآئت شاذه توجيه دا كړې ده چي امكان لري چي عليه الصلوة والسلام په وحي غير متلو سره دا ويلي وي چي تر ورځ څو غلبه وكړه روميانو پر فارسيانو في ادنى الارض وهم يعني روميان پس له غلبې څخه پر فارسيانو سيغلبوهم المؤمنون فقر،

ذالک الوحي الغیر في القرآن بعض القراء على رواه الترمذي عن ابی سعید الخدري رض بفتح الغین غلبت على البناء للفاعل وسیغلبون على البناء للمفعول.

**درویش وایي:** چي روح المعاني کوشش کړی دی چي ددې دوو قرائتو تطبیق سره وکړي لکن لم یتیسر له ذالک على وجه یقبله العقول السلیمة والله اعلم، او روح البیان خو اول قرائت متواتره راوړی دی او وروسته یې قرائت شاذه رااوړی دی د روایت شاذه په بیان کي یې ویلي دي سیغلبون على صیغة المجهول ای یکونوا (ای الروم) مغلوبین في ایدي المسلمین فکان ذالک على ید عمر رض چي ده غلبه وکړه پر بلاد د شام او بیت المقدس یې د رومیانو له قبضې څخه وه ایستی په سنه (۱۵- یا ۱۶) کي د هجرت او بیت المقدس په قبضه کي د مسلمانانو (۴۰۰) څلور سوه کاله، او اووه اوویا (۷۷) کاله وروسته فرنګیانو غلبه پر وکړه د برات په میاشت په سنه (۴۹۲) من الهجرة او ددوی په لاس کي پاته ؤ (۹۱) کاله الى ان فتح الله على ید الناصر صلاح الدین بن یوسف بن ایوب في یوم الجمعة (۱۷) رجب سنه (۵۸۳ هـ) واما بنعمة ربک فحدث.

**درویش وایي:** چي بیانول ددې آیت غلبت الروم الآیة د تواریخو سره برابر او قرائت متواتره او شاذه څېړل د تفسیر ایوبي هدیه ده، اللهم منک والیک.

لِلّٰهِ الْاَمْرُ مِنْ قَبْلُ وَمِنْ بَعْدُ ۚ وَيَوْمَئِذٍ يَّفْرَحُ الْمُؤْمِنُوْنَ ۙ﴿۴﴾

خدای ﷻ ته ده قضاء نافذه د مخه تر غلبه د روم پر فارس باندي یعني چي روم مغلوبه ؤ. او وروسته تر غلبې د روم پر فارس باندي کمامر بیانه، او په دغه ورځ د غلبې د روم پر فارس خوشاله وګرځېدل مؤمنان په نصرت د خدای ﷻ یعني چي اهل کتاب یې چي اهل روم وه غالبه وګرځول پر هغو چي کتاب یې نه درلود او مشرکان وه چي اهل فارس وه او په دې هم خوشاله سوه چي د مؤمنانو رشتیا والی ثابت سو. السدي رح وایي فرح النبي ﷺ بظهورهم وغلبتهم على المشرکین یوم بدر وظهور اهل الکتاب على اهل الشرک.

**سوال:** په اوله کي ددې سورت تېره سوه چي دا سورت مکي دی، نو سدي رح څرنګه وایي چي یوم بدر، د بدر غزاء خو وروسته تر هجرت وه؟

**ځواب**: جلال الدين المحلي رحمه الله وايي فرح المسلمون بذالک وعلموا يوم وقوعه يوم بدر بنزول جبرئيل ؑ بذالک مع فرحهم بنصرهم على المشركين په بدر كي فافهم، او بعض مفسرين وايي چي سبب د خوشالۍ د مؤمنانو دا ؤ چي روم كه څه هم اهل كتاب وه خو بيا هم كافران وه لكه فارس، نو خداى ﷻ يو وار فارس پر روم غالبه كړى او بيا يې روم پر فارس غالبه كړى، نو ددې دوو كافرو قومو تر منځ تفارق او تضاد پيدا سو او د هر يوه شوكت او دبدبه كمه سوه، هم دا سبب دى چي په دعاء ماثوره كي داسي راغلي دي: اللهم اشغل الظالمين بالظالمين واخرجنا من بينهم سالمين غانمين.

بِنَصۡرِ ٱللَّهِۚ يَنصُرُ مَن يَشَآءُۖ وَهُوَ ٱلۡعَزِيزُ ٱلرَّحِيمُ ۝٥

خداى ﷻ نصرت وركوي هغه چا ته چي اراده يې وسي يعني فينصر هؤلاء تارةً وهؤلاء تارةً اخرى يعني د مثال په توګه فارس او روم "وهو العزيز" خداى غالب دى په خپله اراده كي حتى چي انتقام د دنيا د يو كافر قوم څخه په بل كافر قوم سره اخلي "الرحيم" او خداى مهربان دى چي مرسته وه اهل الحق ته پر اهل الباطل وركوي.

وَعۡدَ ٱللَّهِۖ لَا يُخۡلِفُ ٱللَّهُ وَعۡدَهُۥ وَلَٰكِنَّ أَكۡثَرَ ٱلنَّاسِ لَا يَعۡلَمُونَ ۝٦

روح المعاني وايي چي وعد الله مصدر مؤكد لمضمون الجملة المتقدمة يعني قوله تعالى سيغلبون وقوله سبحانه ويفرح المؤمنون لان ذالک في معنى الوعد فالمعنى وعد الله وعداً، او عامل يې محذوف دى وجوباً كما في سبحانه وقد بين وجه الوجوب في النحو، ودې قسم مصدر ته نحات مصدر مؤكد لنفسه وايي.

"لايخلف الله وعده" خداى ج مخالفت له خپلې وعدې څخه نه كوي كه په متعلق د امور دنيويه وي او كه د امور اخرويه وي، لامتناع الكذب عليه تعالى.

ليكن ډېر خلک لكه كفار مكه نه پوهېږي په صدق د وعد د خداى ج يا په عدم الشريک له تعالى في المعبودية لجهلهم بشؤن الله ﷻ.

**سوال**: اسم جليل د الله تعالى خو په وعد الله كي عنقريب تېر سو، نو اظهار د اسم جليل په لايخلف الله كي د څه حكمت لپاره دى؟

**ځواب:** لپاره د تفخیم او د تعلیل حکمي دی، ولې چې د اسم جلیل معنی داده چې معبود بالحق او متصف په صفاتو د کمال او منزه د ټولو عیبو او نقائصو څخه دی نو تر خلف الوعد لوی نقیصه به څه وي؟.

يَعْلَمُونَ ظَاهِرًا مِّنَ الْحَيَوٰةِ الدُّنْيَا ۖ وَهُمْ عَنِ الْاٰخِرَةِ هُمْ غٰفِلُوْنَ ۝٧

دوی پوهیږي په ظاهرو چارو د ژوند ناقص او فاني یعني ده ژوند د دنیا لپاره یا تجارت وکړي یا یې زراعت وکړي یا نور ورته کسبونه وکړي، او دوی له آخرت څخه چې دار البقاء دی غافله دی.

**پوه سه:** چې د وهمه کلمه د هم اعاده د اول لپاره ده تاکید یا مبتداء د غافلون یې خبر دی او جمله خبر د هم اول ده.

**سوال:** جمله چې خبر واقع سي عائد وه مبتداء ته پکښې ضروري دی کما تقرر في النحو؟

**ځواب:** راګرځوا .د لفظ د مبتداء په خبر کي کافي دی د ربط لپاره کما في قوله الحاقة ما الحاقة وعلى التقديرين دا جمله دليل کامل د پر کامل غفلت د دوی له آخرت څخه. ضحاک رح په تفسیر کې د یعلمون وایي ظاهرًا الآیة یعلمون بنیان قصورها وتشقیق انهارها وغرس اشجارها، یعني الامور الموافقة لشهواتهم الملائمة لاهوائهم.

**فائده:** ظاهرًا چې یې نکره راوړی لپاره د تحقیر دی.

**سوال:** لایعلمون نفي د علم دی یعلمون ظاهرًا اثبات د علم دی، نو تناقض به نه وي؟

**جواب:** یا! مورد د نفي العلم بامور الدين والآخرة او مورد د اثبات علم پر امور د دنیا الدنیة الخسیسة.

**فائده:** په دې آیت کي تشبیه ده د اهل الغفلة عن الآخرة په بهائمو سره چې د هغو نظر مقصود دی پر اکل او شرب وبس، له ابن عباس رض څخه روایت دی یعلمون منافعها ومضارها (دوی پوهیږي په منفعتو د دنیا او په ضررو د دنیا) ومتی یزرعون ومتی یحصدون (چې کله به کښت کوو او کله به یې لو کوو)

وكيف يجمعون وكيف يبنون (او څرنګه به دنيا جمع کړو او څرنګه به کوټې او بنګلې جوړې کړو) يعني ونحو ذالک مما لايكون لهم منه في الآخرة اثر، وروى نحوه عن قتادة وعكرمة.

**پوه سه:** چې دا جمله يعني وهم عن الآخرة آه تاكيد دى د مضمون د دمخه جملې يعني اكثرهم لايعلمون تشبيهًا بالحيوانات.

**أَوَلَمْ يَتَفَكَّرُوا فِي أَنفُسِهِمْ**

آيا دوى فكر نه وهي په خپلو زړو كې.

**پوه سه:** چې همزه د استفهام لپاره د توبيخ دى او كلمه د واو لپاره د عطف ده پر محذوف. والتقدير اقصروا نظرهم على ظاهر من الدنيا كالحيوانات ولم يتفكروا.

**پوه سه:** چې "في انفسهم ظرف د تفكروا دى.

**سوال:** د في انفسهم څه فائده ده، ولې چې تفكر خو نه دى مګر په نفس كې؟

ځواب: دا له قسمه څخه د بسط او تحقيق د قرآن كريم دى نحو قوله يقولون بافواههم مع ان القول لايكون الا بالفم، فافهم، او يا عبارت قرآني محمول دى پر حذف د مضاف والمعنى او لم يتفكروا في امر انفسهم، ولې انفس اقرب دي دوى ته تر غيرها، نو په فكر وهلو په خپل ځان كې يعني په څه شي او ړنده كوي او په څه شي ليدل كوي او په څه شي خبري كوي او په څه تګ كوي. وامثال ذالک، نو چې دا فكر به دوى ته لوى بصارت حاصل كړي لان الانسان انموذج للعالم الكبير الصوري چې دا علم دوى ته حاصل سوى واى، نو دوى به داسي ويلاى.

**مَا خَلَقَ اللَّهُ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضَ وَمَا بَيْنَهُمَا إِلَّا بِالْحَقِّ وَأَجَلٍ مُّسَمًّى**

چې نه دي پيدا كړي خداى ﷻ اسمانونه او مځكه او هغه شيان چې په مابين كې د اسمانو او مځكې دي چې كائنات الجويه يې بولي، لكه وريځ، باران، واوره، پيلو، تناوي وغيرها مګر نه متلبس دي په حق سره يعني باطل او عبث نه دي بلكې حكمت بالغه او فوايد كثيره پكښې سته او انذار او بشارت پكښې سته، نو دوى به معرفت ته د خداى ج په توحيد سره لار پيدا كړې واى او بتان به يې په عبادت كې نه ور سره شريكولاى لان الجمادات لايليق بما يليق به خالق السموات والسفليات.

"واجل مسمى" تريو اجل معلوم پوري يعني دا اسمانونه او مځکه ومافيها وما عليها يې د خلکو لپاره نه دي پيدا کړي بل لاجل ينتهى اليه وبعد الاجل قيام د قيامت وي او ورځ د حساب او د ثواب او د عقاب به راځي کما قال عز من قائل: افحسبتم انما خلقناکم عبثًا وانکم الينا لا ترجعون، څوک چي په قلب سليم سره فکر ووهي په نظام کي د اسمانو او مځکي ومابينهما هغه به حکم قطعي وکړي چي خالق ددې نظام حکيم دی او حکيم عبث کار نه کوي، ومعظم الحکمة في خلقها معرفة خالقها مع صفاته الجلالية والجمالية من العلم الشامل والقدرة التامة وغيرهما، او که بعث او نشور او ثواب او عقاب نه وای نو د عارف او کافر به څه فرق وای.

وَإِنَّ كَثِيرًا مِّنَ النَّاسِ بِلِقَآئِ رَبِّهِمْ لَكَٰفِرُونَ ۝٨

او ډېر له خلکو څخه يعني اهل مکه په سبب د جهالت وعدم التفکر في خلق السموات والارض بل في خلق انفسهم په ملاقات د جزاء د رب ددوی چي دنيا تېره سي هر آئينه کافران دي ددوی ظن باطل لکه حکماء دا وايي چي دا دنيا ابدي ده او نه بعث بعد الموت سته او نه حساب او نه جنت او نه دوږخ سته.

أَوَلَمْ يَسِيرُوا۟ فِى ٱلْأَرْضِ فَيَنظُرُوا۟

آيا دوی سير او سفر نه کوي په مځکه کي او نظر په غور نه کوي.

**پوښته:** چي همزه لپاره د انکار دی او توبيخ وانکار النفي اثبات يعني که دوی سفر وکړي، او واو لپاره د عطف دی پر محذوف، والتقدير الم يخرج اهل مکة من ديارهم ولم يسيروا "في الارض فينظروا" منصوب دی په جواب کي د نفي (مراد نصب محلاً دی)

كَيْفَ كَانَ عَٰقِبَةُ ٱلَّذِينَ مِن قَبْلِهِمْ ۚ

چي څه رنګه سو اخير کار د هغو کسانو چي تر دوی دمخه وه په زمانه کي چي هغو هم لکه کفار مکه د بعث بعد الموت څخه انکار کاوه، والمراد الامم الماضية کعاد وثمود وقوم لوط وقوم فرعون وغيرهم.

**پوښته:** چي لفظ د کيف په محل کي د نصب دی خبر د کان دی او پر کان دمخه سو ولي دی متضمن معنى لره د استفهام الذي له صدر الکلام، وحاصل الآية چي

كفارو د مكې سير او سفر كړى دى او دوى ليدلي دي آثار د الذين كذبوا الرسل، يعني خرابي ودانې په سبب د تكذيب د رسولانو، نو دوى بايد عبرت اخستى واى او تكذيب د رسول محمد ﷺ يې نه كولاى ... بيت:

پند گير از مصائب ديگران ...... تا نگيرند ديگران زتو پند

او كفار مكه تر مرغانو هم جاهلان دي ... بيت:

نرود مرغ سوئى دانه فراز ..... چو بيند مرغ ديگر اندر بند

**كَانُوٓا أَشَدَّ مِنْهُمْ قُوَّةً وَأَثَارُوا الْأَرْضَ**

وه هغه كفار ماضيه سخت تر كفارو د مكې از روى قوت لكه عاد، ثمود وغيرهم. يعني چي كفار د قرون ماضيهٔ سخت وه په قوت كي تر اهل مكه او دراز دراز عمرونه يې وه او اثار يې په ځمكه كي ډېر وه تر اهل مكه چي بلنده بلنده قلاوي يې درلودې او ښه ښه باغونه يې درلوده.

او دوى ځمكه اړول يعني يوې كول يې لپاره د كښت، كذا قال الفراء رحمه الله او بعض مفسرين وايي چي ځمكه يې كينله لپاره د اوبو لكه څاهان يې كښله يا لپاره د استخراج د معدنيانو الى غير ذالك.

**فائده:** غوايي ته ثور وايي له هم دې سببه چي دى ځمكه پرله اړوي يعني يوې كوي يې لپاره د كښت، او محمد بن الحسين بن علي ﷺ ته چي امام باقر وايي لانه شق العلم ودخل فيه مدخلاً بليغًا.

**بوه سه:** چي واثاروا الارض سره د ما عطف عليه عطف دى پر كانوا.

**وَعَمَرُوهَآ أَكْثَرَ مِمَّا عَمَرُوهَا**

او امم ماضيه آباده كړې وه ځمكه بالا تر هغه چي كفارو د مكې ځمكه د مكې آباده كړې ده.

**بوه سه:** چي اكثر منصوب دى صفت د مصدر محذوف دى، والتقدير عمروها عمارة (دا مصدر محذوف دى) اكثر تر عماره د اهل مكه اياها، ولي چي اهل مكه په واد غير ذى ذرع كي ژوند كوي، او دوى تسلط پر بله ځمكه نه لري.

**فائده:** په دې جملو كي تهكم يعني پسخند دى په اهل مكه كافرانو سره، ولي

چي دوی فخر په مکې کاوه او په دنيايي ژوند يې کبر او لويي کول، او سره ددې چي دوی اضعف حالاً په ټرې کې وه او فراخي په مځکه کې نه لرې او تسلط پر نورو بندګانو د خدای ج هم نه لري نه خارج المکة عمارات لري، او کډنه وای د دوی رحلت په ژمي او دوبي کې يمن او شام دوی به د لوږې مره سوي وای.

وَجَآءَتْهُمْ رُسُلُهُم بِالْبَيِّنَٰتِ ۖ فَمَا كَانَ اللَّهُ لِيَظْلِمَهُمْ

او راتګ کړی وو امم ماضيه وو ته رسولانو ددوی، او نه ؤ خدای ج چې دوی يې هلاک کړه بالاستيصال چي پر دوی ظلم وکړي.

**فائده**: د قرآن کريم له فلاغت څخه دا دی چي جمله د ماکان الله آه عطف ده پر دوو جملو محذوفو باندې چي هغه عطف علی قوله تعالی وجائهم الآية. والتقدير جائتهم رسلهم بالبينات فکذبوهم فدمر الله عليهم في الدنيا (په دنيا کې يې پر دوی هلاک مسلط کړی) فما کان الله ليظلمهم.

**فائده**: تر لام جاره د مخه ان مقدر دی لان حرف الجر لايدخل علی الفعل بدون التاويل بالاسم، والمعنی ماکان صفة الله ظلمهم (ظلمهم معنی ده د ليظلمهم وروسته تر تقدير د ان مصدريه او دې لام ته په نحو کې لام جحود للانکار وايي) يعني مايفعل الله الظلم ای التعذيب بغير جرم وارسال الرسل لينذروهم.

وَلَٰكِن كَانُوٓا۟ أَنفُسَهُمْ يَظْلِمُونَ ۝

لکن وه دوی چي پر خپلو ځانو يې ظلم وکړی، ولې چي دوی داسې اعمال کوله چي مفضي ددوی و هلاک ته وګرځېدله.

ثُمَّ كَانَ عَٰقِبَةَ ٱلَّذِينَ أَسَٰٓـُٔوا۟ ٱلسُّوٓأَىٰٓ

وروسته تر تدمير او هلاک (ثم، عطف دی پر جمله مقدره باندې، يعني فدمرهم الله) سو اخير کار د هغو کسانو چي دوی عملونه بد کوله.

**پوهه**: چي سوآی تانيث د اسوء دی کالحسنی تانيث احسن يعني الخصلة التي تسؤهم او عقوبة هي اسوء العقوبات او هو مصدر کالبشری نعت به مبالغة، وقيل السوی اسم من اسماء جهنم کما ان الحسنی اسم من اسماء الجنة.

**پوه سه:** چي قراء د اهل کوفې او شام عاقبة په نصب سره وايي چي خبر د کان يې بولي او اسم د کان دا بولي.

أَنْ كَذَّبُوا بِآيَاتِ اللَّهِ وَكَانُوا بِهَا يَسْتَهْزِئُونَ ⑩

چي دوی تکذیب وکړی د آیاتو د خدای ﷻ يعني د آياتو قرآنيهٔ يا د معجزاتو د انبياء ؑ او په هغو يې پسخند واهه يعني د غه اعمال سيئهٔ د دوی باعثه کړه پر دې چي تکذيب د آياتو د خدای ﷻ يې وکړی او په آياتو د خدای ﷻ يې پسخند واهه.

**پوه سه:** چي وَكَانُوا عطف دی پر كذبوا علت دی داخل دی په علت کې د تعذيب دنيوي او اخروي د دوی.

**فائده:** په صيغه يې د مضارع راوړی للدلالة على الاستمرار والتجدد.

**فائده:** قراء د حجاز او بصرې يې په رفع سره وايي چي اسم د کان يې بولي وخبره السوء ا بولي.

اللَّهُ يَبْدَأُ الْخَلْقَ ثُمَّ يُعِيدُهُ ثُمَّ إِلَيْهِ تُرْجَعُونَ ⑪

خدای پاک پيدا کوي مخلوق ابتداءً وروسته راګرځوي خلق بالبعث بعد الموت، وروسته تر بعث راجع کېږي و خدای ﷻ ته چي جزاء د اعمالو ورکړي ان خيرًا فخير وان شرًا فشر.

**فائده:** بعض قراء دا لفظ په يا سره وايي يعني يرجعون، ولي چي ضمير يې و قوم ته راجع دی او د قوم اسم ظاهر غائب دی او اکثره قاريان يې په تا د مخاطب وايي التفاتًا من الغيبة الى الخطاب للمبالغة في المقصود.

وَيَوْمَ تَقُومُ السَّاعَةُ يُبْلِسُ الْمُجْرِمُونَ ⑫

"ويوم الساعة" ظرف متعلق على "يلبس المجرمون" ومجموع الجملة معطوفة على قوله الله يبدء الخلق الآية، قتاده او کلبي رح د يلبس ترجمه په يئسون من كل خير کوي، او مجاهد رح وايي چي رسوا به سي وه اهل محشر ته، او فراء رح وايي چي قطع به سي کلام د دوی او اعتذار د دوی وعلى كل تقدير فالمراد بالمجرمين الكافرون، او قاموس وايي چي مبلس په حرکاتو سره من لا خير عنده وابلس ويتحير ويئس متحدة في المعنى.

وَلَمْ يَكُن لَّهُم مِّن شُرَكَآئِهِمْ شُفَعَٰٓؤُا۟ وَكَانُوا۟ بِشُرَكَآئِهِمْ كَٰفِرِينَ ﴿١٣﴾

یعني د هغو شیانو څخه چي دوی شریک کړي وه د خدای ج سره په عبادت کي پر زعم ددوی انهم یشفعون لنا عند الله فهم دغه بتان "شفعٰٓؤا" شفاعت کونکي ددوی نه دي لکونها جمادات لاتنفع ولاتضر، او کافران به له شرکاؤ څخه منکر سي چي دوی یعني کافرانو خو هغه نه وسوه حین یئسوا من شفاعتهم ونفعهم، او بعض مفسران وایي چي دوی په سبب د شرکاؤ ددوی کافران بلل کېدل "ویوم تقوم الساعة" دا ظرف دی متعلق دی په یتفرقون پوري.

وَيَوْمَ تَقُومُ ٱلسَّاعَةُ يَوْمَئِذٍ يَتَفَرَّقُونَ ﴿١٤﴾

"یومئذ" بدل دی من یوم القیامة یعني "یوم تقوم الساعة" او تاکید له. والمعنی یوم اذا کانوا مبلسین عن شرکائهم کافرین بالله، نو په دې ورځ به سره جلا سي بعد الحساب فریق في الجنة وفریق في السعیر ثم لایجتمعون ابداً وان کانوا في المحشر مجتمعین ..... شعر:

یکی خندان بصد عشرت .... یکی نالان بصد حسرت
یکی در راحت و صلت .... یکی در شدت هجرت

فَأَمَّا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ وَعَمِلُوا۟ ٱلصَّٰلِحَٰتِ فَهُمْ فِى رَوْضَةٍ يُحْبَرُونَ ﴿١٥﴾

الفاء للتفصیل هرچه هغه کسان دي چي ایمان یې راوړی وي او اعمال صالحه یې هم کړي وي، نو هغه به په روضه کي وي.

**پوه سه:** چي روضه هغه ځای ته وایي چي ښې ښې مېوې پکښې وي او قسم قسم ګلان پکښې موجود وي او ویالې پکښې جاري وي، مراد څنې ریاض الجنة دی.

"یحبرون" ابن عباس رض وایي یسکنون، او مجاهد او قتاده رح وایي ینعمون او ابو عبیده وایي یسرون و الحبرة السرور، وقیل الحبرة کل نعمة حسنة و التحبیر التحسین، او په نهایه کي وایي الحبرة بفتح الحاء النعمة وسعة العیش و الحبرة بالکسر الجمال و الهیئة الحسنة وفي القاموس نحوه.

**درویش وایي:** چي وهذه المعاني التي ذکروها متلازمة یعني اهل جنت ته دا ټولي معاني حاصل دي په حدیث شریف کي راغلي دي چي ابو موسیٰ الاشعري

يو وخت قرائت وايه او عليه الصلوة والسلام غوږ ورته نيولی ؤ نو ابو موسی چي وروسته خبر سو چي عليه الصلوة والسلام ستا و قرائت ته غوږ نيولی ؤ نو ويې داسي وويل لو علمت انک يا رسول الله تسمع لقرائتي لحبرت بها لک تحبيراً، يعني ما به په ډېر ښه آواز او په ښه لهجه به مي قرائت ويلی وای، او الطبراني او البيهقي عن ابی امامة رض عن النبي ﷺ چي دا مبارک وويل: ما من عبد يدخل (يعني داره في الجنة) الا عند راسه وعند رجليه ثنتان من حور العين يغنيان (غزل وايي) باحسن صوت سمعه الانس والجن وليس بمزمار الشيطان (او نه دی د شيطان رباب چي د فسق او فجور غزلي دی وايي) بلکه بتحميد الله وتقديسه (يعني د حمد د خدای ﷻ او د پاکۍ د خدای ج غزلي وي، مظهري رح وايي چي ضرب بالشعر والغناء في الدنيا لايحصل الا بذکر المحبوب بکلام موذون في صوت حسن موذون ولاشک ان اهل الجنة اذا فازوا برؤية جمال الله ﷻ الذي لاجمال فوقه فلا محبوب لهم غيره تعالی فيطربون بسماع ذکره تعالی بصوت حسن موذون. وجاء في بعض الاحاديث ان الحور العين يغنين لازواجهن باصوات ما سمعها احد قط ومما يغنيين نحن الخيرات الحسان، ازواج قوم کرام کذا اخرج الطبراني مرفوعًا والبيهقي وابن ابی الدنيا عن انس رض نحوه.

**درويش وايي:** چي روح المعاني او روح البيان وخصوصًا المظهري په دې باب کي د بيان د معنی د تجبرون ډېر اقوال او احاديث راوړي دي چي د تبولو راوړه په دروند وګرځي پر متعلمينو د تفسير ايوبي وفيما ذکرناه کفاية.

**وَأَمَّا الَّذِينَ كَفَرُوا وَكَذَّبُوا بِآيَاتِنَا وَلِقَاءِ الْآخِرَةِ فَأُولَٰئِكَ فِي الْعَذَابِ مُحْضَرُونَ ﴿١٦﴾**

او هغه کسان چي کفر يې کړی وي يعني کفر يې مختاره کړی وي او تکذيب يې کړی وي په آياتو سره او په ملاقات سره د ورځي د قيامت ای البعث بعد الموت نو هغه کسان به په عذاب کي داخل کړل سي چي همېشه به په عذاب کي وي.

**پوهه سه:** چي احضار په عرف کي هغه دی چي په زور سره وي، نو د دوږخ مثال د بندي خانې د دنيا دی چي په زور سره بندي ور وستل کېږي، نو دوږخ سجن الله دی په آخرت کي نو کافران په ځنځيرانو او په غاړو به يې طوقونه وي و دوږخ ته به کشول کېږي.

فَسُبْحٰنَ اللّٰهِ حِيْنَ تُمْسُوْنَ وَحِيْنَ تُصْبِحُوْنَ ﴿۱۷﴾

**پوهسه:** چې سبحان الله مصدر دی د فعل محذوف. والتقدير فسبحوا الله سبحانًا (نو سبحانًا که څه هم مصدر د مجرد دی لکن دلته اسم مصدر يعني اسم دی په معنی د تسبيحًا چې مصدر دی د سبحوا چې له بابه د تفعيل دی لکه انبته الله نباتًا حسنًا، بيا يې فعل حذف کړی او مصدر يې مضاف کړی و مفعول ته چې لفظ د الله دی لکن بعد الاضافة اظهار د فعل روا نه دی کما في شروح الكافية وشروح سلم العلوم.

**نکته:** کلمه د فاء لپاره د سببيت ده او تفريع پر د مخه صفاتو د خدای ﷻ من الابداء والاعادة وغيرها. والمراد بالتسبيح في هذا المقام الصلوة كما يدل عليه مابعده.

"حِيْنَ تُمْسُوْنَ" ای تدخلون في المساء يعني په ماښام کې چې دې ته صلوة المغرب [۱] وايي، دا لمونځ شکريه د دې ده چې ورځ په خير او سلامت او نعمت سره تېره سول او داخل په ماښام کې سوله لپاره د سکون او استراحت.

**نکته:** شروع يې د ماښام د لمانځه سره وکړه د دې سببه چې شپه تر ورځې په حساب د هفتې او د مياشتو په اصطلاح د عربو کې پخه ده.

"وَحِيْنَ تُصْبِحُوْنَ" او هغه وخت چې تاسې داخلېږئ په ورځ دا لمونځ شکريه ده د دې چې شپه په خير او عافيت او سلامت او راحت تېره سوه او س ورځ داخله سوه لپاره د کسب د معاش.

**سوال:** تر ماښام وروسته خو ماخستن دی، نو د صباح د لمونځ څه حکمت دی په راوړلو کې؟

**ځواب:** حکمت يې مقابلة الصباح بالمساء دی لمانځه ته صلوة الفجر [۲] وايي يا صلوة الصبح وايي.

وَلَهُ الْحَمْدُ فِي السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ وَعَشِيًّا وَّحِيْنَ تُظْهِرُوْنَ ﴿۱۸﴾

ابن عباس رض وايي ای يحمدون الله اهل السموات والارض ويصلونه.

**پوهسه:** چې دا جمله معترضه ده "عشيًا" ای اخير النهار چې صلوة العصر دی [۳] او صلوة وسطى يې هم بولي.

**سوال**: د مازديګر لمونځ يې ولې پر ماپښين د مخه راوړی؟

**ځواب**: لپاره د اهتمام د مازديګر په لمانځه سره، ولې چې په دې وخت کې خلک د بازارو په کاروبار اخته وي يعني بايد چې مسلمانان احتياط وکړي چې په دنياوي کار سره صلوة العصر به سرې وګرځي مصداق دد دې آيت الذين لايلهيهم تجارة ولابيع عن ذكر الله.

''وَحِيْنَ تُظْهِرُوْنَ'' يعني چې داخل په غرمه کې سي يعني بعد الزوال چې د ماپښين لمونځ دی.

**نكته**: چونکه ديار د عربو عمومًا ګرم دي، نو شايد په دې ګرمي سره به مو ګرمي د دوږخ درپياد سي او نجات به څندي وغواړئ.

**فائده**: حين تمسون و مغرب او عشاء دواړو ته اشاره ده كما اخرج ابن جرير والطبراني والحاكم قول ابن عباس ﷺ ان هذه الآية جامعة للصلوات الخمس وحين تمسون كناية عن المغرب والعشاء جميعًا او محي السنة البغوي ﷺ وايي چې نافع بن الاذرق وه ابن عباس ﷺ ته وويل چې پنځه سره لمونځونه په قرآن كريم كې ته پيدا كولای سي؟ ابن عباس ﷺ ورته وويل نعم! وقرء هاتين الآيتين وقال جمعت هذه الآية الصلوات الخمس ومواقيتها انتهى.

**فصل**: في فضائل التسبيح، قال النبي ﷺ من قال حين يسبح وحين يمسى سبحان الله وبحمده (١٠٠) مرة غفرت له خطاياه، وان كانت مثل زبد البحر (که څه هم وي ګنهونه ده په مثل د ځګ د درياب كنايةٌ عن الكثرة) وروى البخاري في آخير كتابه الصحيح في الحديث (كلمتان خفيفتان على اللسان حبيبتان الى الرحمن ثقيلتان في الميزان: سُبْحَانَ اللهِ وَبِحَمْدِهِ سُبْحَانَ اللهِ الْعَظِيْمِ) رواه البخاري بسنده عن رسول الله ﷺ، والمعنى: دوې كلمې دي پر ژبه سپكې او محبوبې دي خدای ﷻ ته او درنې دي په ترازو كې په ورځ د قيامت، وعن ابن عباس ﷺ قال قال رسول الله ﷺ من قال حين يصبح سبحان الله حين تمسون وحين تصبحون الى قوله وكذالك تخرجون ادرك مافاته في يومه ذالك (چې له ده څه فوت سوي وي په ده غه ورځ يعني من نوافل العبادات والصلوات چې د هغو ثواب به خدای ورکړي) ومن قالهن حين يمسى ادركه مافات في الليلة، رواه ابو داؤد عن ابي هريرة ﷺ قال قال رسول الله ﷺ څوک چې ووايي سبحان الله

وبحمده (١٠٠) مرة لم يأت احد يوم القيامة افضل مما جاء به الا احد قال مثل قال (١٠٠) او زاد عليه، بخاري مسلم، وعن جويرية بنت الحارث رض ان النبي ﷺ خرج ذات غدات (يوه ورځ) من عندها (وكان اسمها برة) فخرج وهي في المسجد فرجع بعد ما تعالى النهار (چي ورځ ډېره تېره سوې وه) وقال ﷺ مازلت في مجلسك هذا منذ خرجت بعد (ته تر اوسه پوري ناسته يې په ځای کي د ناستي چي داغه دی د هغه وخته چي زه در څخه ولاړم تر اوسه، دې ورته وويل نعم) فقال رسول الله ﷺ لقد قلت بعدک (يعني بعد خروج عنک) اربع كلمات ثلث مرات (څلور کلمې درې واره) نو وزنت بكلماتک لوزنتهن (که وتلل سي ستا د کلمو سره زما کلمې به پر غالبه سي) (١) سبحان الله وبحمده عدد خلقه (٢) ورضاء نفسه (٣) وزنة عرشه (٤) ومداد كلماته، رواه مسلم.

وعن سمرة بن جندب رض قال قال رسول الله ﷺ افضل الكلام اربع سبحان الله والحمدلله لا اله الا الله والله اكبر. وفي رواية افضل الكلام الى الله اربع سبحان الله والحمدلله ولا اله الا الله والله اكبر لايضرك بايتهن بدئت (تا ته ضرر نه دي په هره يوه کلمه د دغو څلورو کلمو چي شروع وکړې، رواه مسلم) وعن ابي ذر رض قال سئل رسول الله ﷺ اى الكلام افضل؟ قال ﷺ ما اصطفى لملائكته سبحان الله وبحمده رواه مسلم، وعن جابر قال قال رسول الله ﷺ من قال سبحان الله العظيم وبحمده غرست له نخلة في الجنة رواه الترمذي (دده لپاره به شنه کړل سي يوه درخته د خورما په جنت کي)

## يُخْرِجُ الْحَيَّ مِنَ الْمَيِّتِ وَيُخْرِجُ الْمَيِّتَ مِنَ الْحَيِّ

راباسي ژوندی شی له مړه څخه لکه انسان چي له نطفې څخه پيدا کوي او مرغه له هگۍ څخه پيدا کوي، او خدای راباسي يعني پيدا کوي مړ شی له ژوندي څخه لکه نطفه د انسان څخه او هگۍ له حيوان څخه، او يا معنی داده چي تر حيوات وروسته مرگ پيدا کوي او تر مرگ وروسته ژوند پيدا کوي، وقيل في تفسير الآية يخرج المؤمن من الكافر لکه ابراهيم ﷺ له آذر څخه او کافر پيدا کوي له مؤمن څخه لکه کنعان د نوح ﷺ څخه وقيل العالم من الجاهل والجاهل من العالم، وقيل يخرج المصلح من المفسد ويخرج المفسد من المصلح، دا دي دوارو مثالونه ډېر دي.

وَيُحْيِ الْأَرْضَ بَعْدَ مَوْتِهَا ۚ وَكَذَٰلِكَ تُخْرَجُونَ ⑲

او حيات ورکوي مځکي ته چي نباتات دي وروسته تر مرګ په وچ والي د مځکي له نباتاتو څخه لکه په ژمي کي، او داغه رنګه لکه مذکور اخراج تاسي به را ايستل کيږي له قبرو څخه احياء بعد الموت، نو تاسي ولي انکار کوئ د بعث بعد الموت څخه ايها المشرکون او سره ددې چي امثله مذکوره وينئ.

**پوهه:** چي دا دليل د ژوند وروسته تر مرګ في يوم القيامة، حاصل ددې دادی چي ابداء او اعاده په قدرت کي د خدای ﷻ سره برابر دي، شيخ سعدي رح وايي:

بامرش وجود از عدم نقش بست ..... که داند جز او کردن از نيست هست
دگر ره بکتم عدم در برد ..... و از آنجا بصحرائ محشر برد

وَمِنْ آيَاتِهِ أَنْ خَلَقَكُم مِّن تُرَابٍ ثُمَّ إِذَا أَنتُم بَشَرٌ تَنتَشِرُونَ ⑳

او له دلائلو څخه د قدرت د خدای ج پر بعث بعد الموت دادی چي تاسي يې پيدا کړي ياست له خاورو څخه يعني په ضمن د خلق د آدم ؑ جدکم الاکبر، يا عبارت په حذف سره د مضاف دی ای خلق اصلکم آدم، او سره ددې چي په خاورو کي هيڅ د ژوند ماده نه وه.

**حکمت:** چونکه په عناصر اربعه وو کي يعني النار، والماء، والهواء، والارض تر ټولو متواضع عنصر خاوري دي، نو آدم ؑ چي يې له خاورو څخه پيدا کړی بايد انسان ځان متواضع او عاجزه وبولي، او د تکبر خولی له سره وغورځوي، کريمه: منها خلقناكم وفيها نعيدكم ومنها نخرجكم تارةً اخرىٰ.

**پوهه:** چي کلمه د اذا لپاره د مفاجات ده (په پښتو وايي ناببره) او کلمه اذا مضاف دی وروسته جملې ته او عامل په معنی د مفاجات ده، والتقدير فاجأتم وقت کونکم بشرًا پاشي په مځکه کي يعني بعد ما کنتم جمادًا بلا حس وحرکة يعني التراب، په مفردات کي وايي چي بشر ظاهر ته د پوست وايي، نو انسان ته چي بشر وايي په دې اعتبار چي ظاهر د پوست يې په وېښتيانو پټ نه دی بخلاف الحيوانات العادية لکه اوښ چي پوست يې په وبر پټ دی، يا پسونه چي پوست يې په صوف پټ دي، يا بوزې چي پوست يې په شعر پټ دی (يعني اوجغونې).

نکته: ما قید د عادیه وو ایه احتراز دی له ماهي، مار و غیره څخه فافهم،
قیل: .. خلقت من التراب فصرت شخصًا .... بصیرا بالسوال و الجواب
وعدت الی التراب فصرت فیه .... کانک مابرحت من التراب

وَمِنْ اٰيٰتِهٖٓ اَنْ خَلَقَ لَكُمْ مِّنْ اَنْفُسِكُمْ

''ومن آیاته'' ای من دلائل قدرته تعالی علی البعث بعد الموت، دا دی چي خدای ﷻ ستاسي د نفع لپاره پیدا کړی ستاسي د انسانانو له ځانو څخه لکه ام کبری حواء د پوښتي څخه د آدم؏ او نوري ښځي له نطفو څخه د نورو.

**پوه سه:** چي کلمه د من لپاره د بیان ده یعني ستاسي ماینې ستاسي له جنس څخه دي یعني انسانان نه له بل جنسه لکه خره یا غوا مثلاً.

اَزْوَاجًا لِّتَسْكُنُوْٓا اِلَيْهَا

ماینې چي تاسي میل او محبت ورسره وکړئ لان الجنسیة سبب الالفة والاختلاف في الجنس سبب التنافر او کراهت دی.

وَجَعَلَ بَيْنَكُمْ مَّوَدَّةً وَّرَحْمَةً ۭ اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَاٰيٰتٍ لِّقَوْمٍ يَّتَفَكَّرُوْنَ ﴿۲۱﴾

او ګرځولی دی ستاسي نرو او ښځو تر منځ محبت او مهرباني، بخلاف سائر الحیوانات که نر وي او که ښځي، او په تحقیق په دغه ازدواج کي د نر او ښځو دلائل دي د لوی قدرت د خدای ﷻ هغه قوم لره چي فکر لري، نو د دې ازدواج حکم او مصالح به ورته معلوم سي من التناسل وتعمیر الارض الی اجل معلوم وغیر ذالک.

وَمِنْ اٰيٰتِهٖ خَلْقُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ وَاخْتِلَافُ اَلْسِنَتِكُمْ وَاَلْوَانِكُمْ ۭ

او له دلائلو څخه د قدرت بلا شرکت دی پیدائښت یعني د خدای ﷻ په قدرت د اسمانو او مځکي (یعني مع مافي السموات من عجائب قدرة الله تعالی کالشمس والقمر والنجوم وغیرها، او په مځکه کي من الاشجار المثمرة والنباتات والجواهرات وغیرها.

**فائده:** متعلقة بالآیات السابقة.

**پوښتنه:** خدای ﷻ وویل من انفسکم ازواجًا چي ترجمه یې د هغه آیت په

تفسير کي تېره سوه. نو سوال دادی چي فقهاء او علماء وايي چي علوق يعني حمل او وطي د جنس سره لازمي نه دی بلکې د جن او انس تر منځ هم ازدواج او حمل کېدای سي کمامر في قصة بلقيس؟

**ځواب**: دا آيت مبني دی پر عرف غالب يعني چي متزوجين به د يوه جنسه وي وقصة بلقيس من النوادر في الغاية، والامر الغالب کما قال الشاعر:

بجنس خود کند هر جنس آهنگ ..... ندارد هيچکس از جنس خود تنگ

بجنس خويش دارد ميل هر جنس ..... فرشته با فرشته انس با انس

ايضًا: کند همجنس با همجنس پرواز ..... کبوتر با کبوتر وباز با باز

"واختلاف السنتکم" عطف على قوله خلق السمٰوات آه.

**يوه سه**: چي السنه جمع د لسان ده يعني جارحه مخصوصه چي په پښتو يې ژبه بولي، دلته مراد ځني لغات مختلفه دي يعني هر صنف ته د انسان خدای ﷻ قدرت ورکړی دی د يوه لغت چي په هغه لغت هغه خبري کوي او کيفيات او اصوات د هغو سره جلا دي چي يو لغت او ژبه د بل لغت او ژبي سره پوشيده کېږي کاللغة العربية، وهذه اللغة افضل اللغات لانها لغة القرآن ولغة عليه الصلوٰة والسلام ولغة اهل الجنة في الجنان، کما ورد في الحديث النبوي الصحيح، وروسته تر عربي الفارسيه الدرية افصح الالسنة، او دا نور لغت سره برابر دي کالعبرية والترکية والهندية والافغانية وغيرها.

**يوه سه**: چي "والوانکم" عطف على السنتکم، او په اختلاف ستاسي د رنګو من الحمرة والصفرة والبياض والسواد وغيرها.

## اِنَّ فِیۡ ذٰلِکَ لَاٰیٰتٍ لِّلۡعٰلِمِیۡنَ ﴿۲۲﴾

په تحقيق په دې خلق السمٰوات والارض او په اختلاف کې د ژبو او لغتو او د رنګو دلائل کثيره دي (يعني پر وجود د صانع وقدرته وتوحيده وجلاله وجماله، لپاره د عالميانو يعني من ذوي العلم منهم لو تفکروا بقلب سليم من الاستکبار والعناد..... سعدي رح:

برګ درختان سبز در نظر هوشيار ..... هر ورقی دفتريست معرفت کردګار

وَمِنْ اٰيٰتِهٖ مَنَامُكُمْ بِالَّيْلِ وَالنَّهَارِ

او له آياتو څخه يعني له دلائلو څخه د خداى جل جلاله د وجود او د وحدت دى خوب ستاسي (منام مصدر ميمي دى) د شپې لپاره د استراحت د قوى د روح او د بدن وهو الغالب المعتاد في الناس في كل البلاد، او د ورځې لکه قيلوله في ايام الصيف.

وَابْتِغَآؤُكُمْ مِّنْ فَضْلِهٖ

او طلب کوي د معاش الدنيا مثل التجارة والاجرة او طلب د امور د آخرت بالصلوة والتعليم والتعلم يعني هم په ورځ کي وهو الاغلب او د شپې، او بعض مفسرين وايي چي مراد خوب دى د شپې او ابتغاء الرزق بالنهار بناءً على عادة اغلب الناس فافهم.

اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَاٰيٰتٍ لِّقَوْمٍ يَّسْمَعُوْنَ ﴿۲۳﴾

په تحقيق په دې منام الليل کي او ابتغاء الرزق بالنهار يا دواړه په دواړو کي کمامر دلائل دي د صانع با قدرت بدون المشارکة د هغه قوم لپاره چي آيات قرآنيه په سماع تدبر وتفکر سره اوري لان السماع بدون التدبر کسمع الحيوان حيث يسمعون الحيوانات مجرد الصوت بلا فهم معناه فافهم.

وَمِنْ اٰيٰتِهٖ يُرِيْكُمُ الْبَرْقَ خَوْفًا وَّطَمَعًا

او بعض له دلائلو څخه د وجود الصانع وقدرته وعلمه بمصالح اهل الارض چي په تاسي ويني (پېلبو)

**فائده:** يريکم په تقدير د ان المصدرية مبتداء ده او من آياته يې خبر مقدم دى او بېله تقديره د ان هم فعل مضارع مبتداء واقع کېداى سي لکه (تسمع بالمعيدى خير من ان تراه)

**درويش وايي:** چي په هغه آياتو کي چي په اول کي يې من د جاره واقع وي داسي حکم کېداى سي چي من جاره دي په معنى د بعض مبتداء وي وروسته دې خبر وي کما قال العلامة الثاني سعد الملة والدين التفتازاني رح في تفسير سورة البقرة، ومن الناس من يقول الآية في حاشيته على الکشاف، وفيه بحث وله جواب قد مر في هذا لتفسير هنالک فافهم "خوفًا وطمعًا" له جهته څخه د بېرې د تکې يعني که په سفر کي وي څوک او له جهته څخه د طمع د باران که په کورو کي واست.

**پوه سه**: چي طمعًا او خوفًا منصوب دي علت د فعل مذكور دي يعني يريكم آه په حذف د مضاف اي لارائة خوف وطمع، او يا په تاويل د مجرد چي خوفًا و طمعًا دي په مزيد سره اي الاخافة والاطماع لكه يو څوک چي وايي ما فلاني فعل وكړى رغمًا للشيطان اي ارغامًا له.

## وَيُنَزِّلُ مِنَ السَّمَآءِ مَآءً فَيُحْيِۦ بِهِ الْأَرْضَ بَعْدَ مَوْتِهَا

او خداى ج را اوروي له اسمان څخه او به يعني باران، نو ژوندى كوي په هغو اوبو سره مځكه (حيات د مځكي عبارت دى له نباتاتو څخه او موت د مځكي كنايه ده له وچ والي څخه) "بعد موتها" اي يبسها.

## إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَآيَٰتٍ لِّقَوْمٍ يَعْقِلُونَ ﴿٢٤﴾

په دغو افعالو كي د خداى ﷻ (يعني د يريكم څخه شروع تر دې ځايه پوري دلائل دي د قدرت د رب العزت، د هغه قوم لپاره چي له عقل څخه كار واخلي او د قادر متعال په قدرت او حكمت ځانونه پوه كړي.

## وَمِنْ ءَايَٰتِهِۦٓ أَن تَقُومَ السَّمَآءُ وَالْأَرْضُ بِأَمْرِهِۦ

او بل له دلائلو څخه د قدرت د خداى ج دادى چي ولاړ دي اسمانونه او مځكه پر خپلو ځايو بيله دې چي نه ميل سته او نه تنبه په قضاء او قدرت د خداى ج، عبر عن الارادة بالامر مبالغة.

## ثُمَّ إِذَا دَعَاكُمْ دَعْوَةً مِّنَ الْأَرْضِ إِذَآ أَنتُمْ تَخْرُجُونَ ﴿٢٥﴾

وروسته تر هغه په تراخي سره يعني چي ميعاد د يوم القيامة والبعث والنشور ورسيږي او خداى ج تاسي را وبولي يعني ايها الموتٰى اخرجوا.

**پوه سه**: چي داعي في الحقيقة كي خو اسرافيل ؑ دى چي پر صخره د بيت المقدس ودريږي او صور پوه كړي النفخة الآخيرة، لكن خداى پاک نسبت و ځان ته وكړى له دې سببه چي خداى ﷻ مسبب آمر د نفخ د اسرافيل دى.

**فائده**: كلمه د ان په ان تقوم كي مصدريه ده، نو معنى يې قيام السماء والارض ده، نو جمله د ثم اذا دعاكم آه عطف ده پر ان تقوم په تاويل د مفرد لانه لايجوز عطف الجملة على المفرد كما في كتب النحو، نو ګويا تقدير د عبارت قرآني داسي دى ومن

آيته قيام السماء والارض، دا معطوف عليه چي په ان مصدريه سره مفرد گرځېدلی ؤ ثم خروجكم من القبور اذا دعاكم دعوة واحدة، دا معطوف دی په تاويل د مفرد كمامر.

**فائده:** ثم يا د تراخي د زماني ده خروج من القبور ده كمامر في ترجمة الآية او يا لپاره د تراخي د رتبې ده چي په دې ورځ هولناكه امور منځ ته راځي.

**فائده:** ابن عساكر رح روايت كړی دی له زيد بن جابر رض څخه په تفسير كې د هغه قول د خدای جل جلاله واستمع يوم يناد المنادی من مكان قريب، ده ويلي دي چي اسرافيل پر صخره د بيت المقدس چي نژدې د مځكو د واسمان ته او داسي ناره وكړي يا ايها العظام النخرة يعني بوسيده او وراسته والجلود المتمزقة يعني ای پوستكو چي سره جلا سوي ياست ان الله يامركم ان تجتمعوا لفعل الحساب، فاذا هم قيام ينظرون.

**فائده:** اذا ثانيه ده مفاجات دی كما قلنا سابقًا قائم مقام الفاء دی په جواب كي د اذا اولی چي شرطيه ؤ.

**پوښتنه:** مناسبت د فاء او د جواب اذا څه شی دی چي كلمه د اذا قائم مقام الجواب وه گرځېدله؟

**ځواب:** فاء لپاره د تعقيب ده بلا فصل او جواب د اذا شرطي په عقب كي د شرط دی فافهم.

# وَلَهٗ مَنْ فِي السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ؕ كُلٌّ لَّهٗ قٰنِتُوْنَ ﴿۲۶﴾

او د الله ج لپاره دي هغه چي په اسمانو او مځكه كي دي خلقًا و ملكًا.

**پوه سه:** چي تنوين د كل عوض د مضاف اليه دی ای كل واحد منها خدای پاک لره فرمان برداره دی.

**فائده:** مراد د من في السمٰوٰت والارض څخه ملائكه او انس او جن دی، والمعنی ليس لغيره تعالی شركة بوجه من الوجوه كما يدل عليه تقديم له.

**سوال:** په انس او جن كي خو كافران هم داخل دي، نو څرنگه صحيح كېږي چي ټول له فرمانبرداره دي؟

**ځواب:** مراد له قنوت څخه فرمان برداري د اراده د خدای ده چي امور تكوينيه يې بولي، لا طاعة الامر بالعبادة او يا مراد شهادت دی د ټولو پر وحدانيت د خدای كما قال الشاعر: وفي كل شيئ له اية ...... تدل على انه واحد

سعدي ؒ میگوید:
برگ درختان سبز در نظر هوشیار ..... هر ورقی دفتریست معرفت کردگار
**درویش وايي:** چي پر دې تقدير ضرورت نسته و هغه خبري ته چي كلبي ؒ ويلي دي هذا خاص بمن كان مطيعًا منهم آه. البته ابن جبير ؒ چي ترجمه د قانتون يې په مقرون بالعبودية سره كړې، نو عموم پر خپل ظاهر نه دی، وقال ابن عباس ؓ كل مطيع له تعالى في الحيوة والموت والبعث ونحو ذالك وان عصوا في العبادة انتهى.
**درویش وايي:** چي پر دې ترجمه هم معموم پر خپل ظاهر دی كما قلنا سابقًا چي مراد فرمان برداري د ارادې د خدای ﷻ آه.

وَهُوَ الَّذِيْ يَبْدَؤُا الْخَلْقَ ثُمَّ يُعِيْدُهٗ

او خدای ﷻ دی چي ابتداء د خلق الملائكة والانس والجن يې كړې ده او وروسته ترا هلاک يې بيرته راكرځوي يعني يوم البعث.
**پوښتنه:** دمخه خدای ﷻ وويل وله من في السمٰوات والارض آه، او ترجمه د هغه هم تاسي واورېده، نو دا قول د خدای ﷻ وهو الذي به تكرار د هغه نه وي او كه تكرار د هغه وي، نو فائده د تكرار يې څه ده؟
**ځواب:** هو تكرار د اول خو دی مگر فايده د تكرار يې دفع د تعجب د كفارو ده من الاحياء بعد الموت كما اخرج ابن ابي حاتم عن عكرمه ؒ.

وَهُوَ اَهْوَنُ عَلَيْهِ ؕ

او دا اعاده اسانه ده وه خدای ﷻ ته.
**پوه سه:** چي ضمير راجع دی و اعادې ته او سبب د تذكير يې مع ان الاعادة لفظ مؤنث په سبب د تذكير د خبر دی، او يا اعاده مؤل ده په ان مع الفعل سره چي په حكم كي د مصدر ده او لتأويل الاعادة بالبعث.
**پوه سه:** چي جمله د وهو اهون عليه حال ده له فاعل څخه د يعيد يا عطف ده پر ما سبق.
**پوښتنه:** پر خدای ﷻ خو د ايجاد اولاً او اعاده فرق نسته فما معنى اسم تفضيل يعني اهون. ولي د تفضيل څخه خو دا فهمېږي چي ايجاد اولاً گران او

سخت دی او اعاده تر هغه اسانه ده و خدای ﷻ ته مع انه لیس کذالک لان الابداء والاعادة في سلک واحد من قدرته؟

**ځواب:** روح المعاني وايي چي افعل لپاره د تفضيل دی ای الاعادة اسهل علی الله من المبدء والاسهلية علی طريقة التمثيل بالنسبة الی مايفعله البشر يعني بشر چي يو کار ابتداءً وکړي بيا اعاده د هغه کار ورته اسانه وي، او فائده د دې تمثيل تقريب وي د اعاده وافکارو ته د منکرانو من الکفرة له بعث بعد الموت څخه.

**درويش وايي:** چي دا ځواب حسين کاشفي په تفسير حسيني کي هم راوړی دی، اعاده باعتقاد شما اسان تر است از ابداء پس چون ابداء را اقرار داريد اعاده را چرا منکريد و ابداء واعاده نزد قدرت او يکسان است ... چون قدرت او منزه از نقصان است ... اوردن خلق وبردنش يکسانست ... نسبت بمن وتو هرچه دشوار بود .... در قدرت پر کمال او آسانست انتهی.

او د غه ځواب روح البيان او مظهري هم راوړی دی، او ربيع بن الخيثم او الحسن او قتاده رح وايي چي اهون په معنی د هين ويجئ افعل بمعنی الفعيل وهو رواية الدنی عن ابن عباس رض.

## وَلَهُ الْمَثَلُ الْأَعْلَىٰ

او خاص خدای ﷻ لره لا لغيره تعالی وصف اعلی چي بل چا لره نه هغه صفت سته يعني مساوي د هغه او نه تر هغه لوړ او نه وهغه صفت الهي ته نژدې کالقدرة التامة للخلق وايجاد السموات والارض وغيرها والعلم الشامل لجميع ذرات العالم والحکمة الشاملة، عن ابن عباس رض ليس کمثله شيئ يعني في شيئ من صفات الجمال والجلال، او قتاده رح وايي چي شهادة ان لا اله الا الله.

**درويش وايي:** چي مراد د قتاده رح شهادة ان لا اله الا الله مع لوازم هذه الکلمة الطيبة فيرجع هذا التفسير الی الاول، او مظهري رح وايي قلت الوصف بالوحدانية.

**درويش وايي:** چي د مظهري او د قتاده رح د تفسير څه فرق دی چي ده د قلت په ويلو سره علحده تفسير ګرځولی دی، او سره د دې چي د مخه مظهري قول د قتاده هم رد کړی دی.

فِي السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِۚ

په اسمانو او مځکه کې يا په نطق سره لکه ملائکه او انس او جن يې کوي يا يې د دلالة الحال سره چې غير ناطق شيان كالنجوم في السموٰت والنباتات په مځکه کې... سعدي شيرازي رحمه الله:

برگ درختان سبز درنظر هوشيار...... هر ورقي دفتريست معرفت كردگار

وَهُوَ الْعَزِيْزُ الْحَكِيْمُ ﴿٢٧﴾

او خدای ج دی غالب في ملکه وخلقه ونفاذ امره في كل شيئ لايعجزه شيئ من الابداء والاعادة او په هره ذره کې د ذراتو د عالم حکمت لري که په حکمت يې څوک پوهېږي او که نه... بيت:

زهر ذره بدو روی وراهيست........ بر اثبات وجود او گواهيست

**درويش وايي:** چې يو سړی که قصر، کوټې بنګلې د يو غني سړي ويني چې په ډېرو ښائسته مفروشاتو فرش وي او قسم قسم عطر پاشونکي ګلان پکښې ولاړ وي او رقم رقم نقشونه پر دېوالو ويني او عجائب څراغان رڼا اچونکي هم ويني الى غير ذالک نو د تعجب ګوته په غاښ ونسي او على الدوام ونورو خلکو ته دد غه قصر او بنګلې بيانونه کوي او دغه سړی په انفس او افاقو کې بيوت مزينه باسمائه وصفاته واثاره ويني، او هم دغه په مشاهده کې د دغو اثارو او بيوتو روند وي، ولې چې ادراک د عجائب د قدرت د خدای جل جلاله په زړه سره کېږي او د زړه مړ دی او د غني د قصر او بنګلې عجائب په سترګو معلومېده سترګې دده ژوندی وي.... بيت:

اعميت عيني من الدنيا وزينتها ...... فانت والروح شيئ غير مفترق

**پوه سه:** چې طبراني له ابن عباس رضی الله عنه څخه روايت کړی دی چې مشرکانو په وخت کې د شروع بالحج او العمرة داسې تلبيه ويله، اللهم لبيک لاشريک لک الا شريکا هو لک تملکه وما ملکت فنزلت هذه الآية.

ضَرَبَ لَكُمْ مَّثَلًا مِّنْ اَنْفُسِكُمْ ۗ هَلْ لَّكُمْ مِّنْ مَّا مَلَكَتْ اَيْمَانُكُمْ

الله تعالى بيان کړي دي تاسې ته ايها المشركون، يو مثال چې منتزع دی ستاسې له ځانو څخه چې تاسې ته تر ټولو شيانو درنږدې دی، آيا تاسې لره سته د هغو مريانو څخه چې ستا په ملک يمين کې دي،

مِّنۡ شُرَكَآءَ فِيۡ مَا رَزَقۡنٰكُمۡ فَاَنۡتُمۡ فِيۡهِ سَوَآءٌ

له شریکانو څخه ستاسې د مالو په هغه شیانو کې چې په ملک د رکړي مونږ تاسې ته من الاموال والضیاع، او تاسې او ستاسې مریان په تصرف کې د هغو مالو سره برابر یاست یعنې لکه تاسې چې تصرف په هغو مالو کې کوئ من البیع والهبة وغیرهما ستاسې مریان هغو سره تصرف پکښې کولای سي.

تَخَافُوۡنَهُمۡ كَخِيۡفَتِكُمۡ اَنۡفُسَكُمۡ

چې تاسې د هغو مریانو څخه بېرېږئ که تصرف په خپل مال کې وکړئ پیله حضور د مریانو لکه چې بېرېږئ له خپلو ځانو څخه.

**پوه سه**: چې مراد له انفسکم څخه نور امثال د دوی دي په حریت کې یعنې لکه چې د نورو احرارو څخه چې بېرېږي.

كَذٰلِكَ نُفَصِّلُ الۡاٰيٰتِ لِقَوۡمٍ يَّعۡقِلُوۡنَ

داغه رنګه ای تفصیلاً مثل ذالک التفصیل، مونږ تفصیل او توضیح د معقول په محسوس سره کوو فان التمثیل یوضح المعقول ویقربه الی اذهاد المنکرین للعقول، د هغه قوم لپاره چې له عقله کار اخلي په فکر وهلو په امثالو کې.

بَلِ اتَّبَعَ الَّذِيۡنَ ظَلَمُوۡۤا اَهۡوَآءَهُمۡ بِغَيۡرِ عِلۡمٍ

بلکې متابعت کړی دی هغه کسانو چې ظلم یې کړی دی پر خپلو ځانو بالاشراک بالله، د خپلو خواهشاتو زائغه في الاشتراک بالله.

**پوه سه**: چې کلمه د بل اضراب او اعراض دی له مخاطبه څخه د کفارو یعنې چې خدای جلاله دوی ته ارشاد وکړی وحق ته بضرب المثل کما مر، او تفصیل د آیاتو ورته وکړي او مقدمات حقه او معقوله ورته بیان کړي کانه قیل لم یتبعوا شیئاً من الآیات المفصلة بل اتبع اه.

**پوښتنه**: د الذین ظلموا په ځای کې چې یې ضمیر را وړی وایې یعنې بل تبعوا عبارت په اخصر نه وای؟

**ځواب**: په دې وضع کې د موصول په ځای کې د ضمیر نکته داده چې دوی په دغه اتباع د هوی ظالمان دي پر خپلو ځانو بتعریضها للعذاب المخلد، یا معنی داده چې

وضع د شیئ بې ځایه وکړه یعني نو دوی باید اتباع د آیاتو بیناتو کړې وای لکن دوی د خواهشاتو نفسیه وو وکړه وهو معنی الظلم "بغیر علم" دا حال دی له فاعل څخه د بل اتبع یعني متلبسین بغیر علم ای جاهلین بمایجب علیه من اتباع الحق المبین.

## فَمَنْ يَّهْدِيْ مَنْ اَضَلَّ اللّٰهُ

کلمه د فا لپاره د سببیت ده والاستفهام للانکار، والمعنی اذا اتبعوا اهوائهم ولم یقبلوا هدی الله فمن یقدر علی هدایتهم یعني لا احد یقدر علی ذالک.

**درویش وایي:** چي معنی د اضلال د خدای خلق الضلالة فیهم بعد اختیارهم الضلالة بکسب موجبات الضلال لان خالق افعال العباد هو الله، والعباد کاسبون للافعال کما هو مذهب اهل السنة والجماعة خلافًا للمعتزلة والفرق بین الخلق والکسب دقیق چي تفصیل به یې د متعلمانو د تفسیر ایوبي د حال مناسب نه وي، او بیان د دې فرق علامه ثاني سعد الدین التفتازاني رحمه الله په شرح العقائد وشرح المقاصد کي کړی دی، او سید جرجاني رح په شرح کي د مواقف هم کړی دی، او محب الله البهاري رح په مسلم الثبوت کي هم کړی دی.

## وَمَا لَهُمْ مِّنْ نّٰصِرِيْنَ ﴿۲۹﴾

نشته دوی لره، ای من اضل الله لره، مرسته کونکی چي له عذابه د خدای رح دوی خلاص کړي.

**پوه سه:** چي ضمیر د جمع راجع دی ومن ته په اعتبار د معنی، ناصرین یې جمع راوړه علی معنی انه لیس لاحد منهم ناصر واحد کما یقتضیه مقابلة الجمع بالجمع کما في قولهم لبثوا ثیابهم ورکبوا دوابهم یعني هر یوه واغوستل کالي خپل او سپور سو پر خپله دابه.

شیخ سعدي رح درباب هوای نفساني چه خوش گفته:

غبار هوی چشم عقلت بدوخت ..... سموم هوس کشت عمرت بسوخت
وجود تو شهریست برنیک وبد ..... تو سلطان دستور دانا خرد
هوا و هوس را نماند متین ..... چو بیند سرپنجه عقل تیز

# فَأَقِمْ وَجْهَكَ لِلدِّينِ حَنِيفًا

**پوه سه:** چي کلمه د فاء د سببيت ده يعني داخل پر شرط ده، والتقدير لما ثبت وحدانيته تعالى وظهر لک ان المشركين انما اتبعوا اهوائهم فاقم انت يامحمد ﷺ ته ثابت اوسه پر خپل مخ سره و دين ته د اسلام، حنيفًا مائل ودين ته د اسلام مستقيمًا عليه غير ملتفت الى غيره.

**فائده:** حنيفًا منصوب دی على الحالية من ضمير اقم اى حالكونک مائلاً الى دين الاسلام عن سائر الاديان مستقيمًا عليه.

**درويش وايي:** چي په دې کي که څه هم مخاطب عليه الصلوة والسلام دی لكن تنبيه ده امت لره د استقامت پر دين اسلام، وعدم الالتفات الى غيره من الاديان.

# فِطْرَتَ اللّٰهِ

**پوه سه:** چي د فطرة الله اصل ترجمه خلقة الله ده، والمراد به دينه يعني الاسلام او نصب د فطرة الله على الاغراء دی (يعني باعثه كول پر يو شي) كذا قال ابن عباس رضي الله عنه وجماعة من المفسرين، نو معنى د آيت داده الزموا فطرة الله فالآية خطاب للنبي ﷺ ولامته بتبيعته، نو دا آيت گويا تاكيد دی د ماقبل يعني فاقم آه، او كه اضمار د اسماء الافعال رواسي نو عليكم اسم فعل ورسره مقدر دی او مفسر مكي وايي چي فطرة الله منصوب دی په اضمار د فعل اى اتبع فطرة الله ودل عليه قوله تعالى فاقم وجهک لان معناه اتبع الدين واختاره الطيبي رحمه الله، او طيبي رحمه الله ويلي دي چي دا تقدير اقرب دی ونظم ته د آيت يعني قوله تعالى بل اتبع الذين ظلموا اهوائهم آه، او دا هم روا ده چي منصوب په اضمار د اعني دي وي، والتقدير اعني فطرة الله آه، او روح المعاني دا احتمال هم راوړی دی چي فطرة الله دي مفعول مطلق وي د فعل محذوف چي دلالت وروسته فعل پر كوي يعني التي فطر الناس عليها.

**سوال:** د تقدير څه ضرورت دی، ولي چي مفعول مطلق د فعل مذكور نه دی يعني التي فطر الناس عليها؟

**ځواب:** هغه يې عامل نسي كېدای، ولي التي فطر الناس خو صفت د فطرة الله دی.

الَّتِیْ فَطَرَ النَّاسَ عَلَیْهَا ۖ لَا تَبْدِیْلَ لِخَلْقِ اللّٰهِ ۖ

چي خدای پیدا کړي دي خلګ مستعد د هغه او قادر پر ادراک د هغه دین د حقیت. او بعض مفسرین وایي چي مراد د فطرة الله څخه هغه عهد ماخوذ د آدم له ذریت څخه دی بقوله الست بربکم قالوا بلی. وفي الحديث الصحيح كل مولود يولد على فطرة الاسلام، فابواه يهودانه او ينصرانيه او يمجسانه، الحديث. رواه ابو هريرة رضي الله عنه الحديث بطوله. متفق عليه.

**درویش وایي:** چي په ''لاتبدیل آه'' کي لا د نفي دی جمله خبریه ده په معنی د نهي ده، والمعنی لا تتبدلوا دين الله (وهو الاسلام) بكفر، او مجاهد رحمه الله او ابراهيم نخعي رحمه الله وایي: الزموا دين الله (دا معنی د فطرة الله) ولا تتبدلوا التوحيد بالشرك (دا معنی د لاتبديل لخلق الله) او بعض مفسرین وایي چي دا جمله پر خپل خبریت پاته ده او معنی یې په هغه حدیث کوي: كل مولود يولد على فطرة الاسلام الحديث كما مر عنقريب، او د هغه حدیث داسي ترجمه کوي كل مولود يولد على الفطرة اى خلقت التي جبل عليها في علم الله من الشقاوة وكل منهم صائر الى ما فطر الله عليها، نو معنی د لاتبديل لخلق الله داسي کوي لاتبديل لما جبل عليه الانسان من السعادة والشقاوة يعني شقي في علم الله سعيد نه سي کېدای او نه سعيد في علم الله شقي کرځي، جف التعلم بما هو كائن الى الابد.

**درویش وایي:** چي دډ معنی د لاتبديل لخلق الله هغه حديث کوي چي بخاري او مسلم یې د عبدالله بن مسعود رضي الله عنه څخه روایت کړی دی قال حدثنا رسول الله ﷺ وهو الصادق المصدوق (چي دی صادق دی او خدای جل جلاله یې هم تصدیق کړی دی) ان خلق احدكم يجمع في بطن امه (پيدا ئښت د يوه ستاسي جمع کېږي په نس کي د مور يعني في رحمها) اربعين يومًا نطفة (څلوېښت ورځي نطفه وي يعني د مور او پلار په رحم کي د مور يعني د قدرت تصرف پر جاري وي) ثم يكون علقة مثل ذالك (بيا يوه توټه وينه سي په مثل د هغه يعني څلوېښت ورځي يعني د قدرت الهي تصرف پر جاري وي) ثم يكون مضغة مثل ذالك (بيا لکه ژوولې غوښه وګرځي په مثل د هغه يعني څلوېښت ورځي) بيا خدای جل جلاله يوه ملکه ورته را استوي، نو هغه یې عمل نوشته کړي، او اجل یې نوشته کړي او رزق یې نوشته کړي او سعيد يا شقي یې

نوشته کړي، يعني په خپل اختيار سره بعد ان يبلغ البلوغ بدون الجبر من الله تعالى كما مر، وهو مذهب الجبرية الملعونة، وروسته تر نوشتې دد ې څلورو خبرو چې ذکر سوې روح پکښې پوه کړل سي، يعني ژوندى انسان وګرځي. وروسته عليه الصلوة والسلام په ذات جليل داسي قسم واخستى فو الذي لا اله غيره چې يو ستاسي عمل کوي په عمل د اهل الجنة مايكون بينه وبينها الا ذراع (چې نه وي او په منځ کي دده او د جنت يعني الموت على دين الاسلام مګر يو ګز، كناية عن قلة زمان موته لكن چونکه په وخت کي د کتاب د ملکي شقي نوشته سوى وي فيسبق عليه الكتاب فيعمل بعمل اهل النار فيدخلها يعني وراندي والى پرده کتاب مذکور نو عمل وکړى په عمل د اهل يعني الكفر، نو اور ته داخل سي يعني پر کفر مړ سي چې عاقبت يې اور دى. او عليه الصلوة والسلام ژباته کړه ان احدكم يعمل بعمل اهل النار (يعني الكفر) حتى لا يكون بينه وبينها (يعني النار چې مؤنث سماعي دى) الا ذراع فيسبق عليه الكتاب فيعمل بعمل اهل الجنة يعني الاسلام والطاعة فيدخلها يعني پر اسلام مړ سي چې عاقبت يې جنت دى. او احمد رح له ابى الدرداء رض څخه روايت کړى دى بينما نحن عند رسول الله ﷺ نتذاكر مايكون (يعني موږ بحث کاوه چې آئينده حال به څرنګه وي؟) نو رسول الله ﷺ راته وويل چې که تاسي واورېدل چې يو غر له خپله ځايه را ايسته سوى دى) فتصدقوه (نو د راوي تصديق وکړئ يعني چې احتمال يې سته محاله خبره نه ده) واذا سمعتم رجل تغير عن خلقه (يعني چې يو سړي تغير وکړى د ما خلق عليه من الشقاوة والسعادة في علم الله تعالى) فلا تصدقوه فانه يصير الى ما جبل عليه (تصديق يې مه کوئ يعني که څه هم په ظاهر کي خلاف د ما جبل عليه وي) ...... شعر:

مشکل آید خلق را تغییر خلق ...... آنکه بالذات است کی زائل شود
اصل طبعست و همه اخلاق فرع ...... فـــرع لابد اصل را مائل شود

ولذا ورد في الحديث الصحيح السعيد سعيد في بطن امه. والشقي شقي في بطن امه.

**درويش وايي:** چې صحبت لره لوى تاثير سته كما قال عليه الصلوة والسلام حكايةً عن رب العزة چې حديث قدسي يې بولي: كل عبادى خلقت حنفاء (تو له زما بندګان ما پيدا کړي دي حنيف يعني مائل ودين اسلام ته. نو مفعول د خلقت

محذوف دی ای خلقتهم) فاجتالهم الشیاطین عن دینهم وامروهم ان یشرکوا بی غیری (نو دوی بوزي شیطانانو د خپل دین څخه چي حنیف ؤ او دوی یې امر کړي چي شریک ونسي دما سره غیر زما) ....شعر:

برسلامت زاید ازمادر پسر ........آن شقاوت راپذیرد از پدر
صدق محض است این که گفتم شاهدش ......درخبر وارد شد از خیر البشر

دا شاعر اشاره وکړه و هغه حدیث ته چي دمخه تېر سو، کل مولود یولد علی فطرة الاسلام فابواه یهودانه الحدیث.... شعر:

بـابـدان یـار گشت همسر لوط .... خـانـدان نبوتـش گم شد
سگ اصحاب کهف روزی چند .... پی نیکان گرفت ومردم شد

کمامر قصة في تفسیر سورة الکهف.. شعر:

نفس از همنفس بگیرد خوی .... پـر حذر باش از لقای خبیث
باد چون بر فـضای بد گذرد .... بوی بد گیرد از هوائی خبیث

**پوښتنه**: د خلکو په زړو کي یوه وسوسه پیدا کېږي چي کل مولود یولد علی فطرة الاسلام الی اخیر الحدیث استغراق او کلیه به یې څرنګه صحیح سي او حال دادی چي په حدیث صحیح کي راغلي دي الغلام الذي قتله الخضر؈ طبع علی الکفر یعني پر کفر پیدا کړه سوی ؤ؟

**ځواب**: محمود آلوسي؆ په روح المعاني کي ددې سوال په ځواب کي داسي ویلي دي بان معنی ذالک انه قدر انه لو عاش یصیر کافرًا باضلال غیره له او بآفة من الآفات البشریة وذالک لاینافي الفطرة علی دین الاسلام بمعنی خلقه میتهئًا له ومستعدًا لقبوله انتهی.

**پوښتنه**: ایوبي ستاخو حواله ویو تفسیر ته عادت نه وه په دې ځواب کي دي څرنګه حواله وتفسیر روح المعاني ته ورکړه؟

**ځواب**: نعم! لکن چونکه دا ځواب ډېر دقیق ؤ او د حاسدانو تر فهم لوړ ؤ او حاسدان په خره کي د ښکار د درویش ناست دي که ما حواله نه وای کړې روح المعاني ته دستي حاسدانو په غشي د حسد ویشتلم یعني ایوبي درواغ وویله.

ذٰلِكَ الدِّيْنُ الْقَيِّمُ ۙ وَلٰكِنَّ اَكْثَرَ النَّاسِ لَا يَعْلَمُوْنَ ﴿۳۰﴾

"ذالک" اشاره ده ودين مأمور بالاقامة في قوله تعالى فاقم وجهک يا وه فطرة ته في قوله تعالى فطر الناس عليها، دا سم برابر دين دی چي هيڅ کږ وږچ پکښي نسته، خو ډېر خلک نه پوهېږي (مراد ځنې کفار د مکې دي) په استقامت ددې دين لعدم تدبرهم في حقيته.

**فائده:** اصل د قيم چي صيغه د مبالغې ده قيوم على وزن فعيل، په زړادي کي (د علم صرف يو ابتدائي کتاب دی) وايي في مثل ذالک اللفظ واو ويا، بهم آمدند نخستين ايشان ساکن بود واو را بيا بدل کردند ويا را دريا ادغام نمودند، نو قيم ځنې جوړ سو.

مُنِيْبِيْنَ اِلَيْهِ

معناه راجعين اليه تعالى بالاخلاص مرةً بعد اخرى كما هو معنى اناب، او بعض مفسرين وايي منقطين اليه ﷺ من غيره.

**فائده:** منيبين منصوب دی په فعل مقدر سره ای کونوا بقرينة عطف لاتکونوا عليه او يا حال دی من الضمير في الزموا، او يا ملتزمين چي ناصب مقدر دی په فطرة الله کي او يا په اقم کي لان الخطاب فيه للرسول ﷺ وامته.

**درويش وايي:** چي اولاً په اقم وجهک کي مخاطب يوازي عليه الصلوة والسلام ؤ او تبعًا امت هم ورسره داخل لتعظيم شانه ﷺ او په دې ځای کي عليه الصلوة والسلام او امت يې بتوله مخاطب کړه.

وَاتَّقُوْهُ وَاَقِيْمُوا الصَّلٰوةَ وَلَا تَكُوْنُوْا مِنَ الْمُشْرِكِيْنَ ﴿۳۱﴾

او د خدای ؑ څخه وبېرېږئ، او لمونځ په ځپل وخت کي کوئ على الدوام مع مراعات الفرائض والواجبات والسنن وتعديل الاركان كما هو معنى اقامة الصلوة، او مه ګرځئ له مشرکانو څخه چي تبديل د فطرة الله وکړئ، وهذه الآية تاکيد ومبالغة في قباحة الشرک.

**سوال:** انابة اليه تعالى خو مستلزم دی تقوی لره، نو په ذکر کي څه حکمت ؤ؟

**ځواب:** حکمت يې تعظيم د امر د تقوی.

**فائده:** درويش وايي چي په تفسير تيسير کي چي يو قديم تفسير دی په فارسي

ژبه داسي نقل راغلی دی از شيخ محمد اسلم طوسي رح نقل ميكند كه حديثى بمن رسيده كه عليه الصلوة والسلام فرموده كه هرچه از من روايت كنند عرض كنيد بر كتاب الله تعالى اگر موافقى بود قبول كنيد، من اين حديث را كه من ترك الصلوة متعمدًا فقد كفر، خواستم كه از قرآن كريم موافق او پيدا كنم، دپرش كاله مي په دې فكر كي تېر سوه تا اين آيت يافتم واقيموا الصلوة ولاتكونوا من المشركين، انتهى.

**درويش وايي:** چي دا حديث كه په سند صحيح وي محمول دی پر ترک د لمانځه انكارًا او يا محمول پر زجر كما في حديث لا صلوة لجار المسجد الا في المسجد، محمول دی پر زجر د تارک الجماعة، يا دا حديث من لا زكوة له فلا صلوة له، محمول دی پر زجر د مانع الزكوة والا فمذهب اهل السنة والجماعة دا دی چي په كور كي لمونځ صحيح دی او داسي نه ده چي څوک د زكوة مانع وي سره د تصديق پر فرضيت د لمانځه لمونځ يې قبلېږي البته ترک د جماعت مع القدرة گناه كبيره ده بالاجماع او دغه رنگه منع د زكوة گناه كبيره ده، نو ددې آيت معنى داده چي لمونځ كوي د مشركانو سره ځان مه مشابه كوه چي هغه لمونځ نه كوي.

**درويش وايي:** چي دا نقل محمد اسلم طوسي رح د هغه حديث څخه هم مخالف دی چي عليه الصلوة والسلام وايي اوتيت القرآن ومثله معه، او كما قال والله اعلم بالصواب وعنده علم الكتاب. درويش وايي چي وروسته آيت قرينه ده پر ما قالنا باندي.

مِنَ الَّذِيْنَ فَرَّقُوْا دِيْنَهُمْ وَكَانُوْا شِيَعًا ط

دا موصول بدل دی له المشركين څخه يا عادة الجار وبالفارسية: مباشيد آنانكه جدا كرده اند دين را وپراگنده كردند دين خود را بقبول بعض احكام وانكار بعضها، كاليهود والنصارى چي د تورات هغه آياتونه چي ايمان به پر نبي اخير الزمان راوړئ چي نوم به يې محمد وي فلانى به يې نښانې وي، نو دوی منكره سوه، نو دا خو صراحةً كفر دی په كتاب التوراة سره چي د محمد ﷺ د نبوت تائيد يې كاوه او نور تورات يې منی "وكانوا شيعًا" وگرځېدل دوی ډله ډله بعض مفسرين وايي چي مراد له دې ډلو څخه اهل بدعت ددې امت دي كالمعتزلة والخوارج والشيعة، والقدرية والجبرية والكرامية وغيرها من فرق الضلالة.

**سوال:** من الذین فرقوا دینهم آه. خو بیان د حال د مشرکانو دی او اهل بدع خو مشرکان نه دي که څه هم په دوی کي بعض فرق کغلاث الرافض کافران دي؟

**ځواب:** د مشرکانو اطلاق پر دې فرقو په سبب د دې سو چي دوی دین حق پرېښو او متابعت د هوا نفساني یې شروع کړی فکانوا من الذین اتخذوا الهه هواه. له عبدالله بن عمرو ﷺ څخه روایت دی قال قال رسول الله ﷺ ستفترق امتي (۷۳) فرقة کلهم في النار الا واحدة منهم قیل من هي یا رسول الله ﷺ قال ما انا علیه واصحابي چي زه پر هغه ملت یم او زما اصحاب دي دوی هم پر هغه ملت وي، رواه الترمذي.

**درویش وایي:** چي هغو ته اهل السنة والجماعة وایي.

كُلُّ حِزْبٍۭ بِمَا لَدَيْهِمْ فَرِحُونَ ۝

یعني د دغو ډلو څخه چي په نېز د دې شي وي من العقائد، خوشحالي کوي د دوی دا زعم دی چي حق هم دا زموږ عقائد دي. نوري ډلې پر ضلال دي ... ابیات:

هر کسی درخور مقدار خویش ..... هست نوعی خوشدلی درکار خویش

میکند اثبات و نفي غیر او ..... چه امـــام صـومعه چه پیر دیر

**پوه سه:** چي ان الدین عند الله الاسلام من لدن آدم ﷺ الی یومنا هذا، البته شرائع او احکام یعني په فروعو کي د دین به اختلافات وي په اعتبار د امتو او د زمانو لکن په اصولو کي د دین یعني په معتقداتو کي اختلاف نه سره لري ثم صاروا فرقا مختلفة کالیهود والنصاری والمجوس، او عبادت کوونکي د بتانو یا د ملکو یا د ستورو ونحو ذالک، وقد روی ان ملة ابراهیم صاروا بعده بزمان (۷۰) فرقة کلهم في النار الا واحدة او هغه ډله ده چي دوی په اصولو او فرعو کي د ابراهیم ؑ پر مسلک وه، او امت د موسیٰ ﷺ وروسته تر ده په مرور د زمانو (۷۱) فرقي سوې کلهم في النار الا واحدة چي هغه پر اعتقاد د موسیٰ ؑ او پر عمل د ده ثابت قدمه وه. او امت د عیسیٰ ﷺ وروسته تر ده پر زمانې (۷۲) ډلې سوې چي ټولې یې په اور کي دي الا واحدة وافقت عیسیٰ ؑ في الاعتقاد والعمل، وان امة محمد ﷺ صاروا بعد حین (۷۳) فرقة کلهم في النار الا فرقة واحدة چي دا ډله هغه کسان دي چي پر اعتقاد او عمل د علیه الصلوٰة والسلام او د اصحابو ﷺ د ده باقي پاته دي وهم الناجیة.

**فائده:** دا درواوويا (٧٣) ډلې خو كليات د ډلو دي، او جزئيات د ډلو يې ډېر دي لاتعد ولا تحصیٰ، چناچنه بعض علماءوايي چي ما په ولايت كي د فارس سل (١٠٠) مذهبه وليدل چي د دې درې اوويا (٧٣) ډلو سره يې هيڅ تعلق نه وُ، نو دا د يوه ولايت حال دی! نو په عالم دنيا كي په امت محمديه كي به څو مره ډلې وي؟ انتهى.

**درويش وايي:** چي مجوسيان چي د اور عبادت كوي او عبدة الاوثان چي د بتانو عبادت كوي كمشركى مكة والهند، يا د ستورو عبادت كوي يا د ملكو عبادت وغيرها، دا ټولې ډلې په دې درې اوويا (٧٣) پوري اړه نه لري، دا كه څه هم امت دعوت دي لكن دا (٧٣) ډلي په امت اجابت كي دي والله المستعان.

# وَإِذَا مَسَّ النَّاسَ ضُرٌّ دَعَوْا رَبَّهُم مُّنِيبِينَ إِلَيْهِ

او چي ورسېږي وه انسان ته يو ضرر (لكه فقر، ناجوړي، قحط د باران الى غير ذالک) دوی خواست د دفع د هغه ضرر كوي ورب ته خپل يعني د ياربي نعرې وهي په داسي حال كي چي دوی راجعين و خدای ﷻ ته وي د دعاء او خواست سته د بتانو، ولي چي دوی په دې پوهېږي چي كاشف الضر فقط خدای ﷻ دی لا الاصنام، ولي چي په صحيح روايت كي راغلي دي چي مشركان د مكې چي به په سفر د درياب تله نو په كښتۍ كي چي به سپرېدل خپل يو معبود يعني بت به يې له ځانه سره اخستی، لكن چي كښتۍ به طوفاني سوه او د دوی په زړو كي به د غرق ډېره پيدا سوه، بت به يې و درياب ته وغورځاوه او د يا ربنا نعرې به يې شروع كړې.

**درويش وايي:** چي لفظ د انسان كه څه هم عام دی، لكن عموم مفسرين يې تفسير په اهل مكه مشركينو سره كړی دی.

# ثُمَّ إِذَا أَذَاقَهُم مِّنْهُ رَحْمَةً إِذَا فَرِيقٌ مِّنْهُم بِرَبِّهِمْ يُشْرِكُونَ ﴿٣٣﴾

وروسته هغه وخت چي دوی به وڅكي يعني دوی ته به ورسېږي د خدای ﷻ له خوا څخه رحمت يعني هغه ضُر به په قدرت د خدای ﷻ دفع سو.

**يوه سه:** چي كلمه د اذا لپاره د مفاجات ده چي په پښتو وايي ناببره، والتقدير بالعربية فاجأ فرقى منهم، يوه ډله د دوی په هغه رب سره چي دوی يې له شدت او ضرر څخه خلاص كړه شريک نسي، يعني نسبت د عافيت او دفع الضرر و بتانو ته كوي.

**فائده:** فریق منهم تخصیص یې وکړی له دې سببه چې بله ډله بیا داغسې نه کوي کما جاء في قوله تعالی: فلما نجاهم الی البر فمنهم مقتصد ه آه، یعني ثابت قدم وي پر دې عقیده چې کاشف الضر رب تبارک وتعالی ؤ کما هو حال المؤمنین بالله بلکې بعض میانه رو مشرکان چې له ضر څخه خلاص سي د یا ربنا یا ربنا په نارو سره بیا هم نسبت د کشف الضر و خدای ﷻ ته کوي و بتانو ته یې نه کوي. والله اعلم بمراده في کتابه، وما علی الفقیر الا بذل الوسع والطاقة.

**درویش وایي:** چې د دې آیت سره موافق بخاري او مسلم د زید بن خالد څخه روایت کړی دی قال قال رسول الله ﷺ په هغه سهار چې موږ په حدیبیه کي ؤ (حدیبیه د یو مقام نوم دی قریب و مکې ته چې علیه الصلوة والسلام سره د (۱۵۰۰ یا ۱۶۰۰) اصحابو ﷺ په نیت د عمرې له مدینې څخه راغلي وه او مشرکان د مکې یې د عمرې کولو مانع وګرځېدل، نو علیه الصلوة والسلام سره د اصحابو په حدیبیه کې اقامت پذیر سوه خیر قصه اوږده ده، اخیر د علیه الصلوة والسلام او د قریشو د مکې تر منځ صلح وسوه د راتلونکي کال پر راتګ د عمرې لپاره) د شپې باران وسو علیه الصلوة والسلام چې د سهار جماعت وکړی پر خلګو یې مخ راوګرځاوه او داسې یې وویل: هل تدرون ماذا قال ربکم؟ قالوا الله ورسوله اعلم، قال ﷺ قال ﷻ اصبح من عبادي مؤمن وکافر (تاسې خبریاست چې خدای پاک څه وویل؟ دوی ورته وویل چې خدای او رسول خبر دي، نو علیه الصلوة والسلام وویل چې خدای ﷻ وویل: باران چې وسو بعض بندګان مؤمن دي بعض یې کافر دي) فاما من قال مطرنا بفضل الله ورحمته فذالک مؤمن بي وکافر بالکواکب (هغه چا چې داسې وویل چې پر موږ باران وسو په فضل د خدای ﷻ او رحمت د خدای ج د هغه چا پر ما ایمان دی یعني چې اورونکی د باران خدای ج دی او کافر دی په ستوري سره یعني نسبت د باران و ستورو ته کوي یعني چې فلانی ستوری راوختی نو دا باران وسو) ومن قال مطرنا بنوء کذا فذالک کافر بي ومؤمن بالکواکب (او که چا داسې وویل چې پر موږ باران وسو د فلاني ستوري په سبب هغه سړی کافر دی په ما سره چې زما د صنع او خلق څخه منکر سو او ایمان یې پر کوکب دی چې د باران نسبت یې و ستوري ته وکړی)

## لِيَكْفُرُوا بِمَا آتَيْنَاهُمْ ۚ

**پوه سه**: چي دې لام ته لام عاقبت وايي يعني لام غرض نه دی.

**فائده**: د عاقبت معنی اخیر کار ده، نو مفهوم یې تراخي ده، ځکه دې لام ته لام امهال هم وايي او لام مآل یې هم بولي، او بعض مفسرين وايي چي دا لام لپاره د امر او نهي دی لکن امر لپاره د تهديد دی لکه يو سړی چي په حال کي د غضب زوي ته ووايي اعصنی ما استطعت.

## فَتَمَتَّعُوا فَسَوْفَ تَعْلَمُونَ ﴿٣٤﴾

تاسي تمتع او فائده يعني بنعم الدنيا فيه التفات من الغيبة الى الخطاب.

**پوه سه**: چي سوف لپاره د استقبال بعيد دی، والمعنى ژر دی چي تاسي په عاقبت د خپل تمتع پوه سئ الى يوم القيامة.

## أَمْ أَنْزَلْنَا عَلَيْهِمْ سُلْطَانًا

**پوه سه**: چي کلمه د ام منقطعه ده په معنی د بل ده چي لپاره د انتقال دی او د همزه چي لپاره د انکار دی، عطف ده دا جمله پر کل حزب بما لديهم فرحون باندي، او داسي هم روا ده چي منفصله سي عطف پر مقدر وي. والتقدير ايشركون بلا حجة (وهذا هو معطوف عليه المقدر) ام آتيناهم سلطانا، ابن عباس رض وايي چي مراد له سلطان څخه عذر دی. قتاده رح وايي چي مراد څندي كتاب دی، او بعض مفسرين مضاف محذوف بولي يعني ذو سلطان، والمراد ملكا مع برهان على صحة شرككم يا رسول الله مؤيد بالمعجزات. ومعنى الانكار على هذا التقدير انه ليس شيئ من ذالك موجود.

## فَهُوَ يَتَكَلَّمُ بِمَا كَانُوا بِهِ يُشْرِكُونَ ﴿٣٥﴾

چي هغه سلطان خبري کوي په لسان قال سره يا په دلالة الحال سره، کلمه د ما يا مصدريه ده اي باشراکهم وصحته، او يا موصوله ده والعائد محذوف اي بالامر الذي بسببه يشرکون به وبالوهيته.

**پوه سه**: چي استفهام په ام کي يا لپاره د تقرير دی يعني حمل المخاطب على الاقرار على ان شركهم بلا حجة ولا برهان.

**درویش وايي:** چي دا بيت مناسب دى له حال سره د مشركانو:

ترسم نه رسي بکعبه ای اعرابی ..... کین راه که تو میروی بترکستان است

**وَإِذَآ أَذَقۡنَا ٱلنَّاسَ رَحۡمَةٗ فَرِحُواْ بِهَاۖ**

هغه وخت چي موږ وڅکو (ليس من ذوق الفم بلكه مراد اذا اصبنا الناس) رحمةً يعني صحت او عافيت او فراخه رزق) دوى خوشاله سي په هغه رحمت سره.

**سوال:** خوشالي په رحمت سره بالمعنى المذكور خو امر طبعي دى نو دا خو د انسان د ذم خبره نه ده مع ان المقام ههنا مقام الذم؟

**ځواب:** ليس المراد ههنا الفرح الطبعي بلكي مراد خوشالي د بطر يعني د كبر مع ان اللازم عليه الشكر.

**وَإِن تُصِبۡهُمۡ سَيِّئَةُۢ بِمَا قَدَّمَتۡ أَيۡدِيهِمۡ إِذَا هُمۡ يَقۡنَطُونَ ۝٣٦**

او كه دوى ته ورسېږي يو سختي لكه مسكنت او مريضي په هغه سبب چي د دوى تر لاسو تېر سوى ؤ د مخه يعني من المعاصي، نا بيره دوى د خداى ﷻ له رحمت څخه نا اميده سي.

**سوال:** ټول له معاصي خو په سبب د لاسو نه كېږي. مثلاً شرك د زړه كار دى او بعض ګنهونه په ژبه سره كېږي لكه غيبت او بهتان، او بعض په فرج الى غيرها من الاعضاء؟

**ځواب:** چونكه لاسونه د ډېرو كارو واسطه ده، نو ځكه نسبت د ټولو ګنهو و لاسونو ته كېږي. په پښتو كي هم ورته خبره پښتانه كوي. يو مصيبت چي چا ته پېښ سي بل سړى ورته وو ايي د خپله لاسه د رپېښه سوه.

**درویش وايي:** چي دا دواړه خويونه د مؤمن خويونه دي. بلكي مؤمن د نعمت په وخت كي شكر د خداى ﷻ وايي او اميد و خداى ج ته لري په وخت كي د شدت يعني د كشف الضر و الشدة، او صبر كوي او خداى ج ته اميد د ثواب لري په صبر كي عند المصيبة.

**أَوَلَمۡ يَرَوۡاْ أَنَّ ٱللَّهَ يَبۡسُطُ ٱلرِّزۡقَ لِمَن يَشَآءُ وَيَقۡدِرُۚ**

آيا دوى يعني انسانان چي مراد ځني كافران وه فكر نه وهي؟ (نو مراد رؤيت علمي دى لا البصري)

**پوه سه**: چي همزه لپاره د انکار دی یعني دوی باید دا دوه کاره چي ذکر سول نه کولای، او واو لپاره د عطف دی پر مقدر باندي کما مر مرارًا، والتقدیر الم یتفکروا (هذا هو الفعل المقدر) ولم یعلموا (هذا هو معنی لم یروا)

"ان الله یبسط الرزق آه" بیشکه خدای ﷻ فراخه کوي رزق د هغه چا لپاره چي اراده د فراخی یې ورته وسي او تنکوي رزق یعني لمن یشآء، والحاصل چي څه سبب دی کافرانو لره چي د فراخی د رزق په وخت کي کبر او لویي کوي او شکر د نعمت نه وایي، او د تنگی په وخت کي ولي نا امیده کېږي او رجوع و خدای ﷻ ته نه کوي بالندم والتوبة وترک المعصیة او صبر نه کوي لکه مؤمنانو چي دا دوه کاره کول.

إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَآيَاتٍ لِّقَوْمٍ يُؤْمِنُونَ ﴿٣٧﴾

په تحقیق په دې قبض او بسط کي په تاویل د مذکوره پر دلائل د قدرت او حکمت الهي هغه چا لره چي ایمان پر خدای ﷻ لري (نو مضارع په معنی د حال ده)

**سوال**: آیات یې جمع راوړه او سره ددې چي قبض او بسط خو دوه دي؟

**ځواب**: قبض او بسط په اعتبار د کثرت د کافرانو دېر آیات دي، او لان المراد بالجمع الجمع اللغوي، والاول هو الابلغ فافهم، هداک الله تعالی.

**فائده**: شقیق بلخي رحمه الله وایي: اې بنده! لکه ته چي په خپل ژوند کي بالابود نسې راوستلای، داغه رنګه ته په خپل رزق کي بالابود نسې راوستلای، نو په طلب کي د رزق ځان مه سرګردانه کوه..... بیت:

رزق گر بر آدمی عاشق نمی باشد چرا .. از زمین گندم گریبان چاک می آید چرا

او ابراهیم بن ادهم رحمه الله وایي: طلبنا الفقر (موږ طلب کاوه د فقر) فاستقبلنا الغنی (غنٰی مخ راباندي راواړاوه) نو پر عاقل سړي دا واجب ده چي سکون او اطمنان د زړه حاصل کړي او غنٰی د قلب مد نظر وګرځوي او دا یې ایمان وي چي خدای پاک ﷻ یفعل مایرید علی وفق علمه و حکمته.

**دقیقه**: که یو مؤمن له فقره په دې سببه بېرېږی چي آفات په دین کي پیدا نسي نو دا هم د ایمان له سببه څخه دی.

**نکته**: تاریخ وایي چي معروف کرخي قدس سره په یو امام پسي لمونځ په

جماعت وکړی، وروسته تر سلام امام پوښتنه څنډي وکړه او داسې يې ورته وويل من أين تاكل يا معروف؟ معروف ؒ ورته وويل چې ته صبر وکړه اې امامه چې زه راوګرځوم هغه لمونځ چې په تا پسې مې وکړی. بيا به ځواب درکړم فان الشاک في الرازق شاک في الخالق ولا يجوز اقتداء المؤمن الموقن بالمتزلزل المتردد، قال الله تعالى: لآيات لقوم يؤمنون، ابوبكر محمد بن سابق ؒ داسې خواږه بيتونه په دې باره کې يعني مطابق د تفسير سره دد دې آيت ان الله يبسط الرزق الآية ويلي دي.

فكم قوى قوى فى تقلبه ..... مهذب الراى عنه الرزق ينحرف
كم ضعيف ضعيف فى تقلبه ..... كانه من ثبج البحر يغترف
هذا دليل على ان الآله له ..... فى الخلق سر خفى ليس ينكشف

**حکايت**: د بضع علماؤ څخه چا پوښتنه وکړه: ما الدليل على ان للعالم صانع واحد؟ هغه عالم ورته وويل درې شيان دد دې مسئلې جواب او دليل دي (۱) ذل اللبيب د هر دانشمند او په هره خبره پوه سړي ذلت دی (۲) فقر الاديب: د ډېر عقل دانا سړي مسکنت دی (۳) وسقم الطبيب: ناجوړي د طبيب.

**درويش وايي**: چې عربي عبارت دد دې ځواب ډېر زيبا او په زړه پوري دی يعني: ذل اللبيب، وفقر الاديب، وسقم الطبيب.

## فَاٰتِ ذَا الْقُرْبٰى حَقَّهٗ

کلمه د فا لپاره د سببيت جزاء د شرط محذوف ده، والتقدير اذا عرفت ان قبض الرزق وبسطه من جانب الله تعالى، نو ورکوه (ذا القربى) قربي مصدر دی په معنى د قرابت دی (حقه) من البر والنفقة الواجبة.

**پوه سه**: چې مخاطب په نېز د بعض مفسرينو عليه الصلوة والسلام دی اصالةً وامته تبعًا، او بعض مفسرين وايي چې مخاطب كل من بسط له الرزق.

**پوه سه**: چې امام اعظم ابو حنيفه ؒ په دغه آيت سره دليل وايي پر وجوب د نفقې د ذوى الارحام (يعني خاوندان د قرابت المحارم چې د سړي محرم وي په وخت د احتياج د هغو يعني چې سپين ږيری يا سپين سرې وي چې کسب د نفقې نسي کولای، يا ګوډ يا ړوند الى غير ذالک.

**درويش وايي**: چې د سورة البقرة په تفسير کې تفصيل د نفقة المحارم تېر سوی دی.

وَالْمِسْكِينَ وَابْنَ السَّبِيلِ

یعني مسکین چي بېګانه وي او مسافر چي في الحالة دده مال نه وي که څه هم دی مال په وطن کي لري ددوی حقوق له مال څخه دي اغنیاء ورکوي لپاره د رضٰی د خدای ج او د امید د فضل د خدای ج في الدنیا و الآخرة.

**فائده:** په کشف الاسرار کي وایي: قرابت دو قسم است قرابت دین و قرابت نسب مجرد، و قرابت دین سزا وارتر است بمواسات از قرابت نسب مجرد انتهی.

ذَٰلِكَ خَيْرٌ لِّلَّذِينَ يُرِيدُونَ وَجْهَ اللَّهِ ۖ وَأُولَٰئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُونَ ﴿٣٨﴾

دغه ورکړه د مال و ذی القربٰی الخ ته (یعني ذالک اشاره ده و مصدر ته د "فآت") خیر: بهتره ده تر خاصولو د خپلو ځانو په لذاتو او مشتهیاتو سره، د هغو کسانو لپاره چي اراده لري د رضٰی د خدای ج، یعني قصد یې په انفاق سره رضا د خدای جل جلاله وي او ثواب د خدای ج (نو لفظ د وجه کنایه ده د رضاء د خدای ج پوه سه: چي مفضل علیه د خیر محذوف دی په قرینه د ماقبل یعني من الایتآء ریاءً وسمعةً) او هم دغه کسان فلاح مندونکي دي.

**پوه سه:** چي هم ضمیر فصل دی لپاره د حصر یعني په دوی کي فلاح او خلاصون له عذابه د خدای ج حصر دی، دون غیرهم یعني چي ددوی پر صفت نه وي. ولي چي هغو کسانو چي په ایتاء کي یې قصد وجه الله وه رایه نیول په دنیا فاني سره ثوابونه د عقبٰی چي باقي او بالعکس دی حال د ریاکارانو او د سمعت د طرفدارانو.

وَمَا آتَيْتُم مِّن رِّبًا

او هغه مال چي تاسي یې ورکوئ و سود خور ته له کتهي څخه یعني زیادة محرمة في الشرع چي لس درهمه ورکوي په عوض کي د سلو روپو پور مثلاً، یا په نورو ربویه مالو. کالحنطة والشعیر وغیر ذالک، یعني کټه مشروطوي في عقد المعاملة یا عطیة مباحة یعني هدیه یا هبة لپاره د مکافات.

**سوال:** هبه یا هدیه خو سود نه دی، ولي چي مشروط في العقد نه دی. نو دې ته ربا ولي وویل سو؟

**خواب:** مقصود چي په دې هبه يا هديه کي زيادت ؤ، نو په نامه د مشروط في العقد ربی ورته وويل.

**يوه سه:** چي ابن کثير د قراء سبعه ؤ څخه د دواړه ځايه اتيتم په قصر سره وايي چي معنى يې ماجئتم به من اعطاء زيادة محرمة او عطيه مباحة ده، او د جمهورو قراؤ قرائت په مد د الف دی كما في المصاحف المطبوعة.

## لِّيَرْبُوَاْ فِىٓ أَمْوَٰلِ ٱلنَّاسِ فَلَا يَرْبُواْ عِندَ ٱللَّهِ

"ليربوا" اى ليزيد في اموالهم، په مالو کي د خلکو، نو هغه ورکړه څه نه لري په نيز د خدای ﷻ يعني ثواب يې نسته. محي السنة بغوي رح وايي چي د دې آيت په معنى کي اختلاف دی، سعيد بن جبير، مجاهد، طاؤس، قتاده او اکثر مفسرين رحمهم الله وايي چي دا آيت په شان کي د هغه نازل سوی دی چي يو سړی بل سړي ته يوه عطيه او يا هديه ورکړي د دې لپاره چي هغه به د غيرت د لاري ما ته ډېر عوض راکړي، نو داسي که څه هم سود نه دی بلکې مباح دی لکن ثواب يې په ورځ د قيامت و ده ته نه ورکوي، وهذا معنى قوله تعالى فلايربوا عند الله، لکن آنحضرت ﷺ داسي ورکړه حرامه وبلل، کريمه: ولاتمنن تستکثر، او ضحاک رح وايي چي دا آيت په باره کي د هغه سړي دی چي خپل قريب يا اشنای ته مال ورکړي لپاره د ډېر والي د مال د هغه سړي يعني قريب يا اشنای رضاء د خدای ﷻ يې منظور نه وي، نو دې سړي ته هم خدای ﷻ ثواب نه ورکوي، ولي چي وجه الله دده مقصود نه ؤ وهذا معنى قوله فلايربوا عند الله. او شعبي رح وايي چي دا په شان کي د هغه چا نازل سوی دی چي يو سړی د بل سړي سره په سفر کي ځان ملګری کړي او خدمت يې کوي، نو هغه مخدوم و دې خادم ته څه ګټه د تجارت ورکړي په سبب د کومک او خدمت د خادم لا لوجه الله، نو په دې ورکړه کي هم ثواب نسته لانه لايريد وجه الله وهذا معنى قوله تعالى فلايربوا عند الله، رواه البخاري في اول کتابه الصحيح، انما الاعمال بالنيات (اى ثواب الاعمال بالنيات لاوجودها) وانما لکل امرء ما نوى فمن کان هجرته الى الله ورسوله (اى الهجرة من مکة الى المدينة، په نيت د ثواب من الله او د عليه الصلوة والسلام د رضى او محبت لپاره) فهجرته الى الله ورسوله، يعني خدای ﷻ ثواب ورکوي او عليه الصلوة والسلام ځني راضي کېږي.

**درویش وايي:** چي پر دغه ترجمه چي ما وکړه د حدیث مذکور هغه سوال نه وارديږي چي په حدیث مذکور کي خو من شرطي ؤ یعني متضمن معنی لره د شرط، نو څرنګه جمله شرطیه يې په جزاء کي راوړل سوه او دا په نحو کي ممتنع ده چي شرط او جزاء دي يو شی وي، وحاصل الدفع په مختصره توګه دادی چي دا جمله په شرط کي مقید ده په قصد او اراده سره او په جزاء کي په ثواب سره فافهم جدًا) ومن کان هجرته الی الدنیا یصیبها (یعني چي انصار د مدینې د مهاجرینو سره د مکې مالي مرسته کوي) او امرئةٍ ینکحها (یا یوه ښځه به هوريږي په مدینه کي په نکاح کړم لکه مهاجر د ام قیس چي د دغه غرض لپاره يې هجرت مدینې ته کړی ؤ) فهجرته الی ماهاجر الیه (یعني ثواب د هجرت عند الله نه لري لعدم نیته ذالک بلکي ثواب يې هغه دنیا ده یا د هغې ښځي سره نکاح ده)

**پوه سه:** چي دا حدیث مسلم هم راوړی دی دواړو په روایت د عمر بن الخطاب رض څخه.

**درویش وايي:** چي دا حدیث ډېر مشهور دی حتی چي بعض محدثین يې متواتر بولي وهو اصل عظیم في امور الآخرة وتصحیح النیة في اعمال الشریعة.

## وَمَآ اٰتَيْتُمْ مِّنْ زَكٰوةٍ

هغه مال چي تاسي يې ورکړئ.

**درویش وايي:** چي روح المعاني تفسیر د زکوة په صدقه سره کړی دی، او روح البیان يې تفسیر داسي کړی دی ای مفروضة چي زکوة مصطلح دی او صدقه (ای نافله) او مظهري رح يې هم په دواړو سره تفسیر کړی دی.

**پوښتنه:** صدقه نافله ته ولي زکوة وايي؟

**ځواب:** صدقه نافله هم سبب د نما او زیادت د مال ده لکه زکوة فرضي چي هم په دغه سبب زکوة بولي.

## تُرِيْدُوْنَ وَجْهَ اللّٰهِ فَاُولٰٓئِكَ هُمُ الْمُضْعِفُوْنَ ۝

"ترید ون وجه الله" ای ذاته او ثوابه او رضاه، نو دغه کسان چي فرضي زکوة یا نفلي صدقه لوجه الله ورکړه ددوی دي چي ثواب مضاعف ورکول کېږي يو په

لس بیا تر اووه سوه مثله پورې الی ماشاء الله تعالی، والتفاوت بتفاوت النیات والاخلاص، وتفاوت المعطي له في القرابة والجوار او في الفقر والمسکنة، وایضًا مضاعف کېږي مالونه ددوی په دنیا کي ببرکة الزکوة والصدقة.

**پوښتنه:** مضعفون خو صیغه د اسم فاعل ده، نو به صیغه د اسم مفعول چي معنی بي دا وای چي مضاعف ثواب ورکول کېږي به اولی نه وای، کما في قرائة ابی رض؟

**ځواب:** صیغه د اسم فاعل دلته په معنی د صار ذا ضعف چي باب د اضعف چي د افعال باب دی په معنی د صار ذا ضعف راغلی دی، لکه اقوی په معنی د صار ذا قوة وایسر ای صار ذا یسار وغنی، د علم صرف په کتابو کي وایي چي باب د افعال کاهي لپاره د صیرورة د فاعل ذا اصله ای مجرده کما في الامثلة المذکورة، او بل ځواب دادی چي همزه د باب د افعال دی لپاره د متعدي والي وي کما هو الاکثر في الباب المذکور او مفعول دي محذوف وي، والمعنی الذین (دا یې مفعول محذوف دی) ای اخذوا تلک الاضعاف ببرکة الزکوة ویؤید هذا الوجه قرائة ابی رض علی صیغة المضعفون بفتح العین علی صیغة المفعول من باب الافعال فافهم.

**پوښتنه:** مناسب د ماقبل آیت سره یعني فلا یربوا عند الله داسي عبارت نه ؤ فهو یربوا عند الله کما یقتضیه المقابلة؟

**ځواب:** ددې کسانو د حال په بیانولو کي خدای ﷻ تغییر راوستی، ولي چي په دمخه کي یې جمله فعلیه راوړه یعني فلا یربوا عند الله، او دلته یې جمله اسمیه راوړه یعني فاؤلئک هم المضعفون، او مصدر یې اسم اشاره سره وګرځول یعني فاؤلئک، او ضمیر فصل یې هم ورسره راوړی چي لفظ د هم دی دا ټوله تغییرات او زیادت لپاره د مبالغې دی په حال د فریق ثاني (۱) دوی ته یې مضاعفة ثابت کړی چي هغه ابلغ تر مطلق زیادت دی لکه په اول کي (۲) علی طریق الجملة الاسمیة (۳) والضمیر الفصل (۴) وحصر ذالک بالاستحقاق (۵) مع في الاشارة یعني باؤلئک من التعظیم لدلالته علی علو مرتبتهم (۶) والالتفات عن الخطاب حیث قال فاؤلئک دون فانتم للتعظیم کانه سبحانه تعالی خاطب بذالک الملائکة وخواص الخلق تعریفًا لحالهم الی غیر ذالک.

اَللّٰهُ الَّذِيْ خَلَقَكُمْ ثُمَّ رَزَقَكُمْ ثُمَّ يُمِيْتُكُمْ ثُمَّ يُحْيِيْكُمْ ؕ هَلْ مِنْ شُرَكَآئِكُمْ مَّنْ يَّفْعَلُ مِنْ ذٰلِكُمْ مِّنْ شَيْءٍ ؕ سُبْحٰنَهٗ وَتَعٰلٰى عَمَّا يُشْرِكُوْنَ ﴿٤٠﴾

لفظ الله مبتداء ده وروسته ټول له خبر دی. يعني خدای ﷻ هغه ذات مقتدر دی چي تاسي يې پيدا کړي ياست ايها المشرکون (تخصيص د مشرکانو چي فقير وکړی له دې کبله چي خطاب د دوی سره کما يدل عليه ما بعده) مراد د خلق څخه خلق په رحم د مور دی نطفة اولاً علقة ثانيًا مضغة ثالثًا ثم کسوة العظام لحمًا رابعًا ثم نفخ الروح خامسًا. ثم اخراجکم من بطن الام وروسته زرق درکوي مدة حياتکم، بيا مو وژني عند الاجل الموعود (ثم يحييکم يې ذکر کړی وان کان المشرکين لايعترفون بذالک)

آيا سته له شريکانو څخه ستاسي يعني تاسي د خدای ﷻ شريکان بولي، يعني الاصنام وغيرها چي تاسي يې عبادت کوئ لکه ستوري، يا جن يا ملکي والاستفهام للانکار ای ليس شيئ منها چي فعل دي وکړي د دغو مذکوره شيانو څخه د يو شي فضلاً عن الجميع.

**بوه سه:** چي تر دې ځايه خدای ﷻ ذکر کړه لوازم د معبوديت او ټول يې ځان ته ثابت کړه او له غير څخه يې نفي وکړې مؤکدًا بالانکار کما يدل عليه الاستفهام الانکاري، وهذا يوافق البرهان والعيان. وروسته يې په نتيجه کي داسي وويل؛ پاک دی خدای ﷻ او عالي دی د مايشرکون څخه.

**درويش وايي؛** چي په حديث قدسي کي راغلي دي: انا اغنى الشرکاء عن الشرک (زه ډېر غني يم د هغه عمل څخه د بنده چي زما سره په عمل کي شريک وګرځوي بل شی، نو اسم تفضيل يعني اغنى لپاره د مطلق زيادت دی يعني که څه هم په مضاف اليه کي هيڅ خير نه وي کما في عبادة الصنم) من عمل عملاً اشرک فيه معي غيري ترکته وشرکه.

**بوه سه:** چي شرک په فتح د کاف دی په معنی د شريک دی.

**بوه سه:** چي علماء وايي چي شرک في العبادة (١) شريک خدای ﷻ له ويل دی په ذات کي لکه مجوسيان چي وايي چي عالم لره دوه واجب الوجود خدايان دي، يو

خالق الامور النافعة دی، دوی وايي چي د هغه نوم يزدان دی، او بل خالق دی د مضر اشياء لکه مار، لړم، ځوزان وغيرها، دوی وايي چي د هغه نوم اهرمن دی (۲) شريک دی په افعالو کي د بنده لکه معتزله چي وايي چي خالق د افعالو د بندګانو خپله بندګان او اهل السنة و الجماعة وايي چي خالق د ذات د بندګانو او د افعالو ددوی خدای جل جلاله دی کريمه: والله خلقکم وما تعملون، تفصيل او دلائل او واجباتو ددې مسئلې په علم الکلام کي دی (۳) شريک په عبادت کي چي رياء يې بولي، تفصيل الرياء شيخ ابو حامد محمد الغزالي رح وايي وان کان مع الرياء قصد الثواب راجحًا. يعني ډېر جانب د عبادت قصد د ثواب ؤ لکن رياء لږ ورسره وه، دی وايي چي زما ظن دا دی والله اعلم چي اصل ثواب د دغه عبادت منفي نه دی لکن مضاعفة يې نسته، نو هغه حديث چي ذکر سو محمول دی پر دې چي قصد د ثواب او رياء سره برابر وي يا قصد د رياء يې راجح وي، وقال الشيخ الکلاآبادي رح صح نيته في اوله لم يضره فساده بعده يعني الرياء، په وروسته کي ولايحبطه شيئ دون الشرک الجلي لان الرياء ما يفعل العبد من اوله ليرائي الناس ويکون ذالک قصده ومراده عند اهل السنة والجماعة کذا في شرح المشارق لابن الملک په فتاوی الاشباه والنظائر نقلاً عن التاتارخانية وايي لو افتتح الصلوة خالصًا لله تعالی ثم دخل في قلبه الرياء فهو علی افتتح يعني رياء تاوان نه ورته کوي.

**درويش وايي:** چي فقهاء رحمهم الله وايي چي د فرضي لمانځه په اصل کي رياء ځای نه لري، البته په هيئت کي يې رياء سته يعني چي يوازې لمونځ کوي تعديل الارکان او خشوع نه وي پکښې او چي په حضور کي د خلګو فرضي لمونځ کوي په ښه تعديل الارکان او خشوع سره يې کوي، نو په دې صورت کي د اصل لمانځه غاړې يې خلاصي دي او د تعديل الارکان وغيره ثواب يې نسته او د نفلي لمانځه په اصل او هيئت دواړو کي رياء ځای لري، مثلاً چي څوک نه وي نفلونه نه کوي او يا چابک چابک يې کوي، او د خلګو په مخ کي نفلي لمونځونه کوي او په ښه هيئت سره يې کوي.

**حکايت**: يو ريا کاره شيخ ؤ چي مريدان يې هم درلوده، يو ډېر مالدار سړی په سبب دده د ظاهري کار ليدلو څخه د هغه شيخ مريد سوی ؤ، نو رفته رفته رفت او آمد شروع سو، يوه ورځ مالدار مريد ورته ووېل چي ننه شپه زما لمبه يې سره د صاحبزاده يعني زوی، شيخ دعوت قبول کړی او سرمايه داره مريد ډېر فوق العادة خواړه په کور کي پر

خپل کور و الا باندي زېر مه کړي وه چي تنه شپه پیر صاحب زموږ مېلمه دی باید بند خواړه تیار کړئ، خیر مابښام چي پیر صاحب او زوی راغله او ستر خوان هوار سو رقم رقم خواړه پر کېښېښول سوه، پیر صاحب یو څو ګولې د یو قسم خوړو څخه وخوړلې او داغه رنګه د بل قسم خوړو څخه یعني په محدود ډول یې وخوړلې. نو پیر صاحب تر شا سو ډوډۍ یې بس کړه. سرمایه دار مرید ورته وویل چي صاحب ډوډۍ دي ولې بس کړه؟ پیر صاحب ورته وویل چي ډېره ډوډۍ خوړل سړي ته ډېر خوب وررولې او د شپې زموږ د وظائفو مانع ګرځي. هر څه تېنګار چي سرمایه داره مرید وکړی پیر صاحب انکار کاوه، او د پیر صاحب زوی په ماړه نس ډوډۍ وخوړل، ستر خوان چي ټول سو مرید ورته وویل چي تبرګا به د ماختن لمونځ موږ ته په دې مهمان خانه کې په جماعت راکوې، پیر صاحب د مخه سو جماعت پسې محدود نفر ودرېدل، سرمایه دار او د هغه مزدوران او د پیر صاحب زوی پسې ودرېدل، پیر صاحب په ډېره خشوع او په نهایت تعدیل الارکان لمونځ وکړی او یوازې دوه رکعته سنت یې وکړه وتر یې و تهجد ته پرېښول. خیر پیر صاحب د خپل سرمایه دار مرید څخه رخصت واخستی دی او زوی یې کور ته راهي سوه، پیر صاحب چي کور ته ورغلی ماینې ته یې وویل چي ستر خوان را واخله ډېر وږی یم، ماینې یې ورته وویل چي د مهمانۍ څخه څرنګه وږی راغلې هورې به دې ځان ښه موړ کړی وای، پیر صاحب پر ماینې منت وکړی چي څرنګه ناپوه یې، که ما هورې ځان موړ کړی وای د سرمایه داره مرید زما څخه عقیده اوښته چي دا څرنګه خېټور پیر دی، خیر ماینې یې وچه ډوډۍ راواخستل. پیر صاحب داوبو په کومک ځان ترېزي په موړ کړی. زوی ورته ګوري، پیر صاحب چي له ډوډۍ څخه فارغه سو، زوی یې ورته وویل چي بابا لمونځ دې هم راو ګرځوه، ولې تا خو کور داسې لمونځ نه کاوه لکه د سرمایه داره په کور کې چي دې وکړی.

**درویش وایي:** چي داوه د حکایت پښتو ژباړه، او دا د ریاء في هیئت الصلوة.

## ظَهَرَ الْفَسَادُ فِي الْبَرِّ وَالْبَحْرِ

ښکاره سو فساد په صحراء کې او په دریاب کې.

**درویش وایي:** چي مفسرین رحمهم الله په متفقه قول سره وایي چي مراد له فساد څخه د بر (۱) کاختي د بارانو چي خشک سالي یې بولي (۲) ډېر مړي یا په خدایي مرګ او

يا د انسانانو يو د بل سره وژل (لکه په موجوده کلو کي په افغانستان کي امريکايانو او د هغو د نيټو الله يوالان لکه انګريزان، کاناډايان او نور چي پر افغانستان يې يرغل وکړی او ټولو ته ديار که ښارونه دي که صحراوي دي تر قبضې لاندي يې راوستلي او پر بيچاره مسلمانانو يې د بمبار طيارو بمان غورځول چي اووه کاله کيږي چي دا سلسله جاري ده يعني تر اوسني سني (١۴٣١ هـ ق) لکن چونکه د افغانستان غيور قوم دی د بيګانه يعني کافرانو حکومت پر ځان نه قبلوي، نو بيچاره او بې وسه او بې سلاح اقوام ددې ظالمانو په مقاومت او په جهاد بوخت دي چي تر اوسه پوري په زرهاؤ مسلمانان بلکې امريکايان او د دوی همکاران هم پکښي وژل کيږي والله اعلم الى اى وقت تجري هذه السلسلة يعني کشت و خون په افغانستان کي به جاري وي. اللهم نصرًا للمؤمنين بحرمة النبي عليه الصلوة والسلام على اعدائک نصرًا عزيزًا عاجلاً وصبرًا على البلايا الواردة من جانب اعدائک واعداء الدين على اوليائک من المؤمنين، دا وُ تفسير د موتان د مثال په توګه.

(٣) کثرة الحرق والغرق، د اور سوځنه ددې مثال هم په موجوده زمانه کي افغانستان دی چي ټانګان او بمباري طيارې د امريکايانو اورونه پاشي د افغانستان پر وګړو او زراعتي ځمکو او پر قريو (۴) جنګونه به ډېر وي ددې مثال په نړۍ کي افغانستان دی (۵) والجدال: نحقه بحثونه به جاري وي (۶) برکتونه د ځمکو او د باغو او د تجاراتو به قطع سي (٧) ظلمونه به ډېر سي (٨) يو بل ته ضرر رسول به ډېر سي (٩) امراض به ډېر سي چي پر زرو هسپتالونه او پر ډاکټرانو به واری نه کيږي (١٠) مفسد بادونه به پر دريابو مسلط سي چي د دريابو پر حيواناتو په ضرر تماميږي چي يو له هغو څخه اصداف دي.

**درويش وايي:** چي صدف د يو حيوان ژوندي شي نوم دی چي داسي کاسه لري چي په خپل اختيار يې خلاصوي او پر ځان بنده وي او چي کاسه بنده کړي يو څاڅکی او به و داخل ته نه ورځي په هر صورت مثال د صدف کشف دی پر ځمکه چي هغه دوې کاسې لري او خلاصول او بندول يې دده په اختيار کي دي، نو د پسرلي د دوهمي مياشتي اتلس (١٨) تاريخ د شمسي حساب دغه اصداف ټول له پر مخ د اوبو چي درياب په څپو سي يعني بحر الهند والفارس او ټول له مخ د اوبو ونسي او کاسي

خلاصي كړي چي كاسې ېخي سپيني دي، نو مخ د اوبو ددوى د كاسو څخه معلومېږي لكه ملغلري چي پر پاشلي وي او د رب العزة په قدرت پر دغه دريابو باد وريځ پيدا اسي او غټ غټ څاڅكي باران شروع سي او دې كوچني حيوانانو خولې خلاصي ورته نيولي وي، په بعضو كي يو څاڅكى باران وسي په بعضو كي دوه څاڅكي او په بعض كي درې وهكذا الى مأة، وروسته اصداف خپلي كاسې بندي كړي او د درياب پاى ته ولاړ سي، هورې چي ورسېده هغه حيوان سمدلاسه مړ سي، او هغه څاڅكى د دې حيوان په نس كي كرار كرار ملغلره كېږي، كه يو څاڅكى وُ يوه ملغلره پيدا كېږي او كه دوه څاڅكي وه دوې ملغلري پيدا كېږي وهكذا، نو هغه صدف چي يو څاڅكى يې په خوله كي واقع سوى وُ د خداى ﷻ په قدرت دومره لويه ملغلره سي چي كاسه ټوله په ډكه سي چي دې ملغلري ته دريتيمه وايي او فريده يې هم بولي، يتيمه يې په دې بولي چي مثل يې نسته، او فريده يې په دې بولي چي په صدف كي يوازي ده، او په فارسي يې دريكتا بولي، او په پښتو يې بې ساري ملغلره بولي، چي د دې ملغلري په لكو روپۍ قيمت دى، ثم وثم چي څاڅكي ډېرېږي ملغلري ډېرېږي او كوچنۍ كېږي او قيمت يې هم كمېږي، وروسته غواصان د دريابو په دريابو كي غوټې وي هر شى چي يې په مخه ورغلى وه يې كاږي او بغل ګولۍ چي په غاړه كي يې وي و هغه ته يې واچوي، خوش قسمت تر ټولو خو ته خوږونكى هغه دى چي دريتيمه صدف په لاس ورسي ثم وثم.

**درويش وايي**: چي بارانونه نه وي د درياب اصداف ناكامه د درياب پاى ته ولاړ سي تر بله كاله پوري او د ملغلرو كاروبار هم قطع سي، وهذه مصيبة عظيمة في البحر كما لا يخفى.

**درويش وايي**: چي په تفسير كي د بر او بحر اختلاف دى، بغوي رح وايي چي له بر څخه مراد دښتونه او صحراوي دي چي مالدار خلگ چي پونده يې بولي گزاره پر كوي، نو چي بارانونه نه وي دښتونه او بيابانونه له وښو څخه خالي وي، نو د پوندو او د دوى د اوښانو او مېږو او بزو په څه چاره وي، او هم بغوي رح وايي چي له بحر څخه مراد هغه ښارونه او قريې دي چي د جاري رودو او ويالو پر غاړه پراته وي، نو چي خشك سالي وي او د رودو اوبه خشكي سي، نو دوى د باغو د انگورو او انارو

او د سبزیجاتو به څه حال وي، او عطیه رح وایي چي مراد له بر څخه د مځکي مخ دی که صحرا یعني دبنتونه وي او که قریې او ښارونه وي، او له بحر څخه مراد معنای معروف د بحر ده چي رودونه یا لوی لوی ویالې دي، او ابن عباس او مجاهد رض وایي چي له فساد څخه د بر مراد قتل دی د هابیل ابن آدم ع د خپل ورور قابیل د خوا چي قصه یې مشهور ده، او له فساد څخه د بحر مراد ظلم دی د ملک عمان چي جلندي یې نوم ؤ، چي آیت کریمه یې شاهد دی: یأخذ کل سفینة غصبًا: کما في قصة موسٰی والخضر علیهما السلام، روح المعاني وایي چي قتل د هابیل یا غصب د جلندي د کښتیو پر طریقه د مثال دي د فساد في الارض، یعني فساد في الارض په دغه کي حصر نه دی.

**درویش وایي**: چي روح المعاني او مظهري او روح البیان د الضحاک رح څخه داسي روایت په تفسیر کي د ظهر الفساد آه کړی دی چي په زمانه کي د آدم ﷺ تر له مځکه سرسبزه او شادابه وه حتی چي هري درختي ته به بني آدم ودرېدی په هغې درختي پوري به یوه خوراکي مېوه ځړېدل هغه به بني آدم په مزه وخوړل او د بحر محیط اوبه خوږې وې، او په ځنګلو او غرو کي به زمري په بقرة الوحش کار نه درلودی چي ښکار یې کړي او نه لېوه په پسو کار درلودی حتی چي قابیل چي د آدم ع زوی ؤ خپل ورور هابیل قتل کړی یعني ناحقه قتل چي فساد ددوی منځ ته راغلی، مځکي خپل سرسبزي د لاسه ورکړه او ځنګلي او غرني درختو د مېوو پر ځای ځوزان راویستل او د بحر محیط اوبه ترخې سوې، او د حیواناتو لکه زمری او بقرة الوحش او د لېوه او د پسو تر منځ عداوت پیدا سو کما نراه الآن.

## بِمَا كَسَبَتْ أَيْدِي النَّاسِ

په سبب د کسب د لاسو د خلکو ای بشوم معاصیهم مثلاً په مکه مکرمه کي کاختي او خشک سالي چي له اطرافو څخه به ذوی ته خوراکي مواد راوړل کېدل یعني د تجارو له خوا څخه هغه هم قطع سوه، ولي چي د لاري په اوږدو کي اوبه نه وې.

**درویش وایي**: چي دا هغه وخت ؤ چي کفارو د مکې علاوه پر شرک د علیه الصلوة والسلام په رېړولو او ازار لاس پوري کړی او علیه الصلوة والسلام داسي خدای ﷻ ته خواست وکړی: رب اعني علیهم بسبع کسبع یوسف، حتی تر دې اندازې ورسېدل چي هډوکي به یې په اوبو کي وه ایشول څه غوري چي به پیدا

سوه هغه به یې وه څیښل او مردار شیان یې هم خوړل... شاعر وایي:

چون عمل نیکو بود گلها دمد ....... چونکه زشت آید بروید خارزار

گر بد و گر نیک باشد کار تو ....... هرچه کار بد روی انجام کار

از خدا خواهم توفیق ادب ....... بې ادب محروم گشت از فضل رب

لِيُذِيقَهُم بَعْضَ الَّذِي عَمِلُوا لَعَلَّهُمْ يَرْجِعُونَ ﴿٤١﴾

چې په دوی و څکې یعني دوی ته ورسوي بعض جزاء د هغو کارو چې دوی یې عمل کاوه (فالعبارة بحذف المضاف ای لفظ الجزاء) بعض یې له دې سببه ووایه چې تمام او کامل جزاء خو په قیامت کې ده، کلمه د لام لپاره د بیان د علت ده او یا لام عاقبت دی "لعلهم یرجعون" یعني لکی یرجعوا عن اعمالهم الخبیثة. لعل متعلق دی په لیذیقهم پورې، قال قتادة رح چې مکه تو له د ظلم او ظلالت څخه ډکه وه قبل مبعث النبي ﷺ او دی مبارک چې خدای ﷻ راواستاوه رجع راجعون من الناس یعني له شرک او معاصیو څخه.

قُلْ سِيرُوا فِي الْأَرْضِ فَانظُرُوا كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الَّذِينَ مِن قَبْلُ ۚ

ته ووایه کفارو ته د مکې چې تاسې سفر وکړئ په مځکه کې، نو وګورئ چې څرنګه سوې دی اخیر کار د هغو کسانو چې تر تاسې د مخه وه.

**پوهسه:** چې قبل مبني پر ضمه دی، په سبب د حذف مضاف الیه ای قبلکم، چې فقیر په ترجمه کې د آیت اشاره ورته وکړه، والحاصل چې په دغو سفرو کې به تاسې ووینئ کورونه د ظالمانو خالي او خراب کمنازل قوم لوط وقوم ثمود.

كَانَ أَكْثَرُهُم مُّشْرِكِينَ ﴿٤٢﴾

وه اکثره "الذین من قبل" مشرکان.

**پوهسه:** چې جمله د کان حال ده په تقدیر د قد کما هو القانون النحوي في الماضي الواقع حالاً، او یا جمله مستأنفه ده لپاره د دلالت پر دې چې سوء عاقبت د دوی په سبب د ظهور د شرک وغلبته فیهم (نو لفظ د اکثر یې په اعتبار د غلبه ووایه) او یا معنی د آیت داده چې شرک خو په اکثر کې د دوی و، په لږو خلګو کې خو شرک نه و، لکن نور معاصي وه، نو ټو له هلاک سوه ما دون الشرک په سبب د

سوء الجوار او يا معنى داده چې غير مشركينو و مشركانو ته امر بالمعروف نه کاوه او نهي عن المنكر، نو دوى هم ورسره هلاک سوه. وفي المثنوي:

بارها پوشد پی اظهار فضل ....... باز گیرد ازپی اظهار عدل
تا پشیمان میشوی از کاربد ....... تا حیا داری ز الله الصمد

فَأَقِمْ وَجْهَكَ لِلدِّينِ الْقَيِّمِ

(الفاء للسببية اى اذا كان الامر كذالك اى ماسبق من قوله تعالى ظهر الفساد آه كمامر تفصيله) نو ثابت او دائم وګرځوه يامحمد (ﷺ) خپل مخ (كناية عن تمام التوجه) هغه دين ته چې كامل الاستقامة دى چې هيڅ كږ او پېچ نسته پکښې وهو دين الاسلام، كه څه هم مخاطب عليه الصلوة والسلام دى لكن امت يې تبعًا ورسره دي.

مِنْ قَبْلِ أَنْ يَأْتِيَ يَوْمٌ لَا مَرَدَّ لَهُ مِنَ اللَّهِ يَوْمَئِذٍ يَصَّدَّعُونَ ﴿٤٣﴾

د مخه تر دې چې راځي هغه ورځ چې هيڅوک يې د رد طاقت نه لري (من الله) يا متعلق دى په يأتي پوري يعني چې راتګ له جانبه د خداى ﷻ دى يا متعلق دى په مرد پوري چې مصدر دى يعني خداى ﷻ يې هم نه ردوي چې اراده يې تعلق پوري ونسي و الظاهر ان المراد به يوم القيامة.

**پوه سه:** چې اصل د "يصدعون" يتصدعون ؤ، والمعنى خلق فرق وګرځي فريق في الجنة وفريق في السعير، او كه مراد ورځ د قيامت نه وي، نو معنى د آيت فريق يعذب في الدنيا كما في يوم بدر، وفريق في الآخرة.

مَنْ كَفَرَ فَعَلَيْهِ كُفْرُهُ ۖ وَمَنْ عَمِلَ صَالِحًا فَلِأَنْفُسِهِمْ يَمْهَدُونَ ﴿٤٤﴾

كه څوک كفر اختيار كړي نو پر هغه وبال د كفر دى في الدنيا والآخرة او كه څوک عمل صالح وكړي، نو د خپلو ځانو لپاره منازل جوړوي په جنت كې.

لِيَجْزِيَ الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ مِنْ فَضْلِهِ

يعني ليجزي الله متعلق په يمهدون پوري دى، چې وركړي هغه كسانو ته چې ايمان يې راوړى وي او عمل صالح يې كړي وي له خپل فضله څخه، يعني پر خداى ﷻ وجوب نسته بلكې دا فضل د خداى ﷻ دى، قال ابن عباس ؓ چې تر عملو بالا بود شي لان الحسنة بعشر امثالها الى سبع مأة الى ماشاء الله تعالى.

**پوښتنه**: خدای ﷻ یوازې اثابه د مؤمنانو بیانوي، د کریم اصل اراده ده الا من ابی باختیاره وقبل النار لاجل کفرهم کما یدل علیه قوله.

إِنَّهُۥ لَا يُحِبُّ ٱلۡكَٰفِرِينَ ۝٤٥

په تحقیق خدای ﷻ محبت نه کوي له کافرانو سره یعني یبغضهم لان لا واسطة بین حب الله وبغضه.

**فائده**: قوله من فضله دال علی ان الاصابة تفضل محض لانه لایجب علی الله شیٔ ولان الاعمال الصالحة من العباد لایکاد یکافي ما انعم الله؁ علیهم في الدنیا فبقی الثواب في الآخرة فضل محض، جلال الدین؆ وایي چي په یصدعون پري متعلق دی لیجزي او دی وایي چي خدای ﷻ جزاء د دوارو ډلو یعني المؤمنین والکافرین ذکر کړي ده، اما المؤمنون فبقوله لیجزي الذین آمنوا الی قوله من فضله، واما الکافرون فبقوله انه لایحب الکافرین لان معناه یبغضهم فیما قبهم لانه لیس الواسطة بین حب الله وبغضه، کما في العباد لانه قد یحب العبد شخصاً وقد بغض شخصاً آخر وقد لایحب شخصاً ولا بغضه کما في صورة ان لایکون الشخص الآخر لاولیاء له ولا عدواً.

**فائده**: والدلیل علی ان الاثابة یعني ثواب ورکول په جنت سره صرف او صرف تفضل د خدای ﷻ دی هغه حدیث د احمد؆ دی له ابو الحارث؄ څخه چي خدای پاک وحي وکړې و داؤد؈ چي ویېروه زما صالح بندګان چي دوی دي په خپلو اعمالو صالحه وو سره عجب نه کوي، ولي که زه یو بنده زما له بندګانو څخه (یعني که څه هم صالح وي في الغایة) د حساب و ځای ته ودروم (یعني خپل نعم دنو یه پر حساب کړم او دده اعمال صالحه هم حساب کړم) او پر ده باندي وځنډوم فضل خپل (یعني تفضل ځنډي منع کړم) الا عذبته دی به خامخا په عذاب وم (ولي دده حسنات به خلاص سي زما ډېر نعمتونه د دنیا به بې شکره او بې عبادته پاته سي، فالعدل في مثل ذالک العذاب) او په بل روایت کي راغلي دي وقل لاهل معصیتي من امتک چي دوی دي نا امیدي نه کوي زما له رحمت څخه فاني اغفر الذنوب ولا ابالي، کریمه: لاتیئسوا من روح الله، او طبراني؆ له واثلة بن الاسقع؄ څخه روایت کړی دی چي: یبعث الله یوم القیامة عبداً لا ذنب له، نو خدای ﷻ دې بنده ته وایي ای الامرین احب الیک ان اجزیک بعملک او بنعمتي علیک (له دې دوو

خبرو څخه ستا کومه خبره خوښه ده چي تا ته جزاء درکړم یعني جنت درکړم ستا په عمل سره او یا زما په نعمت او فضل سره پر تا جنت درکړم) دا بنده ورته وو ایي انت اعلم اني لم اعصیک (یعني ته ښه خبر یې چي ما خو ستا عصیان نه دی کړی (د بنده په دې ویلو کي اشاره ودې ته ده چي زما په عمل جنت راکړه، ولي چي ما هیڅ عصیان نه دی کړی) نو خدای ﷻ د حساب ملائکو ته وو ایي: خذوا عبدي بنعمة من نعمي (یعني ددې بنده سره حساب وکړئ د یوه نعمت زما پر ده، او دده حسنات په هغه نعمت کي ځندي حسابئ مثلاً د سترګو د لیدلو، د غوږو د اوریدلو یا د پښو د تللو یا د نورو اعضاؤ داخله ؤ) ملکي چي حساب شروع کړي ددې بنده ټولي حسناتي په هغه یوه نعمت کي د خدای ﷻ ختم سي، نو بنده په ډېر عجز خدای ﷻ ته وو ایي بنعمتک و رحمتک (یعني ما ته ثواب او جنت راکړه ستا په احسان سره او ستا په رحمت سره یعني نه په مکافات د اعمالو حسنه وو زما)

**پوښتنه:** ددې احادیثو په رڼا کي مؤمنانو ته دا سوال په زړه کي ورګرځي انه لایبقی حینئذ فائدة في الطاعة وترک المعصیة فان الله تعالی لولم یتفضل عذب اهل الطاعة ولو تفضل غفرله المعصیة وادخله الجنة؟

**ځواب:** طاعت د خدای ﷻ مقتضي دی د محبت د خدای ﷻ قال رسول الله ﷺ حکایة عن الله سبحانه تعالی (چي ورته حدیث ته حدیث قدسي وایي په عرف کي د اهل الحدیث) مایزال عبدي (همیشه زما بنده) یتقرب الي بالنوافل (یعني ما ته نژدې کیږي یعني قربًا معنویًا لاقربًا مکانیًا په نفلي عباداتو سره یعني من الصلوة الی الصیام والصدقات) حتی احبته (چي زما محبت ورسره پیدا سي) رواه البخاري عن ابی هریرة ؓ في حدیث طویل.

والمحبة یقتضي تفضل والاحسان للمحبوب والتفضل سبب لجلب کل خیر ومنه الثواب والجنة ودفع کل ضرر ومنه دخول النار.

**درویش وایي:** چي له دې کبله په دعاء مأثوره کي راغلي دي اللهم ارزقني حبک وحب حبیبک وحب عمل یقربني الی حبک، ولي بنده چي د خدای ﷻ محب سي، خدای ﷻ هم د بنده محب ګرځي لان الحب نسبة متکررة من الجانبین.

**سوال:** د دمخه آحادیثو مبارکه وو څخه دا معلومه سوه چي د ځول د جنت فضل

من اللهﷻ نو دا به معارض د هغه آيت نه وي (ادخلوا الجنة بما كنتم تعملون) ولي چي له دې آيت څخه خو دا ظاهره ده چي دخول د جنت په عمل سره دی؟

**ځواب:** په جنتو کي ډېري متفاوتي درجې سته پر اندازه د تفاوت د اعمالو. نو په آيت مذكوره كي مراد دخول د درجاتو د جنت دی چي متفاوت په سبب د عملو د بندګانو. واما نفس دخول الجنة والخلود فيها فبفضل الله ورحمته، او د دې جواب تائيد کوي هغه حديث د هناد عن ابن مسعودؓ قال رسول اللهﷺ تجوزون الصراط بعفو الله وتدخلون الجنة برحمة الله وتقسمون المنازل باعمالكم والله اعلم.

## وَمِنْ اٰيٰتِهٖٓ اَنْ يُّرْسِلَ الرِّيَاحَ مُبَشِّرٰتٍ

"ومن آياته" اى من دلائل قدرته تعالى چي خداى ﷻ را استوي يعني پيدا كوي بادونه، مظهريؒ وايي من المشرق الى المغرب بالعكس ومن الشمال الى الجنوب وبالعكس آه.

**درويش وايي:** چي دا سي تفسير عام د وروسته سره منافي دی يعني "مبشرات" حال دی د رياح يعني زېری کونکی په باران سره وجه المنافات د بور باد يعني له مغرب څخه و مشرق ته، چي په پښتو يې د کښي باد بولي، زېری کونکی په باران نه دی بلکې دا باد د عذاب دی کما يدل عليه قولهﷺ نصرت بالصبا (يعني د پاسه باد) واهلكت عاد بالدبور (د کښي باد) په روح المعاني کي وايي چي دبور باد لپاره د بلا دی هغه کمه بلا يې داده چي په سترګو کي د خلکو خاشې او خاوري پاشي، او په روح البيان کي وايي چي د بور ريح العذاب دی. او په حديث شريف کي راغلي دي چي باد به را والوتی عليه الصلوة والسلام به ويل اللهم اجعلها رياحًا (اشاره و دې آيت ته ده يعني وه يې ګرځوي مبشرات) ولايجعلها ريحًا (اشاره و هغه آيت ته ده) وارسلنا عليهم ريحًا صرصرًا الآية.

## وَلِيُذِيْقَكُمْ مِّنْ رَّحْمَتِهٖ

چي په تاسي وخوري د خوړلو شيان له دانو څخه لکه غنم وغيره او له مېوو څخه لکه انګور وغيره.

**بوه سه:** چي دا جمله عطف ده پر مبشرات.

**سوال:** دا خو جمله ده او مبشرات خو مفرد يعني جمله نه وه فكيف يصح العطف؟

**ځواب:** مبشرات په تاویل لیبشرکم دی، او مظهري رح وايي يا معطوف دی پر مقدر، تقديره يرسل الرياح ليذهب عنكم الحر وليذيقكم آه روح المعاني. وقيل الواو زائدة وليس بوجه "من رحمته" متعلق دی په ليذيقكم پوري، مراد رزق له بادو څخه پيدا کيږي. يعني چې بادونه وريځ پيدا کړي او وريځ اورښت وکړي.

## وَلِتَجْرِيَ الْفُلْكُ بِأَمْرِهٖ

چي چلېږي کښتۍ په دغو بادو سره په درياب کي په اراده د خدای ﷻ، ددې قيد فائده داده چي ارسال الرياح يو ظاهري او عادي سبب د خدای ﷻ دی اصل جريان الفلک په اراده سره د خدای ﷻ دی..

**فائده:** لفظ د فلک هم مفرد راځي او جمع مستعمليږي فرق د مفرد او جمع يې اعتباري دی که مفرد وي ضمه د فاء لکه ضمه د قفل چي مفرد دی، او که جمع وي ضمه ده، نو ضمه د فاء يې لکه د أسد چي جمع د اسد ده.

**سوال:** د جمع او مفرد به څوک فرق څرنګه کوي؟

**ځواب:** فرق يې په دې سره کيږي که فعل مسند ؤ فلک ته يا ضمير راجع ؤ وه فلک مذکر ؤ. نو لفظ د فلک مفرد دی او که فعل مسند يا ضمير راجع و فلک مؤنث ته ؤ نو فلک جمع ده په تأويل د جماعت فعل مسند يا ضمير راجع يې مؤنث راغلی، لکه په دې آيت کي چي د لتجري اسناد وه فلک ته سوی دی، ولي چي تجري خو مؤنث دی.

## وَلِتَبْتَغُوْا مِنْ فَضْلِهٖ وَلَعَلَّكُمْ تَشْكُرُوْنَ ۝

چي تاسي په ذريعه د کښتيو طلب د فضل يعني د رزق د خدای ﷻ بالتجارة في ركوب البحر يعني في السفائن.

**فائده:** له دې آيت څخه دا معلومه سوه چي رکوب البحر للتجارة روا دی. بيت:

سود دريا نيک بودی گر نبودی بيم موج
صحبت گل خوش بودی گر نيستی تشويش خار

شيخ عطار رح وايي:

بدريا درمنافع بيشمار است..... اگر خواهی سلامت درکنار است

"ولعلكم تشكرون" اى لكى تشكرون چي تاسي شكر د نعمتو د خداى ﷻ
وو اياست فتؤمنون وتوحدون اللهﷻ.

**پوښته**: چي جمله د من آياته متصل ده په هغه قول پوري د خداى ﷻ الذي خلقكم.

# وَلَقَدْ أَرْسَلْنَا مِنْ قَبْلِكَ رُسُلًا إِلَىٰ قَوْمِهِمْ

(لام موطئه د قسم دى يعني جواب د قسم محذوف دى يعني والله قد ارسلنا) موږ استولي دي رسولان تر تا دمخه يا محمد (ﷺ) و خپلو قومو ته.

**سوال**: رسلاً خو جمع وه د قوم يې ولي مفرد روا ړى يعني داسي يې نه وويل الى اقوامهم؟

**ځواب**: په لفظ كي د قوم مفرد او جمع برابر دي فافهم.

# فَجَاءُوهُمْ بِالْبَيِّنَاتِ

هغو رسولانو راتګ وكړى هريوه و خپل قوم ته په دلائل او معجزاتو ظاهراتو سره چي دلالت يې كاوه د رسولانو پر صدق په دعوى كي د رسالت نو ايمان راوړى پر هغو رسولانو بعض خلكو او نورو كفر اختيار كړى.

**سوال**: دا خبره له كومه ځايه فهمېږي چي بعض د قوم ايمان راوړى؟

**ځواب**: دا وروسته قول د اللهﷻ.

# فَانْتَقَمْنَا مِنَ الَّذِينَ أَجْرَمُوا ۖ وَكَانَ حَقًّا عَلَيْنَا نَصْرُ الْمُؤْمِنِينَ ﴿٤٧﴾

موږ انتقام واخستى د هغه كسانو څخه چي جرم يې كاوه يعني كفر ته يې دوام وركاوه، يعني عذاب مو پر نازل كړى (د فهم وجه يې داده كه ټوله پر كفر پاته واى نو خو اخصر داوه چي فانتقمنا منهم، نو خداى ﷻ چي قيد د ممن الذين وو ايه نو معلومه داسوه چي بعض د قوم مؤمنان وه نو هغه حق د عذاب نه لري)

او حق دى پر موږ باندي مرسته (كومك) د مؤمنانو.

**پوښته**: چي دا جمله عطف ده پر جمله محذوفه باندي ونصرنا الذين آمنوا وكان حقًا علينا نصر المؤمنين.

**فائده**: په دې آيت كي اشاره ده چي انتقام له كافرانو څخه لپاره د نصرت د مؤمنانو دى.

**سوال**: له حقًا څخه دا فهمېږي چي دا نصرت پر خدای ﷻ واجب دی مع انهم قالوا لاوجوب لشئ على الله؟

**ځواب**: مراد دا دی چي حق دی پر خدای ﷻ بمقتضٰی وعده و بسبب تفضله تعالى ويرد عليه چي حق سي پر خدای ﷻ نصرت د مؤمنانو له هره سببه څخه چي وي، نو بايد هيڅ وخت مؤمنان نه مغلوبه کېدای مع انه ليس کک الا ترى الى غزوة احد چي مؤمنان مغلوبه سوه او اوويا (۷۰) شهيدان يې له لاسه ورکړه، او بل جواب دا دی چي اضافت د نصر و مؤمنانو ته او لام د لفظ د المؤمنين لپاره د عهد دی چي مراد هغه مؤمنان دي چي په جهاد د کفارو سره اخته وي خالصًا لاعلاء کلمة الله. او د رسول ﷺ له امر څخه سرغړونه ونه کړي لکه په احد کي چي هغه کسانو چي مرکز يې پرېښو چي په مشرى د عبدالله بن جبير ﷺ پر هغه مرکز ګمارل سوي وه د رسول الله ﷺ له خوا څخه چي تعداد يې پنځوس (۵۰) کسه وه په طلب د غنيمت کمامر في تفصيل قصة احد، نو له دې سببه د رب جل وعلا نصرت يې په نصيب نه سو والا فلا يخلف الله وعده، او بل ځواب دا دی چي موعود د خدای ﷻ له خوا څخه نصرت د مؤمنانو دی ولو بعد حين وقد انجز الله وعده حين فتح مكة على المؤمنين، والله اعلم بما في كتابه.

## اَللّٰهُ الَّذِیْ یُرْسِلُ الرِّیٰحَ فَتُثِیْرُ سَحَابًا فَیَبْسُطُهٗ

لفظ الله مبتدا، ده موصول سره د صله يې خبر دی، والمعنى خدای ﷻ هغه مقتدر خدای دی چي را استوي بادونه يعني د رحمت لکه باد صبا يعني شرقي بادونه بيا خدای ﷻ وکرځوي دا وريځ متصل واحد يعني ګاهي.

## فِی السَّمَآءِ کَیْفَ یَشَآءُ وَ یَجْعَلُهٗ کِسَفًا

په اسمان کي يعني في جهة السماء څرنګه چي د خدای ﷻ اراده سي.

**پوه سه**: چي کيف يشاء حال دی له مفعول څخه د يبسطه چي وريځي ته راجع ؤ ای واقعًا مطبقًا او غير مطبق من جانب دون جانب.

**پوه سه**: چي کسفًا جمع د کسفة ده په معنى د ټوټې يعني ګاهي دا وريځ ټوټې وي متصل واحد نه وي.

فَتَرَى الْوَدْقَ يَخْرُجُ مِنْ خِلٰلِهٖ

نه ته وینې (ایها المخاطب الغیر المعین) چې د باران څاڅکي راوځي له منځ څخه د وریځې، یعني في الحالین چې وریځ که متصل واحد وي او که ټوټه ټوټه وي.

فَاِذَآ اَصَابَ بِهٖ مَنْ يَّشَآءُ مِنْ عِبَادِهٖٓ اِذَا هُمْ يَسْتَبْشِرُوْنَ ﴿۴۸﴾

نو هغه وخت چې ورسوي خدای ج دغه باران وه هغه چا ته یعني مځکو او قریو ته چې د خدای ج اراده ورته وي، پس ناببره دوی خوشالي کوي چې کښتونه او باغونه یې او به سوه او بشه کلي جوړه سوه چې په عربي یې خصب بولي.

وَاِنْ كَانُوْا مِنْ قَبْلِ اَنْ يُّنَزَّلَ عَلَيْهِمْ مِّنْ قَبْلِهٖ لَمُبْلِسِيْنَ ﴿۴۹﴾

**پوه سه:** چې ان مخفف دی د مثقل څخه او اسم یې محذوف دی او خبر یې کانوا دی. والتقدیر وانهم (هم اسم د ان دی) وه دوی د مخه تر دې چې پر دوی او ورېښت د باران کېدی د مخه تر هغه هر آئینه نا امیده له باران څخه، ولې چې له ډېره وخته باران نه وسو، نو دوی نا امیده وه.

**سوال:** لفظ قبل خو نژدې تېر سو، نو د وروسته من قبله ته څه ضرورت ؤ او په راوړلو کي یې د خدای ﷻ څه حکمت ؤ؟

**ځواب:** تکریر د قبل لپاره د تاکید دی او فائده او حکمت یې دا دی چې دلالت وکړي پر تطاول د عهد هم بالمطر او استحکام د دوی د نا امېدی.

**پوه سه:** چې په قرائت کي د ابن مسعود رض دوهم من قبله نسته فلا حاجة الی توجیهه بما مر علی هذه القرائة.

**فائده:** کلمه د لام په لمبلسین کي فارقة په مابین کي د ان مخفف له مثقل څخه او د ان نافیه ده، او دا احتمال هم مظهري راوړی دی چې ان دې نافیه وي او لام دې په معنی د الا وي، والتقدیر وما کانوا (دا معنی د ان نافیه ده) من قبله الا (دا معنی د لام ده) آیسین نا امیده.

**درویش وایي:** چې د دویمه توجیه د مظهري بعیده ده، او د فقیر د تلاش سره سره چې د تفاسیرو یې کړی دی دا توجیه یې په بل تفسیر کي نه ده لیدلې، والله اعلم بالصواب.

فَانْظُرْ إِلَىٰٓ اٰثٰرِ رَحْمَتِ اللّٰهِ كَيْفَ يُحْيِ الْاَرْضَ بَعْدَ مَوْتِهَا

وګوره اې مخاطب غیر معینه و آثارو ته یعني فوائدو ته د رحمت د خدای ﷻ (چي مراد ځني باران دی چي آثار يې نباتات دي او د درختو مېوې او د ارتزاقي موادو دانې لکه غنم، وربجې، جوار وغیره، او مېوې لکه انګور، انار، سېب وغيرها دي، نو هم د ډېر والي په سبب يې اثار په لفظ د جمع راوړی) څرنګه ژوندی کړه خدای ج مځکه په نباتاتو سره وروسته تر مرګ د دې يعني چي له نباتاتو څخه خالي وه او سپېره وه.

**درویش وایي:** چي د دې تول بیان مقصود بیان دی د فساد د رايي د مشرکانو چي دوی بعث بعد الموت نه مانه او وايي كيف يحي العظام وهي رميم، او سره د دې چي دوی وويني مثل د احياء الموتى چي نباتات د مځکي دي پر عقب د يبس څخه د مځکي، نو خدای پاک وايي:

إِنَّ ذٰلِكَ لَمُحْيِ الْمَوْتٰى ۚ وَهُوَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ ۝

په تحقيق دغه ذات مقتدر پر احياء د مځکي بعد موتها، ژوندی کونکی دی د مړو دی په ورځ د قيامت، او خدای ج پر هر شي قدرت لري، ولي چي نسبت د قدرت د خدای ﷻ و ټولو ممکناتو ته برابر دی... بيت:

تعالى الله زهی قيوم ودانا ........ توانايي ده هر ناتوانا

شيخ مغربي رح چه خوش گفته است: يعني در گلشن چه رنگارنگ گلها و هرچه بويهای قسم قسم از گلهای گلشن ميوزرد رنگ و بوی قدرت ايزد متعال هستند.

وَلَئِنْ اَرْسَلْنَا رِيْحًا فَرَاَوْهُ مُصْفَرًّا لَّظَلُّوْا مِنْۢ بَعْدِهٖ يَكْفُرُوْنَ ۝

(لام موطئه د قسم دی) که چېري موږ راواستوو باد (يعني چي سبب د وچوالي د نباتاتو د مځکي وګرځي چي د کښتو وچ باد دی) نو وويني کافران دا باد يعني اثر د دې باد چي شنه نباتات او کښتونه يې مراوي کړه.

**پوهه:** چي جمله د لظلوا جواب د لام موطئه د قسم دی چي پر حرف شرط داخل ؤ، نو قائمقام د جواب د شرط هم دی، له دې سببه د ظلوا صيغه که څه هم ماضي ده ترجمه يې په استقبال سره کېږي، ولي حرف شرط ماضي په جواب کي په

مستقبل سره اړه وي ای يظلوا . او ضمير د بعده و اصفرار ته راجع دی چي د ريحًا له لفظ څخه وفهمېدی کمامر ، دوی کفر کوي بلا مهلته.

وحاصل معنى الآية ان الکفار لا اعتماد لهم على ربهم له دې سببه چي دوی خير او خصب او نعمت د خدای ج وینيي د خدای ج شکر نه وايي ، او نه هم اطاعت د رب جل وعلا کوي بالايمان او د نعمت په خوشالی کي غرق وي او له خالق څخه د نعمت غافله وي او که يو ادنٰی ضرر ووينني في الفرع (د الفرع معنى غولانځ د مواشي ده او د الذرع معنى کښت ده) او الزرع جزع او بيقراري او بې صبري کوي او له سابق نعمتو څخه غافله سي او په وخت کي د ضرر استغفار او انابت و خدای ج ته نه کوي ، او د مؤمن حال داغسي نه دی فانه يشکر عند النعمة ويصبر عند المحنة والنقمة ، او نه نا اميد کېږي له رحمت څخه د خدای باعادة النعمة ويلتجئ بالطاعة والاستغفار تاچي جلب نعمت د ذو الجلال بالليل والنهار ، مولنا جلال الدين الرومي قدس سره په مثنوي کي وايي :

چـون فـرود آيد بلا بی دافعی ........ چون نباشد از تضرع شافعی
جز خضـوع وبندگی واضطرار ........ اندرين حضرت ندارد اعتبار
چون تو غم بينی تو استغفار کن ........ غم بـامـر خـالق آمد کار کن

## فَإِنَّكَ لَا تُسْمِعُ الْمَوْتَىٰ

دا دليل دی د هغه قول چي : ما قبل څخه وفهمېدی ، يعني د کفارو خدای ﷻ بيان کړی چي دوی چي هر څه اثار د رجعت د خدای ﷻ وليدل بيا يې هم ايمان نه راوړی ، ګويا و عليه الصلوة والسلام ته وويل سول چي ته مه غمجن کېږه په دې سره چي دوی هدايت نه کړی پيدا ستا په لار ښوونه سره فانک لاتسمع الموتٰی آه ، ډېر مفسران وايي چي مثال دی د دې چي کفار و خپل حواس کالسمع والبصر والاذن د حق له اورېدلو څخه يا د معجزاتو د ليدلو څخه غوړونه يې د حق له اورېدو څخه بند کړي دي ، نو ځکه ستا د تبليغ او د قرآن د اورېدلو سره او د معجزاتو د ليدو سره ايمان نه راوړي ، په تحقيق ته نه سې اورېدلای په مړو (چي کفار دي) خبري د وعظ ستا يعني په سمع د قبول .

**درویش وايي:** چي دا څو ترجمه وه د آیت پر ظاهر او پر مراد لکن تحقيق د سماع الموتىٰ، يوه ډېره پيچيده مسئله ده او علماء د مذهب او د صحابه کرامو ﷺ هم پکښي اختلاف دی.

نو واوره: ابن الهمام په فتح القدير کي وايي: اکثر مشائخنا رحمهم الله على ان الميت لايسمع، او دليل هم په دغه آيت سره وايي يعني: انک لاتسمع الموتىٰ آه: او دغه رنګه په هغه آيت چي په بل ځای کي د قرآن ذکر سوی دی يعني "وَمَآ أَنتَ بِمُسْمِعٍ مَّن فِى ٱلْقُبُورِ" دليل وايي، نو ځکه دغه مشائخ په تلقين د مړي چي په قبر کي يې کښېږدي نه دي قائل، او دوی وايي چي که سړي قسم واخستی چي زه د فلاني سره خبري نه کوم او وروسته تر مرګ يې خبري ورسره وکړې په قسم کي نه دی حانث. ولي چي د حالف مقصود خو دا دی چي داسي خبري نه ورسره کوم چي دی يې واوري، او سفاريني رح وايي چي سيدتنا ام المؤمنين عائشه ﷺ له سماع الموتىٰ څخه منکره وه، ووافقها طائفة من العلماء على ذالک، دليل يې هم دغه آيت دی فانک لاتسمع الموتىٰ، او بعض طائفې د اهل علم د سماع الموتىٰ قائل دي، ابن عبدالبر رح وايي چي اکثر د علماؤ د سماع الموتىٰ قائل دي وهو اختيار ابن الجرير والطبري، وكذا ابن قتيبة وغيره رح. بقول روح المعاني، دا علماء دليل په هغه حديث د بخاري او مسلم وايي چي په اصطلاح متفق عليه حديث يې بولي او بخاري و مسلم ته شيخان وايي. چي عليه الصلوة والسلام چي غلبه وکړه په ورځ د بدر پر مشرکانو د مکې، او اويا (۷۰) کسه يې ځندي ووژل له رئيسانو څخه د قريشو، او ټوله دا مړي په يو ډېکاره او بې اوبو ځاه کي اصحابو ﷺ په امر د نبي کريم ﷺ وغورځول، نو عليه الصلوة والسلام د ځاه پر غاړه ورته ودرېدی او ورناري يې کړې يا اباجهل بن هشام يا امية بن خلف يا عتبه بن ربيعه وهكذا اليس قد وجدتم ما وعدكم ربكم حقًا، فاني قد وجدت ما وعدني ربي حقًا (يعني النصر عليكم) فقال عمر رض يا رسول الله ﷺ ما تكلم من اجساد لا ارواح لها (ته څرنګه خبري کوې د هغو اجسامو سره چي ارواحان نسته پکښي، دا قول د عمر رض استفهامًا وٌ لا انكارًا. عليه الصلوة والسلام ورته وويل والذي نفس بيده ما انتم باسمع لما اقول منهم زاد في رواية لمسلم، عن انس رض ولكنهم لايقدرون ان يجيبوا.

او بل دلیل د دغې ډلې د علماؤ چي په سماع الموتی قائل دي، دا دی چي یوه ښځه وه په مدینه کې چي ام محجن یې نوم ؤ چي همېشه به یې مسجد نبوي جارو کاوه، نو دا چي مړه سوه اصحابو ﷺ علیه الصلوة والسلام ته کړې په خبر او دفن یې کړه، نو علیه الصلوة والسلام د جنت البقیع په مقبره کې تېرېدی، نو دا نوی قبر یې ولیدی نو یې وویل چي دا قبر دا چا دی، هغو ورته وویل دا ام محجن ؓ، علیه الصلوة والسلام ورته وویل هغه ښځه چي مسجد به یې جارو کاوه؟ خلکو ورته وویل نعم! فصف الناس فصلی علیها (دا تکرار د صلوة الجنازه له خواصو څخه دی علیه الصلوة والسلام دی) فقال رسول الله ﷺ ای عمل وجدت افضل (دا خطاب دی وام محجن ته) صحابه کرامو ؓ ورته وویل یا رسول الله ﷺ اتسمع؟ قال علیه الصلوة والسلام ما انتم باسمع منها فذکر علیه الصلوة والسلام (یعني واصحابو ؓ ته) انها اجابته قم المسجد یعني جارو کول، او داغه رنګه د دغه طائفې د علماؤ دلیل دی چي البیهقي او الحاکم یې روایت کړی دی، او نور محدثین هم له ابی هریره ؓ څخه چي علیه الصلوة والسلام چي له احد څخه رجوع وکړه وقبر ته د مصعب بن عمیر ؓ او اصحاب دده، ودرېدی وقال اشهد انکم احیاء عند الله تعالی وقال لاصحابه تاسي د دغو شهداؤ د قبرو زیارت کوئ او سلام وراچوئ، فوالذي نفسي بیده لایسلم علیهم احد الا ردوا علیه السلام الی یوم القیامة. دا حدیث حاکم په مستدرک کي صحیح بللی دی، او په حدیث د ابن عبد البر چي عبد الحق الاشبیلي یې اسناد صحیح بللی دی عن ابن عباس ؓ مرفوعًا الی رسول الله ﷺ دغه طائفه دلیل وایي چي علیه الصلوة والسلام وویل ما من احد یمر بقبر اخیه المؤمن کان یعرفه في الدنیا یسلم علیه الا عرفه ورد علیه (یعني سلام مه)، او داغه رنګه هغه حدیث د بخاري او د مسلم ددې طائفې دلیل دی چي علیه الصلوة والسلام وویل ان العبد اذا وضع في قبره وتولی عنه اصحابه یعني اقارب دده وغیرهم څنډې را ایسته سي) انه یسمع قرع نعالهم الی اخیر الحدیث.

مظهري رح وایي چي که چېري د علیه الصلوة والسلام په صحیح نقل سره ثابته سي چي مړی د ژوندو خبرې اوري، نو ددې آیت معنی داده انک لاتسمع بقدرتک واختیارک کما انت تسمع الحي علی ما جری به عادة العبد لکنّ الله یسمع الموتی کلام الاحیاء اذا شاء او انک لا تسمع الموتی سماعًا تترتب علیه الفائدة.

**درويش وايي:** چي دا دوه جوابه روح المعاني هم راوړي دي. او روح المعاني دا مبحث د سماع الصوتي او عدم سماع هم نهايت اوږد کړی دی تخمينًا دري صفحې يې په نيولي دي، او مظهري بالعکس ډېر کوتاه تفسير ددې آيت کړی دی.

وَلَا تُسْمِعُ الصُّمَّ الدُّعَاۗءَ اِذَا وَلَّوْا مُدْبِرِيْنَ

ته نسې اورېدلای يا محمد (ﷺ) په کڼيانو (نو صم جمع د اصم ده) بلنه، هغه وخت چي دوی راهي سي او شا دروګرځوي.

**فائده:** عدم اسماع د صم يې مقيد کړه اذا ولوا مدبرين سره لبيان استحالة الاسماع في حال ادبارهم، ولي چي صم چي شانه وګرځوي که څه هم خبره خو نه اوري ګاهي له حرکت څخه د شونډانو د داعي يا نورو قرائنو څخه څه وفهموي. نو کفار مکه وو به هم په وخت کي د وعظ او تبليغ د عليه الصلوٰة والسلام به يې ده مبارک ته شا کړه او راهي به سوه. نو په دې سره خدای پاک اميد د عليه الصلوٰة والسلام قطع کړی ددوی له ايمان راوړلو څخه في الحالة الظاهرة الحاضرة.

وَمَآ اَنْتَ بِهٰدِ الْعُمْيِ عَنْ ضَلٰلَتِهِمْ

او نه يې ته هدايت کوونکی يعني ومقصد ته رسېدونکی د ړندیانو (نو عمی جمع د اعمٰی ده) يعني الکفار چي معجزاتو ته د آنحضرتﷺ نه ګوري په نظر د عبرت ددوی له ګمراهي څخه يعني چي شاهراه د حق ځندي ورکه ده، نو ته يې پر لار نسې برابرولای، کريمه: انک لاتهتدي من احببت ولکن الله يهدي من يشآء الآية.

اِنْ تُسْمِعُ اِلَّا مَنْ يُّؤْمِنُ بِاٰيٰتِنَا فَهُمْ مُّسْلِمُوْنَ

ته نسې اورېدلای يعني په سماع سره د قبول مګر نه هغه څوک چي ايمان لري پر آياتو زموږ، نو هغوی اسلام قبلونکي دي، ولي چي ايمان ددوی پر آياتو زموږ دوی باعثه کوي پر اورېدلو د تبليغاتو او د امر نهي د عليه الصلوٰة والسلام. او بعض مفسرين وايي چي مراد د من يؤمن څخه مشارف يعني نژدې و ايمان ته دی او بعض وايي چي مراد ځندي هغه څوک دی چي د خدای ﷻ په علم ازلي کي ده ته هدايت منظور وي يعني چي دی به ايمان راوړي.

## اَللّٰهُ الَّذِيْ خَلَقَكُمْ مِّنْ ضُعْفٍ

خدای چې پیدا کړي یاست تاسي له ضعف څخه.

**پوهه:** چې ضعف په ضم سره یعني په پیښ سره او په فتح سره مقابل ته د قوة ته وایي فرق یې دادی چې بالفتح قرائة د بني تمیم و اختاره عاصم و حمزة من القرآء السبع بالفتح في المواضع الثلاثة هـ والضم لغة قریش و اختاره الباقون من القراء او په هر صورت ضعف مصدر دی ویأول باسم الفاعل ای الضعیف فمعنی الآیة من اصل ضعیف وهو التراب في خلق آدم، ولي چې خاوري په عناصر اربعه ضعیف عنصر چې نه حرکت لري او نه تکبر لکه اور او هواء او یا نطفه ده په اولاد کي د آدم کما ورد في موضع آخر من ماء مهین ای ضعیف وهي النطفة للوالدین.

## ثُمَّ جَعَلَ مِنْ بَعْدِ ضُعْفٍ قُوَّةً

ثم لپاره د تراخي دی او جعل په معنی د خلق دی لتعدیته الی مفعول واحد او مراد له قوت څخه د طفولیت قوت دی چې طفل ته حاصل سي بالحرکة واستدعاء اللبن بالبکاء "قُوَّةً" ای قوة اخری بعد البلوغ وهي قوة الشباب.

قانون نحوي: النکرة اذا اعیدت نکرة کان الثانیة غیر الاولی کما ههنا والنکرة، او المعرفة اذا اعیدت معرفة کان الثاني عین الاول کما في قوله تعالی انّ مع العسر یسرًا ان مع العسر یسرًا، فالعسر واحد وقبله یسر وبعده یسر، ولهذا قال ابن عباس رضي الله عنه حیث قال لن یغلب العسر یسرین. هکذا حققه الامام الراغب الاصفهاني وتبعه اجلاء المفسرین.

## ثُمَّ جَعَلَ مِنْ بَعْدِ قُوَّةٍ ضُعْفًا وَّشَيْبَةً

بیا یې پیدا کړی دی وروسته تر قوت ضعف.

**پوهه:** چې ابتداء د دې ضعف له څلوېښت کاله څخه کېږي، او بعض حکماء وایي د (۳۵) کاله څخه لکن لږ لږ محسوس کېږي چې دې ضعف ته ضعف د شیخوخه او کبر سن وایي "وشیبة" او شیبه ضعف دی تر مرګ پوري.

**فائده:** دا درجاتې چې بیان سوې په اختلاف سره د امزجه ؤ او ابدانو د

انسانانو مختلف کېږي، چنانچه فقير اوس اوس و سن ته د (۹۶) کالو داخل دی ومعهذا قوت او دید د سترګو او د غوږو او د پښو او د لاسو بفضله تعالی معتدل دی خوب او خوراک مي پر ځای دی الی غيرها من النعم الالهية، وذالک فضل الله يؤتيه من يشاء، لكن بقی في ذمة الفقير شكر المنعم الحقيقي جلت قدرته. كريمه: وقليل من عبادي الشكور. اللهم اجعلني من الشاكرين لنعمک المتوالية على هذا العبد الفقير العاصي... سعدي رح:

عطا ئیست هر موی بر بر تنم...... چگونه بهر موی شکری کنم

## يَخْلُقُ مَا يَشَآءُ ۚ وَهُوَ الْعَلِيمُ الْقَدِيرُ

خدای ج پیدا کوي هغه شی چي اراده يې وسي من الضعف والقوة والشباب والشيب "وهو العليم" يعني بتدبير خلقه حسب حكمته وارادته، وهو القدير على كل شيئ.

## وَيَوْمَ تَقُومُ السَّاعَةُ يُقْسِمُ الْمُجْرِمُونَ

**پوهسه:** چي يوم منصوب دی على الظرفية لقوله يقسم. او مراد له ساعت څخه ورځ د قيامت ده.

**نکته:** قيامت ولي ساعت بولي؟ اما لانها تقوم في اخير ساعة من ساعات الدنيا، و اما لانها تقوم بغتة يعني نابېره په پېښتو. او اچانک په اردو. لكن ساعة علم بالغلبة دی لپاره د ورځي د قيامت كالكوكب للزهرة والنجم للثريا.

"يقسم المجرمون" قسم اخلي مجرمان يعني المشركين المنكرين للساعة.

## مَا لَبِثُوا غَيْرَ سَاعَةٍ

مو ږ د رنګ نه دی کړی په دنيا کي او په قبورو کي، غير ساعة من الزمان. والمراد الساعة الزمانية.

**پوښتنه:** مشركانو خو په سوو بلكي په زرو كلونه په دنيا او قبرو كي تېر كړي وه، نو دوی ولي ویل ما لبثوا الخ؟

**ځواب:** دا لږوالی چي دوی بيان کړی بالنسبة الى عذابهم في الآخرة يا نسيانا لفرط اهوال يوم القيامة، او يا له دې سببه چي ما مضى كان لم يكن بلل کېږي. كلبي او مقاتل رح وايي: مالبثوا في القبور يعني ما اقاموا في القبور بعد الموت الا ساعة ای

قطعة قليلة من الزمان، او بعض مفسرين وايي ما لبثوا بعد فناء الدنيا والبعث وهو مابين النفختين، او هغه چي روايت له قتاده رح څخه د پرو راويانو كړى دى چي د دوى مراد لبث دى په دنيا كي غير ساعة آه، فقول غير مقبول، روح المعاني وجه د عدم قبول دا بيان كړې ده چي لبث د دوى خو مغيا په يوم البعث سره دى كما سيئاتي ان شاء الله تعالى، او لبث د دوى په دنيا كي خو غاية يې يوم البعث نه ده كما لايخفى.

لكن درويش وايي: چي قتاده رحمه الله چونكه لوى مفسر دى، نو مناسبه دا ده چي دده د قول تأويل وكړل سي چي مراد له بعث څخه في الدنيا حال قبر هم دى، ولي قبور خو د دنيا جزء دي وحينئذ لاريب ان البث في الدنيا مع اللبث في القبور غايته يوم البعث ده. والله اعلم.

## كَذَٰلِكَ كَانُوا يُؤْفَكُونَ ﴿٥٥﴾

دغسي لكه چي دوى مصروف كړئي (يعني په دې قول كي ما لبثوا غير ساعة چي له حقه خلاف خبره وه) كانوا: يعني في الدنيا، دوى دروغ ويل او له حق څخه مصروف وه چي دوى خداى ﷻ لره شركاء ويل او دا يې هم ويل لابعث بعد الموت. الحاصل چي د دروغو پاى تمام دى مشركان په دنيا كي هم دروغ ويل چي بعث بعد الموت نسته چي هغه يې دروغ سوه په حشر د يوم القيامة سره او تر حشر وروسته هم دروغ وايي يعني ما لبثوا غير ساعة، حافظ شيرازي رح وايي:

بصدق كوش كه خورشيد آيد از نفست
كه از دروغ سيه روئ گشت صبح نخست(1)

## وَقَالَ الَّذِينَ أُوتُوا الْعِلْمَ وَالْإِيمَانَ

**پوه سه:** چي دا جمله عطف ده پر يقسم المجرمون باندي او تعبير په ماضي سره يعني قال كه څه هم دا قول د دوى خو په مستقبل بعيد كي دى، له دې سببه وسو چي دا موعود د خداى ﷻ دى وما وعده الرب تبارك وتعالى فهو متيقن الوقوع كما في الماضي، او مراد له اوتوا العلم والايمان څخه ملائكه او انبياء او مؤمنان دي ردًا لقول الكفار ما لبثوا غير ساعة.

---

(1) يعني صبح كاذب

## لَقَدْ لَبِثْتُمْ فِي كِتٰبِ اللّٰهِ

يعني لبثتم زمانًا كتبه الله لكم يعني غير ساعة كما قلتم، في كتاب الله يعني اللوح المحفوظ او صحف الملائكة الموكلين بالارحام كما قال رسول الله ﷺ ان خلق احدكم يجمع في بطن امه اربعين يومًا نطفة ثم يكون علقة مثل ذالک يعني (۴۰) يومًا، ثم يكون مضغة مثل ذالک (۴۰) ثم يبعث الله ملكًا باربع كلمات فيكتب عمله واجله الى اخير الحديث.

او يا مراد له كتاب څخه قرآن كريم دى يعني قوله تعالى ومن ورآئهم برزخ الى يوم يبعثون.

## اِلٰى يَوْمِ الْبَعْثِ فَهٰذَا يَوْمُ الْبَعْثِ

تر يوم بعث پوري، دا متعلق دى په لبثتم پوري، دغه ورځ د بعث بعد الموت ده چي تاسي په دنيا كي انكار څندي كاوه.

**پوه سه:** چي جمله د فهذا يوم البعث ځواب د شرط محذوف ده، والتقدير ان كنتم تنكرون البعث فهذا يوم البعث يعني، نو تاسي په دنيا كي پر باطله عقيده واست چي بعث بعد الموت ممكن نه دى او تاسي ته اوس ښكاره سو بطلان د قول ستاسي بالمشاهدة.

## وَلٰكِنَّكُمْ كُنْتُمْ لَا تَعْلَمُوْنَ

لكن واست تاسي په دنيا كي نه پوهېدلاست په بطلان د خپل قول چي انكارئ له بعث څخه، ولي تاسي دقيق نظر په قدرت كي د خداى ﷻ نه كاوه، يعني تاسي ته به معلومه سوې واى چي هغه څوك چي قادر دى پر ابتداء د خلق پر اعاده يې قادر دى بالطريق الاولى.

## فَيَوْمَئِذٍ لَّا يَنْفَعُ الَّذِيْنَ ظَلَمُوْا مَعْذِرَتُهُمْ وَلَا هُمْ يُسْتَعْتَبُوْنَ

نو په دغه ورځ د قيامت فائده نه كوي و هغو كسانو ته چي ظلم يې كړى يعني په دنيا كي عذر ددوى (معذرت مصدر ميمي دى) مراد له الذين ظلموا څخه كافران دي، يا مطلق ګناه كاران دي چي بې توبې مره وي،

**پوه سه:** چي قراء د کوفې لاينفع په ياسره وايي که څه هم فاعل په معذرتهم لکن هغه مؤنث غير حقيقي دی تانيث د فعل مسند يې نه دی لازم، او بلکې مفصول يعني په منځ کي د مسند چي ينفع دی او دده فاعل چي معذرتهم فصل دی په الذين ظلموا سره او نور قراء يې په تاء التانيث سره وايي لتانيث الفاعل اعني معذرتهم مع كون التانيث غير حقيقي او مفصول هم دی، او نه له دوی څخه طلب د عتبی يعني د رضاء د خدای ج كذا في القاموس يعني لايطلب منهم موجبات رضاء الله من الايمان والتوبة عن المعاصي والطاعة كما كان يطلب منهم ذالک في الدنيا. قال الشيخ السعدي قدس سره:

کنوانت که چشم است اشکی بيار ..... زبان در دهانست عذری بيار
کنون بايدت عذر تقصير گفت ..... نه چون نفس ناطق زگفتن بخفت
بشهر قيامت مرو تنگدست ..... که وجهی ندارد بحسرت نشست

شيخ عطار په الهي نامه کي وايي چي دده تصنيف دی:

مگر يک روز در بازار بغداد ..... بغايت آتشی سوزنده افتاد
فغان برخاست از مردم بيکبار ..... وزان آتش قيامت شد بديدار
بره بر پير زالی مبتلايی ..... عصا در دست می آمد زجای
يکی گفتا مگر ديوانهٔ تو ..... که افتاد آتش اندر خانهٔ تو
زنش گفتا توئی ديوانهٔ نه من ..... که حق هرگز نسوزد خانه من
بآخر چو ديد عالم جهانی ..... نبود آن زال راز آتش نشانی
بدو گفتند هان ای زال دمساز ..... بگو کز چه بدانستی تو اين راز
چنين گفت آنگهی زال فروتن ..... که يا خانه بسوزد يا دل من
چو سوخت از غم دل ديوانه را ..... نخواهد سوخت آخر خانه را

وفي الحديث: الدنيا ساعة فاجعلها طاعة.

**وَلَقَدْ ضَرَبْنَا لِلنَّاسِ فِي هَٰذَا الْقُرْآنِ مِن كُلِّ مَثَلٍ**

په تحقيق موږ بيان کړي دي خلگو ته په دې قرآن کي، له هر مثل څخه يعني انواع د حکاياتو غريبه وو چي په غرابت کي لکه مثلونه دي لکه مثل د صفت د کفار بعد البعث يعني يوم القيامة، او هغه حال چي دوی څه وايي او دوی ته څه ويل کيږي، او د ا

دوی لره په عذر ویلو کې کومه فایده نسي ترلاسه کولای، او طلب د عتبٰی هم نه ځني کیږي، او دوی ته په قرآن کریم کې په ښائسته ښائسته آیاتو مبارکه وو په کراتو مراتو دلائلو د توحید او د بعث بعد الموت او د صدق د رسولانو بیان کړل سوی دی.

**وَلَئِن جِئْتَهُم بِآيَةٍ لَّيَقُولَنَّ الَّذِينَ كَفَرُوا إِنْ أَنتُمْ إِلَّا مُبْطِلُونَ ﴿٥٨﴾**

لام موطئه د قسم محذوف دی او کلمه د ان شرطیه ده، او مراد له آیاتو څخه یا آیات قرآنیه دي یا معجزات باهره متکاثره دي "لیقولن آه" ځواب د قسم محذوف دی او قائم مقام د جواب د ان شرطیه دی، هر آئینه وایي به هغه کسان چي کفر کوي له ډېره غباوت او خرګرۍ څخه او له غایته سنګدلۍ څخه او له نهایته بې حیایۍ څخه. تاسي نه یاست مګر باطلي خبرې کوئ.

**كَذَٰلِكَ يَطْبَعُ اللَّهُ عَلَىٰ قُلُوبِ الَّذِينَ لَا يَعْلَمُونَ ﴿٥٩﴾**

یعني مثل د طبع او مهر چي مهر لګولی دی پر زړو د کفارو د مکې الذین قالوا ان انتم الا مبطلون، مهر او طبع لګوو پر زړو د هغو کسانو چي علم نه لري، پر توحید د خدای ج یا معنی داده چي دوی طلب د توحید د خدای نه کوي، بلکې د آباء او اجداد د جهل مرکب ورغندی یې په غاړه دی او ورته د هغو کارونه کوي.

**فَاصْبِرْ إِنَّ وَعْدَ اللَّهِ حَقٌّ ۖ وَلَا يَسْتَخِفَّنَّكَ الَّذِينَ لَا يُوقِنُونَ ﴿٦٠﴾**

ته صبر وکړه په تحقیق د الله وعده په نصرت سره او په اظهار د دین ستا پر ټولو ادیانو ثابت پر ځای ده، اذ لا خلف لوعده لانه نقص وعیب والله تعالی منزه عن النقائص والعیوب، او تا دي پر سپکوالي او اضطراب باعث نه کړي هغه کسان چي ستا پر نبوت یقین نه لري بلکې صراحةً نسبت د کذب درته کوي، بلکې پر ته له دې دي لا نور هم ازاروي.

**بوه سه:** چي استخفاف کنایه ده له بې صبرۍ څخه یعني ته صبر وکړه د خدای پاک وعده پر ځای ده استعجال مه کوه.

**درویش وایي:** چي په ورځ د پنجشنبې د ماپښین پر څلور بجې ۳ ماه ربیع الثاني (۱۴۳۱) هجري تفسیر د سورت روم په خیر او عافیت سره پای ته ورسېدی، په زړو وارونه دي حمد خدای جل جلاله لره وي لانه الموفق، اللهم منک

واليک او په سوو وارونه دي صلات او سلام وي پر سيد البشر او دده پر آل او اصحابو ﷺ، تر دې وروسته تفسير د سورة لقمان شروع کېږي ان شاء الله تعالی په ډېر عجز او نياز د خدای ﷻ له جناب څخه غواړم چي د سورت لقمان د تفسير توفيق راکړي، او په ښه صحت او عافيت سره مي په تفسير کي د سورة لقمان په ښه وجه کامياب وګرځوي وما ذالک على الله بعزيز.

پاکه خدايه په ډېر شوق او محبت د تفسير پر خوا را روان يم، لکن د لاري له ډېرو څخه ډېر بېرېږم يعني الموانع، نو ته خدايه په فضل او کرم سره موانع د تفسير له عاصي څخه دفع لره، د حافظ شيرازي په دې بيت ډېر خوشحاله يم:

دلا در عاشقی ثابت قدم باش ..... که در این راه نباشد کار بی اجر

شعر: تروم العز ثم تنام ليلاً ..... يغوص البحر من طلب اللآلي

بقدر الكد تكتسب المعالى ...... ومن طلب العلى سهر الليالي

**درويش وايي:** چي شپې به بيداره کړم او په درياب کي د فکر به غوټې ووهم او کد تکليف به حتی الوسع وکړم، لکن دا مي ايمان دی چي بېله توفيقه د خدای ﷻ به هيڅ په لاس را نسي، فاقول:

حَسْبُنَا اللهُ وَنِعْمَ الْوَكِيْل. صَدَقَ اللهُ الْعَظِيْم

أحسن أعمالها وأحسن التي هي

تفسير ايوبي حنفي د نصيراحمد احمدي لخوا

سکين او pdf سو. د دعا محتاج احمدي! واتساپ

٠٧٤٩٨٤٩٥٦٩

سُوۡرَةُ لُقۡمٰنَ مَكِّيَّةٌ وَّهِيَ اَرۡبَعٌ بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ وَّثَلٰثُوۡنَ اٰيَةً وَّاَرۡبَعُ رُكُوۡعَاتٍ

سورة لقمان مكية وهي اربع وثلاثون آية كذا في المظهري وروح البيان.

**درويش وايي:** چي روح المعاني وايي اخرج ابن الفريس وابن مردوية والبيهقي في الدلائل له ابن عباس رضي الله عنهما څخه چي ده وويل چي سورت لقمان په مکه مکرمه کي نازل سوی دی، په دې روايت کي استثناء د بعض آيتو نسته يعني چي هغه دي مدني وي. او نحاس په خپل تاريخ کي له ابن عباس رض څخه داسي روايت کړی دی چي درې آيتونه په سورة لقمان کي مدني دي يعني ''ولو ان ما فی الارض من شجرة اقلام الی اخير الثلاث فانها نزلت بالمدينة'' قصه دا وه چي رسول الله ﷺ چي هجرت وکړی مديني ته، نو احبار يعني ملايان د يهودانو ورته راغله چي موږ ته رسېدلې چي ته وايي يعني ستا په کتاب کي سته (وما اوتيتم من العلم الا قليلاً) په دې آيت ستا خپل قوم قريش غرض دي يا موږ يهودان؟ عليه الصلوة والسلام ورته وويل کلا عنيت (دواړه مي قصد دی) دوی ورته وويل چي تا ته معلومه ده چي موږ ته تورات راکړل سوی دی وفيها بيان کل شيئ؟ عليه الصلوة والسلام ورته وويل چي هغه د تورات علوم په علم کي د خدای ﷻ لږ دي، فانزل الله تعالی الآيات.

او علامه داني رح نقل کړی دی له عطاء او ابو حيان او هغو له قتاده رض څخه چي دوی وويل چي سورت لقمان مکي دی الا آيتين هما (ولو ان ما فی الارض اقلام الی اخير الآيتين) هغه په مدينه کي نازل سوي دي يعني څه وخت چي احبار د يهودو و عليه الصلوة والسلام ته راغله کما مر فی الرواية السابقة.

الٓمّٓ ۚ﴿۱﴾ تِلۡكَ اٰيٰتُ الۡكِتٰبِ الۡحَكِيۡمِ ﴿۲﴾

**درويش وايي:** چي په اول کي د سورة بقره تحقيق د مقطعات قرآنيه وو سوی دی فارجع، والمذهب الصحيح عند الحنيفية، الله اعلم بمراده بذالک.

**بوه سه:** چي اشاره په تلک سره و آياتو ته ددې سورت ده او اشاره د بعيد چي تلک دی لپاره د تعظيم د آياتو ده، او له کتاب څخه مراد قرآن کريم دی، او اضافت د آياتو و کتاب ته په معنی د من دی او د حکيم معنی و حکمة بالغة او المحکم من التغيير والتبديل کالتورات والانجيل، نو پر دې تقدير توصيف د کتاب په حکيم

سره حقيقة ده، او بعض مفسرين وايي چې وصف د كتاب په صفت سره د خدای ﷻ وكړی علی الاسناد المجازي كما قالوا في الاسلوب الحكيم اي الحكيم صاحبه.

هُدًى وَّرَحْمَةً لِّلْمُحْسِنِيْنَ ﴿۳﴾

**فائده**: دا دوه لفظه حمزه په رفع سره وايي چې خبر بعد الخبر د تلک يا خبر د مبتدا، محذوفي يې بولي اي هي هدًى ورحمة (يعني دا آيت لارښوونه ده او رحمت دی) او حمل پر آياتو يې مبالغةً دی لكه زيد عدل، او يا په حذف سره د مضاف دی اي ذات هدًى، او نور قاريان يې په نصب سره وايي چې حال يې بولي له آياتو څخه او عامل يې معنی د اشاره بولي په تلک كې كما في قوله هذا بعلي شيخًا.

**تنبيه**: پر تقدير د حاليت هم هغه د مخه توجيهاتو ته ضرورت سته لان الحال يجب حمله على ذي الحال، او له محسنين څخه مراد عاملين للحسنات دي، مفسرين وايي چې محسن لايطلق الا مدحًا للمؤمنين، او خدای ﷻ چې تخصيص د خپل كتاب وكړی په هدايت د محسنينو يې اشاره ودې ته وكړه چې د غير محسنين لپاره يعني المؤمنين هدايت نه دی په معنی د دلالة موصله وان كان هدايت القرآن بمعنی ارائة الطريق عامة ولهذا ورد في القرآن هدى للناس فافهم هداک الله تعالی.

الَّذِيْنَ يُقِيْمُوْنَ الصَّلٰوةَ وَيُؤْتُوْنَ الزَّكٰوةَ وَهُمْ بِالْاٰخِرَةِ هُمْ يُوْقِنُوْنَ ﴿۴﴾

هغه كسان دي چې اقامة الصلوة (يعني الصلوة الخمس المفروضة) كوي.

**پوهه**: چې اقامة الصلوة پر ځای كول دي د لمانځه پر وجه المشروع چې مشتمل وي پر فرائضو او واجباتو لكه تعديل الاركان والسنن وغيرها، او مراد له زكوة څخه فرضي زكوة دی كه نقود وي لكه ذهب او فضة او كه د سوائمو وي لكه پسونه وغيرها.

**فائده**: الذين يا مجرور محلاً دی صفت كاشفة د محسنين دی، او يا بدل يا عطف بيان د ما قبل دی، او دوی پر ورځ د آخرت يعني قيامت يقين لري.

۱. **درويش وايي**: چې تخصيص ددې درو صفتو چې يې وكړی لانه ورد في الحديث النبوي ﷺ الصلوة عماد الدين، والزكوة قنطرة الاسلام، واما الايمان بيوم القيامة فهو الداعي الى فعل جميع الطاعات وترک جميع المنهيات.

وتوكيد الضمير يعني هم للتوكيد في الايمان بالآخرة كمامر آنفًا. وروسته خداى پاک بيان کړی حال د دغو کسانو.

**أُولَٰٓئِكَ عَلَىٰ هُدًى مِّن رَّبِّهِمْ ۖ وَأُولَٰٓئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُونَ ۝**

دغه کسان دي پره هدايت عظيمة (نو تنوين او تنكير د هدًى لپاره د تعظيم دی) له جانبه څخه د خداى او هم دوی دي خلاصون پيدا کونکي له عذاب څخه د خداى في الدنيا والآخرة، ولي چي ددې کسانو هم عقيده محکمه ده او هم يې عمل صالح دی.

**وَمِنَ النَّاسِ مَن يَشْتَرِي لَهْوَ الْحَدِيثِ**

**پوه سه:** چي من الناس په تأويل د بعض الناس مبتداء او من يشترى آه يې خبر دی كما ذهب العلامة التفتازاني رحمه الله في تفسير قوله تعالى من السورة البقرة ومن الناس من يقول آمنا الآية.

**فائده:** دا جمله معطوف ده پر ماقبل باندې، عطف القصة على القصة.

**فائده:** لهو الحديث على ما روى عن الحسن رحمه الله كل ما شغلک عن عبادة الله تعالى لکه سمر يعني د شپې نقلونه لکه په پخوا زمانه کي په پښتو کي هم رواج وه، او اضاحيک يعني د خندا ټوکي، ټاکي، مسخرې او خرافات يعني بې معنى او بې فائدې خبري يا سروز وغيرها.

**فائده:** اشتراء دلته استعاره د استبدال څخه ده يعني يختارون لهو الحديث على القرآن كالمشترى بشيئ وفي رواية ذكرها البيهقي في السنن عن ابن مسعود رضي الله عنه هو رجل اشترى (وهو النضر بن الحارث) كما جاء في رواية عن ابن عباس رضي الله عنه ان النضر بن الحارث قنية (مينځه سروز کونکې) نو چي ده به واورېدل چي څوک اراده د اسلام راوړلو لري، نو هغه به يې وروستی خپلي قنيه ته، نو مينځي ته به يې وويل دوه دی، ورکړه شراب ورکړه او غزل ورته ووايه هغې به دا غسي وکړه، نو نضر به هغه سړي ته چي اراده د اسلام به يې درلوده وويل هذا خير مما يدعوک اليه محمد ﷺ من الصلوة والصيام وان تقاتل بين يديه، فانزلت هذه الآية.

روح البيان وايي چي اكثر اهل التفسير پر دې شان نزول دي، دا چي آيت نازل دی

په نضر بن حارث بن كلدة كي چي سخت خصومت يې د عليه الصلوة والسلام سره درلودی چي دا كافر د بدر په غزاء كي ژوندی گرفتار سو او عليه الصلوة والسلام په خپل مبارک لاس قتل كړی (وفي الحديث: لعنة الله على من قتل نبيًا او قتله نبي) دا نضر بن الحارث بن كلده فارس ته په تجارت تللی ؤ او هورې يې كليلة او دمنة چي دوه كتابونه وه كه څه هم په فارسي ژبه وه لكن په عربي ترجمه سوي وه هغه يې رانيول چي په هغو دوو كتابو كي اخبار د رستم او اسفنديار وه، او د فارس د بادشاهانو د جنگو قصې هم پكښې وې، نو ده به دا قصې د قريشو په مجلسو كي كولې او دا به يې ويل ان محمدًا يحدثكم عن عاد د ثمود وانا احدثكم بحديث رستم و اسفنديار، نو قريشو به ډېر خوند پر اخستی او استماع د قرآن يې پرېښول، نو پر دې تقدير اشترا، پر خپل حقيقت يعني يشتري بماله كتبًا فيها لهو الحديث وباطل الكلام.

**پوښتنه**: د مخه تا د ابن مسعود او د ابن عباس رضي الله عنهم روايتونه رانقل كړه چي نضر بن الحارث يوه مينځه رانيولې وه چي هغې به قريشو ته غزلي ويلې الخ، او دلته دي دا روايت راوړی چي كليلة او دمنة يې رانيولي وه. فكيف الجمع بين هذه الرواية وما قبلها؟

**ځواب**: څه مانع دی چي نضر بن الحارث لپاره د غايت بغض د آنحضرت ﷺ دي دواړه كاره كړي وي، فتدبر هداک الله تعالى.

المسئلة الشرعية في الغناء: بغوي رح له ابی سلمة رض څخه روايت كړی دی لايحل تعليم المغنيات واثمانهن حرام، او دا آيت يې تلاوت كړی ومن الناس من يشترى لهو الحديث الآية، او عليه الصلوة والسلام زياته كړه مامن رجل يرفع صوته بالغناء الا بعث الله اليه شيطانين احدهما على هذا المنكب والآخر على هذا المنكب يعني پر يوه او بله اوږه. ولا يزالان يضربان بارجلهما حتى يكون هو الذي سكت.

**درويش وايي**: چي دا حال د نرو د غناء دی، نو د ښځو د غناء چي په ودو كي بدلې وايي او دبانډې تر كورو په كوڅو كي هم اوريدل كيږي څه به وي؟! اللهم نصرًا.

**تنبيه**: درويش وايي چي څه وخت چي تفسير د قرآن عزيز تر دې ځايه پورې رسيدلی ؤ تخمينًا دوې مياشتې تفسير معطل ؤ له دې سببه چي فقير سره د خپل زويه عبد الهادي حسب العادة د عمرې په مقدماتو اخته وُ حتى ويزه د وسعودي

له خوا تر لاسه کړه، يوه مياشت مو په حرمينو شريفينو کي تېره کړه وروسته چي کوټې ته را ستانه سوو، بيا د مېلمنو آمد ورفت شروع وُ، نو نن ورځ د سه شنبې پر ځلور بجې مي په توفيق د خدای ﷻ شروع وکړه اللهم وفقني لتفسير هذا الجزء من القرآن الكريم يعني ٢١ بالخير والعافية والصحة والسلامة.

## لِيُضِلَّ عَنْ سَبِيلِ اللَّهِ

**يوه سه:** چي مفعول د ليضل محذوف دی ای الناس.

چي ګمراهان کړي خلګ له لاري څخه د خدای ﷻ، قيل عن دينه وقيل عن ذكره وقيل عن قرائة كتابه.

تحقيق حال الغناء: اخرج ابن ابى الدنيا والبيهقي في شعبه عن ابن مسعود رضی الله عنه انه قال لعن الله تعالى المغنى والمغنى له وفي السنن عن ابن مسعود رضی الله عنه الغناء ينبت النفاق في القلب كما ينبت الماء البقل، وقال الضحاک رحمه الله الغناء مفندة للمال مسخطة للرب مفسدة للقلب، وفي رواية الغناء داعية الزنى، واخرج سعيد بن منصور واحمد والترمذي وابن ماجه وابن جرير وابن المنذر وابن ابى حاتم والطبراني وغيرهم، عن رسول الله ﷺ قال لا تبيعوا المغنيات ولاتشروهن ولا تعلمونهن الغناء ولا خير في تجارة فيهن وثمنهن حرام، وفي مثل هذا نزلت هذه الآية ومن الناس من يشتري لهو الحديث، وفي رواية عن ابن ابى الدنيا وابن مردوية عن عائشة رضی الله عنها قال رسول الله ﷺ ان الله تعالى حرم القينة وبيعها وثمنها وتعليمها والاستماع اليها ثم قرء ومن الناس من يشترى لهو الحديث.

**درويش وايي:** چي واختلف العلماء في حكم الغنى فحكى تحريمه عن ابى حنيفة رحمه الله والقاضي ابو الطيب والقرطبي والماوردي والقاضي العياض وفي التاتار خانية، اعلم: التغنى حرام في جميع الاديان، حكى عن ظهير الدين المرغيناني من قال لقارئ زماننا (اى الذي يقرء القرآن على نهج الموسقي والتغني عند قرائته احسنت كفر) وصاحب الهداية والذخيرة سمياه كبيرة اى التغني، ويدخل فيه صوفية زماننا في المساجد بالاشعار والاذكار مع اختلاط اهل الاهواء والمرد (بې ږيري بنائسته هلكان) بل هذا اشد من كل تغن لانه حرام مع اعتقاد العبادة.

**مسئله:** واما التغني وحده بالاشعار لدفع الوحشة او في الاعياد والاعراس فاختلفوا فيه. قال صاحب روح المعاني الصواب النهي منه مطلقًا في هذا الزمان، وفي الدر المختار التغني لنفسه لدفع الوحشة لا بأس به عند العامة على ما في العناية وصححه البدر العيني، قال ولو كان وعظ وحكمة فجائز اتفاقًا ومنهم من اجاز التغني في العرس كما جاز ضرب الدف فيه، وفي البحر والمذهب حرمة التغني مطلقًا بل ظاهر الهداية انه كبيرة ولو لنفسه، وقال لاتقبل شهادة من يسمع الغنى او يجلس مجلسه انتهى كلام الدر، او امام طرسوسي رح په خپل کتاب کي په تحريم کي د سماع الغنى وايي چي امام ابو حنيفة رح يكره الغنى ويجعله من الذنوب، وكذالک مذهب اهل الكوفة، سفيان الثوري وحماد وابراهيم والشعبي وغيرهم رحمهم الله لا اختلاف بينهم في ذالک. روح المعاني وايي ولا نعلم خلافًا بين اهل البصرة في ذالک اى كراهة الغنى والمنع منه انتهى.

**فائده:** والمتقدمون من اهل المذهب كثيرًا ماتريدون بالمكروه الحرام، كما في قوله تعالى: كل ذالک كان سيؤه مكروهًا، او امام طرسوسي رح د امام مالک رح څخه هم نقل کړی دی چي هغه هم نهي له غنی څخه کولي او له اوريدلو څخه د سماع و نقل عنه اذا اشترى جارية فوجدها مغنية فله ان يردها بالعيب ونقل الطرسوسي رح تحريم الغنى عن جمع من الحنابلة على ما نقله شارح المقنع الحنبلي وغيره، او امام السلفيه والوهابية ابن تيميه په خپل کتاب کي چي نوم يي البلغة دی وايي چي اكثر اصحاب ددوی پر تحريم د غناء دي، او د عبدالله بن الامام احمد صاحب المذهب روايت دی، ده وويل ما سوال وکړی له پلار څخه په باره کي د غناء. فقال: الغناء ينبت النفاق في القلب ثم ذكر قول مالک رح انما يفعل الغناء عندنا الفساق، وقال المحاسبي في رسالة الانشاء: الغناء حرام كاكل الميتة، وذكر الطرسوسي رح ايضاً: في كتاب ادب القضاء ان الشافعي رح قال ان الغناء لهو مكروه، يشبه الباطل والمحال ومن استكثره منه فهو سفيه ترد شهادته، وفي الكتاب المذكور ان صرح العارفون بمذهب الشافعي رح قائلون بتحريم الغناء، او انكار کړی دی پوهان د مذهب د شافعي رح پر هغه چا چي نسبت د حل د غناء و امام شافعي رح ته کوي، لکه قاضي ابى الطيب والطبري، والشيخ

ابی اسحاق في التنبیهه، وذکر بعض تلامذة البغوي؆ في کتابه الذي سماه التقریب ان الغناء حرام فعله وسماعه، وقال ابن الصلاح في فتاواه بعد کلام طویل فاذن هذا السماع حرام باجماع اهل الحل والعقد من المسلمین انتهی.

**درویش وایي:** چي اول به تر بیان د حل او حرمت د غناء مور مفهوم د غناء بیان کړو: نو پوه سه! که د غزلو سره ډولک یا طبله یا رباب یا سارنګی هم موجود وه دا خو بلا خلاف غناء محرم ده، او که دا شیان نه وه موجود لکن ابیات د موسقی پر طرز ویل کېدل او خلک پر جمع وه دا هم غناء محرم ده، او که یو سړی یوازې ناست وُ د خپل زړه د دفع د وحشت لپاره یې بعض ابیات ویله نه پر وزن د موسیقی فهو جائز لابأس به، او که ابیات د دعاء وه مثل: الهی یا الهی یا الهی .... ندارم جز امیدت تکیه گاهی الی اخیر الابیات لکه چي درویش څو ځایه دغه ابیات پوره راوړي دي فهو لا بأس به لانه لا فرق بین الشعر والنثر في الدعاء، او که چېرې شعرونه د علم په باره کي وه لکه پنج کتاب، یا د تصوف په باره کي وه لکه مثنوي معنوي، دېوان بېدل وغیرهما د هغو اشعارو په ویلو کي هیڅ حرج نسته، لانها من امور الدین لا من اللهو واللعب کما لایخفی.

**درویش وایي:** چي آنحضرتﷺ چي مدینې ته هجرت وکړی اول یې په بني نجار کي واړول، نو د بني النجار نجونو دغه بیت مکرر وایه او علیه الصلوٰة والسلام انکار هم پر وکړی ... بیت:

نحن جوار من بنی نجار ......... یا حبذا محمدًا من جار

او بیهقي له سیدتنا عائشه‬ؓ څخه روایت کړی دی چي علیه الصلوٰة والسلام چي مدینې منورې ته راغلی جعل النساء والولائد والصبیان یقولون:

طلع البدر علینا من ثنیات الوداع... وجب الشکر علینا ما دعی لله داع
ایها المبعوث فینا بالامر المطاع.

او علیه الصلوٰة والسلام انکار نه پر وکړی چي د لهو په صورت کي نه وه بلکې د شکر نعمت په صورت کي وه، او امام احمد له انسؓ څخه روایت کړی دی چي علیه الصلوٰة والسلام چي مدینې منورې ته راغلی حشبه و په خپلو نیزه بازیو د علیه الصلوٰة والسلام استقبال او خشو آمدید ښکاره کړی او امام ابو حامد محمد الغزالي قدس

سره په احياء العلوم كي وايي السماع مباح في اوقات السرور تهيجًا له يعني د پاره د پر جوش راوستو د خوشالى. ان كان ذالك السرور مباحًا كالغناء في ايام العيد و في قدوم الغائب وفي الوليمة و العقيقة وعند ولادة الولد وعند حفظ القرآن المجيد.

**درويش وايي:** چي په هامش كي د مكتوبات د امام رباني قدس سره السامي راغلي دي چي عليه الصلوة و السلام يوه ورځ د يو اعرابي څخه واورېدل:

لسعت حية الهوى كبدى .......... فلا طبيب لها ولا راقى

الا الحبيب الذى شغفت به .......... فعنده رقيتي وترياقى

فامره عليه الصلوة و السلام بتكراره.

**سوال:** روح المعاني خو پر دې سخت انكار كړى دى؟

**ځواب:** روح المعاني پر نفس سماع د دغو دوو بيتو او امر د قائل بالتكرار نه دى كړى بلكې د دې دوو بيتو سره راوايانو د پر ملحقات او كاذب اخبار راوړي دي، روح المعاني پر هغو سخت انكار كړى دى او كذب بحث يې بللي دي فارجع الى روح المعاني جز٢١. وفي الذخيرة منهم من قال لابأس بالدف في الاعياد. روى ان رسول الله ﷺ كان جالسًا في بيته يوم العيد وجاريتان تغنيان بالدف في دهليز بيته فجاء ابوبكر ؓ وقال اتغنيان لهوا اتغنيان في دهليز رسول الله ﷺ، فقال رسول الله ﷺ دعهما فهذا اليوم يوم عيد.

**درويش وايي:** چي اشعار ويل لپاره د دفع له حريم څخه د اسلام او د عليه الصلوة و السلام فلا بأس به بل هو مندوب كما يدل يدل الاحاديث الشريفة ان النبي ﷺ يضع لحسان بن ثابت الشاعر منبرًا في المسجد النبوي ويقول اهجوهم اى الكفار ويقول اللهم ايده بروح القدس وفي رواية فان جبرئيل معك.

**درويش وايي:** چي مظهري په خپل تفسير كي داسي احاديث راوړي دي چي پر اباحة د غناء دلالت كوي بل على اباحة ضرب الدف (دريه).

(١) حديث د ربيع بنت معوذ بن عفراء (چي د يوې ښځي نوم دى) دا وايي چي عليه الصلوة و السلام راغلى هغه وخت چي زما د واده ورځ وه نو زما پر ځاى (يعني نژدې ماته كښېنستى) كمجلسك مني نو نجونو درې وهلې او هغه غزلي يې ويلې چي زما د نيكه ګانو په باره كي ويل سوي وې په ورځ د بدر، په دې دوران

کي يوې نجلی داسي بيت وايي؛ وفينا نبي يعلم ما في الغد، عليه الصلوة والسلام ورته ووېل دا مه وايه هغه دمخه بدلي وايه، رواه البخاري، وروی ابن ماجه نحوه وفيه اما فلا تقوله لما في لانه لايعلم ما في غد الا الله.

(۲) له حضرت عائشه ﷺ څخه روايت دی چي يوه ښځه د انصارو ؓ يوه سړي ته ور واده سوه، نو عليه الصلوة والسلام ووېل ما كان معكم لهو (يعني يوه بدله مو نه ورسره ووېل) فان الانصار ؓ خوند ورکوي بدلي، رواه البخاري.

(۳) انکحت عائشة ذات قرابة لها الى رجل من الانصار، فجاء رسول اللهﷺ فقال اهديتم الفتاة (ناوې مو ور واده کړه) عليه الصلوة والسلام راته ووېل چي داسي ښځي ورسره وې چي بدلي بي ويلې، ما ورته ووېل يا، عليه الصلوة والسلام راته ووېل چي د انصارو د واده په وخت کي بدلي خوښي دي، فلو بعثتم معها من يقول اتيناكم اتيناكم، فحيانا وحياكم، رواه ابن ماجه.

(۴) عن عامر بن سعد قال دخلت على قرض بن كعب وابى مسعود الانصاري ؓ في عرس (په يو واده کي) خو نجوني وې چي بدلي بې ويلې فقلت اى صاحبي، رسول اللهﷺ واهل بدر يفعل هذا عندكم (يعني ستاسي په حضور کي بدلي ويل کېږي) دوی راته ووېل اجلس ان شئت فاستمع معنا وان شئت فاذهب فانه قد رخص لنا في اللهو عند العرس.

(۵) يوه ښځه راغله چي ما نذر کړی دی يا رسول اللهﷺ چي زه به ستا پر سر دريه وهم عليه الصلوة والسلام ورته ووېل اوفى بنذرك (نذر دي پر ځای کړه يعني دريه ووهه) رواه ابو داؤد، مع ان رسول اللهﷺ قال لا وفاء بنذر في معصية الله رواه مسلم، نو دا معلومه سوه چي دريه وهل معصيت نه دی، له دې سببه چي عليه الصلوة والسلام اجازه د وفاء بالنذر المذكور ورکړه.

(۶) د محمد بن حاطب الجمعي ؓ څخه روايت دی عن النبيﷺ قال فصل ما بين الحلال (اى النكاح) والحرام (اى الزنى) الصوت (بدلي) والدف (دريه وهل يعني په حلال کي چي نکاح کي نه په حرام کي زنی ده)

**درويش وايي؛** چي مظهري د صوفيه قول رانقل کړی دی او داسي يې ويلي دي اذا كان ذی قلب مطمئن بذكر الله فارغا عن غيره لا يلتفت الى ماسوى الله

ولايكون المغنى محلاً للشهوة وكان المجلس خاليًا (اى عن غير الصوفية) ولايكون وقت الصلوة وغيرها من العبادات جاز له السماع الى اخيره، وقال في منهيه تفسيره بل جاز الرقص والتواجد آه.

**درويش وايي:** چي دا شرطونه چي مظهري له اهل تصوف څخه رانقل کړي دي په مرور د زمان کالتعليق بالمحال دی او د اهل زمان حاضر چي ځانونه صوفيان بولي لار خلاصول دي چي دوی په خپلو مجلسو کي رقص وکړي لکه موږ يې وينو د دې زمانو په پيرانو کي ورته کارونه يعني رقص او شلي کوي، که څوک د علماؤ څخه دوی منع کړي نو دوی په استدلال په قول د مظهري کوي .... مصرع:

وللناس فيما يعشقون مذاهب.... مقوله:

من نه اينکار ميکنم (يعنى في ازمنة ظهور الفسق في بعض المشائخ) و نه انکار ميکنم (يعني علماء اهل التصوف في الزمان القديم يعني چي دغه شرائط چي مظهري راوړي دي پکښي امکان پذيره وه)

**درويش وايي:** چي نه له نبي کريمﷺ او نه له صحابه کرامو﷡ څخه دا په ثبوت رسېدلې ده دوی استماع د غناء تقربًا الى الله تعالى کوله، او هم له دې سببه مشائخ د طريقت عليه نقشبنديه دا کار کوي چي په غناء سره تقرب الى الله﷯ غواړي او نه پر نورو مشائخو چي دا کار کوي انکار کوي، والله اعلم بالصواب، دا ؤ تحقيق د فقير په باره کي د غناء حسب الوسع والطاقة ونرجع الى تفسير القرآن العزيز.

## بِغَيْرِ عِلْمٍ ۖ وَيَتَّخِذَهَا هُزُوًا ۚ

متعلق بقوله ليضل الناس آه، والمعنى چي دوی علم نه لري په حال ما يشتر به من اللهو، او بالتجارة حيث استبدل اللهو تجارة القرآن قتادهؒ وايي بحسب المرء من الضلالة ان يختار الحديث الباطل على الحديث الحق والمآل واحد "ويتخذها" او وګرځوي آيات الله "هزوًا" چونکه هزوا مصدر دی نو دلته په معنى د مهذوا به دی ليصح حملها على آيات الله.

**فائده:** يتخذها منصوب دی معطوف پر ليضل چي منصوب په ان مقدرة سره بعد اللام ولي حرف جر پر فعل نه داخلېږي بې تقدير د ان مصدري، او اکثره قراء يې په رفع سره وايي، عطف يې پر يشتري بولي.

أُولَٰٓئِكَ لَهُمۡ عَذَابٞ مُّهِينٞ ۝٦

او دغو کسانو لره دی عذاب د اهانت او سپکاوي.

وَإِذَا تُتۡلَىٰ عَلَيۡهِ ءَايَٰتُنَا

**پوه سه:** چي ضمير د عليه راجع دی و من ته في قوله تعالى من يشترى چي تلاوت وکړل سي پر ده د آياتو زموږ (چي آيات قرآنيه دي)

وَلَّىٰ مُسۡتَكۡبِرٗا كَأَن لَّمۡ يَسۡمَعۡهَا

دی اعراض وکړي يعني توجه نه ورته کوي په داسي حال کي چي طالب د کبر وي يا په معنى د متكبر يعني سين د طلب زائد دی، پوه سه! چي جمله شرطيه عطف ده پر يشترى.

"كان لم يسمعها" يعني ځان داسي وګرځوي لکه ده چي آيات نه دي اورېدلي (كان حال دی له ضمير د ولى)

كَأَنَّ فِيٓ أُذُنَيۡهِ وَقۡرٗاۖ فَبَشِّرۡهُ بِعَذَابٍ أَلِيمٍ ۝٧

ګويا دده په غوږ کي ثقل او کڼوالى دی.نو زېرى ورکړه ده ته يا محمد (ﷺ) او يا كل يصلح الخطاب په عذاب سره چي درد ورکونکى دی چي عذاب د اور دی.

**سوال:** بشارة خو خبر سار ته وايي، عذاب اليم خو خبر سار نه دی؟

**ځواب:** اصل معنى خو داده اخبره تعبير بالبشارة تهكمًا يې وکړي.

**پوښتنه:** لفظ د اليم خو فعيل د مجرد باب دی، تا يې ترجمه په درد ورکونکي سره وکړه چي معنى د مولم د باب د افعال؟

**ځواب:** په خواص الابواب کي راغلي دي چي ګاهي فعيل په معنى د مفعل راځي كما قول الشاعر: امن ريحانة الداعى السميع يورقنى آه، دا سميع په معنى د مسمع دی كذا في شرح الجامي، ولهذا الشعر قصة طويلة، كما ذكرناها في بعض مواضع.

**درويش وايي:** چي عادت الهي په قرآن عزيز کي په دې سره جاري دی عمومًا چي وروسته تر عذاب بيانولو د حال د کافرانو لکه په دې ځای کي ومن الناس من يشترى لهو الحديث الآية حال د مؤمنانو بيانوي ليكون القرآن الكريم نذيرًا وبشيرًا ولهذا قال.

إِنَّ الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ لَهُمْ جَنَّاتُ النَّعِيمِ ﴿٨﴾

په تحقیق هغه کسان چي ایمان یې راوړی وي (یعني بما یجب الایمان به لکه چي آمنت بالله و ملائکته آه پر هغو عقائدو مشتمله ده) او عملونه د خصلاتو صالحاتو من العبادات البدنية والعبادات المالية والمركبة منهما من الفرائض والواجبات والسنن "لهم" ددوی لپاره. (اللام للاختصاص الاصل نعيم الجنات لكن عكس التعبير للمبالغة)

خَالِدِينَ فِيهَا ۖ وَعْدَ اللَّهِ حَقًّا ۚ وَهُوَ الْعَزِيزُ الْحَكِيمُ ﴿٩﴾

همېشه به وي دوی په هغه جنتو کي.

**پوه سه:** چي دا عبارت حال مقدره دی ای مقدراً خلودهم فيها اذا دخلوها.

"وعد الله" ای وعد الله وعداً.

**درویش وايي:** چي په علم نحو کي وايي چي دا حال مؤکد لنفسه دی ولي چي د ماقبل تر ده یعني لهم جنات النعيم آه مفهوم عین وعده ده "حقًّا" مفعول مطلق دی د فعل محذوف ای حق ذالک الوعد حقًّا.

**پوه سه:** چي دي ته مصدر مؤکد لغيره وايي په علم النحو کي لان کون الوعد حقًّا مفهومه مغائر لنفس الوعد فافهم.

"وهو العزيز الحکيم" او خدای ﷻ غالب دی څوک يې نسي منع کولای د پوره کولو څخه د خپل موعود که ثواب وي او که عقاب، لان العجز على الله محال "الحکيم" یعني لايفعل الا مافيه حمکت باهرة.

خَلَقَ السَّمَاوَاتِ بِغَيْرِ عَمَدٍ تَرَوْنَهَا

پیدا کړي دي خدای ﷻ اسمانونه.

**پوه سه:** چي دا جمله صفت ده د الحکيم بحذف الموصول ای الذي خلق آه وهو تکلف مستغنی عنه، یا حال ده په تقدير د قد کما هو القانون النحوي في الماضي الواقع حالاً من الضمير المستتر في الحکيم "بغير عمد ترونها" بیله میلانو او تمبو چي تاسي يې وينئ.

**فائده:** جمله د ترونها صفت دی د عمد والضمير المؤنث راجع الى عمد، والنفي

متوجه الى القيد والمقيد يعني نه ستني (تمبې) سته او نه يې تاسي وينئ، يا مراد دادى چي تاسي يې نه وينئ كه څه هم تمبې سته، والمراد على هذا التقدير العمد المعنوية وهي عمد القدرة الالهية كما في روح المعاني، وروح البيان.

وَأَلْقَىٰ فِي الْأَرْضِ رَوَاسِيَ أَن تَمِيدَ بِكُمْ وَبَثَّ فِيهَا مِن كُلِّ دَابَّةٍ

او خداى ﷻ اچولي دي پر مځكه غرونه محكمه پر ځاى ولاړ "ان تميدبكم" بحذف المضاف اى كراهة ان تميد بكم يعني چي مځكه حركت ونه كړي متلبس په تاسي سره، او خداى ﷻ منتشر كړي دي په مځكه كي هرقسم دواب، الدابة مايدب على الارض چي حركت كوي پر مځكه، والاستغراق في كل دابة په سبب د غاية كثرت د انواعو د دواب الارض في الجنس والنوع والهيئة والصغر والكبر الى غيرها من احوالها، كريمه: ولايعلم جنود ربك الا هو.

وَأَنزَلْنَا مِنَ السَّمَاءِ مَاءً

او موږ راتوى كړي له اسمانه اوبه يعني باران، مراد د اسمان څخه يا حقيقت اسمان او يا وريځ ده لان كل ماعلاك فهو سماء.

**پوه سه:** چي مراد اغلب د ما ينزل من السماء يعني كه څه هم اوربنت د واوري او ږليو هم له سماء څخه دى.

**فائده:** في قوله تعالى وانزلنا التفات من الغيبة الى التكلم.

**درويش وايي:** چي التفات په خپلو ښېړو قسمو د محسناتو څخه د عربيه كما ثبت في علم البديع.

فَأَنبَتْنَا فِيهَا مِن كُلِّ زَوْجٍ كَرِيمٍ ﴿١٠﴾

نو موږ شنه كړي دي په مځكه كي د هر قسم نباتاتو څخه چي حسن المنظر او كثير المنفعة دي يا د خورك لپاره يا د تداوي لپاره الى غير ذالك من الحكم المودعة فيها.

**درويش وايي:** چي په دې آيتو كي خداى ﷻ خپل كمال قدرت او حكمت او علم يې بيان كړى او د وحدانيت خپل اساس يې كښېښنو او نفي د شرك يې وكړې، نو په دې آيت كي اشاره و دغه ته ده.

هٰذَا خَلْقُ اللّٰهِ فَأَرُوْنِيْ مَاذَا خَلَقَ الَّذِيْنَ مِنْ دُوْنِهٖ

په تأويل د ما ذکر خلق د خدای دي، نو تاسي بيان کړئ ايها المشرکون چي څه شی پيدا کړی هغه بتانو چي ماسوی د خدای ﷻ دي او تاسي يې عبادت کوئ او د خدای ﷻ شرکاء يې بولئ.

**فائده:** پوه سه! چي ما ذا منصوب دی په خلق او کلمه ما لپاره د استفهام انکاري ده او مبتداء ده او کلمه د ذا په معنی د الذي سره د صله يې خبر دی.

**سوال:** کلمه د ما چي استفهاميه سي، نو ''اروني'' څرنګه عمل پکښي کوي آيا و صدارت ته د استفهام به ضرر نه وي؟

**خواب:** مفسرين وايي چي اروني بند دی له عمل څخه ههنا فتدبر.

بَلِ الظّٰلِمُوْنَ فِيْ ضَلٰلٍ مُّبِيْنٍ ﴿۱۱﴾

**پوه سه:** چي بل لپاره د انتقال دی له تبکيت څخه د مشرکانو و حکم ته د ضلال پر دوی.

**پوښتنه:** ځای خو د ضمير ؤ يعني بل هم نو اسم ظاهر يې ولي راوړی؟

**خواب:** لپاره د حکم پر دوی چي دوی ظالمان دي کما لا يخفی.

وَلَقَدْ اٰتَيْنَا لُقْمٰنَ الْحِكْمَةَ اَنِ اشْكُرْ لِلّٰهِ

په تحقيق مو ورکړی ؤ لقمان ته.

تاريخ قديم وايي چي قصه د لقمان حکيم او وصايا دده په نيز د يهودانو يې ډېر شهرت درلودی، او عرب په يو مهم کي يعني يهودانو دوی ته رجوع کول: از حکمتهای لقمان برای ايشان ضرب مثل بودندی، حق سبحانه وتعالی از حال وی خبرداد وفرمود ولقد آتينا لقمان آه.

**درويش وايي:** چي په نسب او احوالو کي د لقمان لوی اختلاف دی، محمد اسحق صاحب المغازي وايي چي لقمان بن باعور بن ياخور بن تارخ وهو آزر ابو ابراهيم الخليل ﷺ بود، او زر کاله ژوندی ؤ چي زمانې ته د داؤد ﷺ ورسېدی او د هغه څخه بعض علوم دينيه زده کړه او دمخه تر بعثت د داؤد ﷺ لقمان خلکو ته فتواوي ورکولې، چي داؤد ﷺ مبعوث سو لقمان بيا چاته فتوی نه ورکول، او چا

چې به له ده څخه پوښتنه وکړه چې ته ولي اوس فتوی نه ورکوې؟ ده به ویل الا اکتفی اذا کفیت، او بعض اهل تاریخ وایي چې دده نسب دا ؤ: لقمان بن عنقا بن سرون وکان عبداً نو بیا یعني من اهل نوبة اسود اللون ولاضي فیه فان الله لایصطفی عباده اصطفا نبوة او ولایة وحکمة علی الحسن والجمال الظاهري، وانما یعطیهم علی ما یعلم من غائب امرهم، ونعم ما قال الجامي قدس سره:

چه غم و منفعت صورة اهل معنی را ... چو جان ازروم بود گوتن حبش میباش

بغوي رح وایي چې وهب بن منبه رح وایي چې لقمان د ایوب علیه السلام د خور زوی ؤ، او مقاتل رح وایي د ایوب علیه السلام د خاله زوی ؤ، او واقدي وایي چې لقمان قاضي ؤ په بني اسرائیلو کې، او په درمنثور کې وایي چې ابن ابی شیبة او احمد په کتاب الزهد او ابن ابی الدنیا په کتاب المملوکین کې له ابن عباس رض څخه نقل کړی دی چې لقمان حبشي مریی ؤ او نجار ؤ، او بغوي رح د خالد الربعي څخه وقال قال مجاهد کان عبداً اسود لوی شونډان یې وه چاودلې پښې یې وې، او سعید بن المسیب وایي چې لقمان خیاط ؤ، او بعض وایي شپانه ؤ، او بعض وایي مریی ؤ هره ورځ به یې بادار ته یوه پلنډه بوټي راوړل.

**درویش وایي:** چې روح المعاني په خپل تفسیر کې دا قولونه ټول له رانقل کړي دي، لکن په اخیر کې یې ویلي دي: ولا وثوق لي بشيئ من هذه الاخبار.

**سوال:** نو ولي دي رانقل کول!؟

**ځواب:** روح المعاني داسي ځواب ورکړی دی وانما نقلها تاسیًا (ای اقتدا) بمن نقله من المفسرین الاخیار، ده خپله رایه داسي بیان کړې ده چې لقمان یو صالح سړی ؤ حکیمًا ولم یکن نبیًا انتهی (روح المعاني جز۲۱)

"الحکمة" درویش وایي: چې په قاموس کې وایي چې حکمت العدل او علم او حلم او نبوة والقرآن والانجیل ته وایي لکن مظهري وایي وکل من هذه المعاني یحتمل المقام، فقیر وایي چې د انجیل او قرآن څرنګه احتمال سته که څه هم مراد څني علم الانجیل وعلم القرآن وي، ولي چې لقمان حکیم خو ډېر مقدم ؤ تر انجیل او قرآن فافهم.

**بوه سه:** چې په یو حدیث صحیح کې راغلي دي قال رسول الله ﷺ ان من الشعر لحکمة، مراد په دغه حدیث کې له حکمت څخه علم دی یعني بعض اشعار مشتمل پر

علم دي لکه پنج کتاب مثلاً او مثنوي وغیر ذالک في الزمان الحاضر، او یا هغه اشعار چي په زمانه کي د آنحضرت ﷺ په مدحه کي دده مبارک او یا په بیان کي د قرآن عزیز د حقیت ویل سوي وه، او په هغه حدیث کي چي رسول الله ﷺ وایي: الا وفی رأسه حکمة، مراد ځنډي عقل دی، او بغوي رح وایي اتفق العلماء علی ان لقمان کان حکیمًا ای عالمًا فقیهًا ولم یکن نبیًا، مگر عکرمه رض وایي چي لقمان نبي ؤ، لکن دا قول ضعیف دی غایة الضعف لما اخرج ابن ابی حاتم عن وهب بن منبه انه سئل اکان لقمان نبیًا قال لا لم یوح الیه وکان رجلاً حکیمًا، وکذا اخرج ابن جریر عن مجاهد.

اخرج ابن مردویة عن ابن عباس رض چي حکمت علم او عقل وافطنة (یعني ځیرک والي ته وایي) او اصابة في القول ته وایي، وقال الراغب الاصفهاني رح چي حکمت معرفة الموجودات علی ماهي علیه في الواقع وفعل الخیرات ته وایي.

او امام رازي رحمه الله په تفسیر کبیر کي وایي: چي حکمت عبارت دی د توفیق ځنځه عمل بالعلم.

**درویش وایي:** چي نور هم تفاسیر د حکمت د لقمان رح په کتابو کي کړل سوي دي وبیان کلها مع مالها وما علیها یقضی الی التطویل الممل للمتعلمین لهذا التفسیر.

بعض علماء وایي چي اختیار ور کړل سو یعني د خدای جل جلاله له خوا و لقمان ته په منځ کي د حکمت او نبوت فاختار الحکمة، قال البغوي رح وروی چي لقمان بیده ؤ په غرمه کي نو دغ پر و کړل سو یا لقمان هل لک (یعني تا ته رغبت سته چي خدای دي خلیفه وګرځوي په محکمه کي فتحکم بین الناس بالحق) لقمان جواب ورکړی که ماته اختیار راکوي خدای جل جلاله قبلت العافیة (یعني چي زه له دې منصب ځنځه ځان ساتنه غواړم او که د امر د خدای جل جلاله پر ما باندي د قبول د دغه منصب وي فسمعًا وطاعةً، ولي چي زه په دې پوهېږم چي په صورت ثاني خدای جل جلاله زما مرسته کوي او د خطاء او ګمراهی ځنځه مي ساتي، نو ملکو وده ته وویل چي ده نه لیدلي لم یا لقمان (ولي ای دا منصب د دتحکیم بین الناس په خپله خوښه نه قبلوې؟) لقمان جواب ورکړی چي حکم بین الناس سخت ترین د منازلو دی چي ظلم له هري خوا ځنځه ورته راځغلي، نو که زه په حکم حق ته ورسېږم، نو اقلاً داده چي زه به نجات پیدا کړم له عتاب ځنځه او که خطاوځم په حکم کي، نو لار د جنت

مي خطا کړه او زياته يې کړه چې سړی چې په دنيا کې ذليل وي بهتره ده تر دې چې په دنيا کې رئيس او حاکم او شريف وي.... بيت:

بر فلک برتر بود اسرار او ........ شيئًا لله شيئًا لله کار او

او زياته يې کړه من يختار الدنيا على الآخرة تفته الدنيا (ځندي فوت به سي دنيا لانها فانية) ولايصيب الآخرة (ولي ده يې طلب نه دی کړی) فعجبت الملائكة من حسن جوابه وكلامه، فنام نومة فاعطى الحكمة. نو دی راويښ سو خبري يې تولي حکمت وې. او پر داؤد عليه السلام هم ورته ږغ وکړل سو وروسته تر لقمان، داؤد عليه السلام يې قبول وکړی ولم يشترط ما شرط لقمان، نو څو ځايه په تحکيم کې خطا ورپېښه سوه کما جاء في القرآن العزيز كل ذالک يعفو الله عنه، نو لقمان لکه وزير مشاور د داؤد عليه السلام و. وفي الحديث النبوي الصحيح كما رواه البخاري وغيره قال رسول الله صلى الله عليه وسلم لي وزيران في الارض ابوبکر و عمر رضي الله عنهما الى اخير الحديث، په روح البيان کې وايي لقمان مردی حکيم بود از نيک مردان بني اسرائيل لکن سبط او ۱۲ سبط بني اسرائيل معلوم نيست، خلق را پند دادی وسخن حکمت گفتی ولم يکن نبيا وفي الكتب: لقمان هزار پيغمبر را شاگردی کرده بود و هزار پيغمبر را او وزير مشاور بودی، در سخنهای حکمت راوی گفت که از هزار پيغمبر هرچه شنيده ايم هشت کلام اختيار نمودام (۱) ان كنت في صلوة فاحفظ قلبک، يعني د امور بيهوده او د امور دنياويه قلبک مشغول نگردانيد (۲) وان كنت في الطعام فاحفظ حلقک: ته ستونی ساته چې دومره ګوله اخله چې تر ستوني په آسانی تېرېږي (۳) وان كنت في بيت الغير فاحفظ عينيک: ستر ګې دې ساته يعني دده د کور په شيانو کې کاته مه کوه (۴) وان كنت بين الناس فاحفظ لسانک: يعني ناړېبا خبره او چې د اهل مجلس ناخوښه وي پر خوله او ژبه مه راوړه (۵) واذكر اثنين، او دوه شيان په ياد کړه يعني الله جل جلاله والموت (۶) دوه شيان هېروه يعني احسانک في حق غيرک واسائة الغير في حقک، روايت دی چې يو چا لقمان ته وويل: ما اقبح وجهک؟ ده ورته وويل التعيب على النقش ام على النقاش. يعني زما خو د اقبح الوجه په اختيار نه ده نو پر ما څه عيب وايې، او نقاش چې پروردګار دی پر هغه عيب ويل حق نه دی لانه يفعل مايشآء.

روايت دی چې داؤد ﷺ اول واضع د زغرو د جوړېدلو دی. لقمان به ورته ناست وُ چې داؤد ﷺ به الغې سره جار ايستلې او مېخونه به يې پر وه ويشتل د لقمان به ګاهې اراده سوه چې پوښتنه ځني وکړي چې ته دا څه شی جوړوې، بيرته به يې فکر وواهه چې ان من الحكمة الصمت، يعني پټه خوله حکمت دی، وايي چې داؤد ؑ چې دا شی پوره کړي په خپله به يې حکمت بيان کړي او داغسي هم وسوه چې داؤد ؑ چې زغره تکميل کړه او وايې غوښتل دا سې يې ووېل: نعم اداة الحرب يعني د جنګ په وخت کې په اسانی سره توره دا زغره نسي پرې کولای. رواه الحاكم والبيهقي في شعب الايمان.

له لقمان ؒ څخه روايت دی چې له ده څخه چا پوښتنه وکړه: ای الناس شر؟ فاجاب الذي لايبالي ان رأه الناس على العصيان من الله. او ابن ابی شيبة او احمد او ابن جرير له خالد ربعي څخه روايت کړی دی چې لقمان عبد حبشي وُ، نو دده بادار ورته ووېل چې يو پسه حلال کړه او ماته غوښې ځني راوړه. هغه ډېرې پاکې او خوږې دوې ټوټې غوښه راوړه چې زه يې وخورم، ده هم داغسي وکړه ژبه او زړه يې ورته راوړه، څو زمانه وروسته بيا د لقمان سيد ورته ووېل چې يو پسه حلال کړه او ماته هغه ډېرې خبيثې دوې ټوټې غوښې راته راوړه، لقمان داغسي وکړه اما دا وار يې هم ژبه او زړه ورته راوړی، سيد يې پوښتنه ځني وکړه چې ولې دا طيب او اخبث په دواړو سرو کې دي ژبه او زړه راوړی؟ لقمان ووېل: هما اطيب شئ اذا طابا، واخبث شئ اذا خبثا. يعني چې پر ژبه د خدای ﷻ ذکر جاري وي او رشتيا وايي او فضول خبره نه کوي، نو دا ژبه طيب شی ده. او که په ژبه دروا غ، بهتان، غيبت، فوج او فحش وايي نو اخبث شی ده. او داغه رنګه زړه په خلقت د اسمانو او ځمکې و مافيها کې فکر وهي قائلاً ربنا ما خلقت هذا باطلاً، او داغه رنګه په وعد و وعيد کې د خدای ﷻ فکر وهي يعني الوعد بالجنة في الايمان وعمل الصالحات. او دوږخ د کفر په صورت کې او ايتان بالمعاصي په صورت کې، نو دا سې زړه اطيب شی دی، او که يې په زړه کې حب الدنيا وحب المعاصي وي نو دا زړه اخبث شی دی.

## اَنِ اشْكُرْ لِلّٰهِ

الظاهر ان تقدير الكلام وقلنا له ان اشكر لله على ما اعطاک من الحكمة اذ اتاک الله اياها وانت نائم غافل عنها جاهل بها، او ظاهره ده چې دا سې نعمت

عظيمه چي بلا طلب و بلا تعب بنده ته حاصله سي موجب د عظيم شکر دی.

ومن حکمة لقمان ان داؤد ؑ قال له يومًا کيف اصبحت؟ قال اصبحت بيد غيري زمامه فتفکر داؤد ؑ فيه فصعق يعنی نعره زد و بيهوش شد. ومراد لقمان قبضهٔ فضل الهی و قبضه عدل الهي يعنی اگر خداوند متعال فضل کند حالم خوب خواهد بود که معاصی من برما شمرده نه شد و اگر عدل کند که مثقال ذرهٔ شر ما بر من بشمرد حال من خراب خواهد بود. ومن حکمتها قال ضرب الوالد ولده يعنی للتأديب لکه کښت ته چي انبار څوک ورکړي، نو ښه نما او حاصل کوي. دغه زوی په وهلو د پلار صالح صالح او عبدالرحمن جوړيږي. په صحيح حديث کي راغلي دي عليه الصلوة والسلام و ويل: حقًا اقول لم يکن لقمان نبيًا ولکن کان عبدًا کثير التفکر حسن التقين احب الله فاحبه فمن عليه بالحکمة وهي اصابة الحق باللسان واصابة الفکر بالجنان (په زړه سره) واصابة الحرکة بالارکان ان تکلم تکلم بالحکمة وهذا اصابة الحق باللسان وان تفکر تفکر بالحکمة (يعني هر فکر چي به ده وو اهغه به حق وُ واصابة الحرکة بالارکان (يعني حرکات د اعضاوُ يې پر حق لار برابر وه) وان تکلم تکلم بالحکمة (او خبري چي به يې کولې د حق د لاري سره برابري وې) وقال الامام الراغب الاصفهاني رح الحکمة اصابة الحق بالعلم والفعل. فالحکمة من الله تعالى معرفة الاشياء وايجادها على غاية الاحکام، کريمه: ان الله عليم حکيم، ومن الانسان کما في قوله تعالى لقمان الحکمة معرفة الموجودات على ماهي عليه في نفس الامر وفعل الخيرات بجميع ما کلف به.

**درويش وايي:** چي حسين الهروي الکاشفي رح وايي: حق سبحانه وتعالى اورا پسنديد وحکمت بر او اضافه کرد، بمثانه که ده هزار کلمه حکمت ازو منقول است، که کلمه بعالمی ارزد آه، فانظر الی قابليته وحسن استعداده لحسن حاله مع الله، مقوله: کن لله کان الله لک.

**درويش وايي:** چي روح المعاني په خپل تفسير کي بطريقهٔ مشت نمونه از خروار از نصائح لقمان حکيم به پسر خود بسياری از مقالات ونصائح او اورده که ميدان تنگ تفسير ايوبی گنجائش آن ندارد ..... بيت:

تا طبع شريفت نه پذيرد ملالتی ... آن به که به تفسير قرآن باز بگرديم

وَمَنْ يَشْكُرْ فَإِنَّمَا يَشْكُرُ لِنَفْسِهِ

(ومن يشكر) ای لله (فانما يشكر لنفسه) ای لنفع نفسه، ولي چي فائده د شکر د خدای ﷻ وه ده ته راجع دی. مقوله: الشکر قید للموجود وصید للمفقود. کریمه: لئن شکرتم لازیدنکم. والشکر تقرب العبد الی الرب المعبود وثواب دار الخلود.

وَمَنْ كَفَرَ فَإِنَّ اللَّهَ غَنِيٌّ حَمِيدٌ ﴿۱۲﴾

(ومن کفر) ای نعمت الله. غني حميد يعني غنی عن شکره لایحتاج الی شکره او خدای بل الله ﷻ حقیق بالحمد وان لم يحمده احد بلسان المقال فانه ؒ يحمده جميع مخلوقاته بلسان الحال.

وَإِذْ قَالَ لُقْمَانُ لِابْنِهِ وَهُوَ يَعِظُهُ

**پوه سه**: چي اذ معمول دی د اذکر مقدر، يعني پياد کړه هغه وخت چي وويل لقمان و خپل زوی ته. طبري وايي چي د زوی نوم يې تاران ؤ. او بعض مؤرخين وايي چي د زوی نوم يې ماثان ؤ بالثاء المثلثة. او بعض وايي انعم ؤ. او بعض وايي اشکم ؤ کلاهما علی وزن افعل. او بعض وايي چي مِشکم بدل الهمزة.

"وهو يعظه" جملة حالية من لقمان.

**پوه سه**: چي وعظ په قول د راغب ؒ خبر مقترن بتخويف. او خليل ؒ وايي چي وعظ پند ورکول دي چاته په خير سره چي پر زړه يې رقت او تاثير راولي.

يَا بُنَيَّ لَا تُشْرِكْ بِاللَّهِ

"يابنی" تصغير د اشفاق دی نه د تحقير، قال الشاعر:

واذا ما حب شيئ توليت به ........ احرف التصغير من شدة الوجد

وقال آخر:

ما قلت حبيبي[1] من التحقير ...... بل يعذب اسم الشيئ بالتصغير

"لاتشرک بالله" ته شرک مه کوه په خدای ؒ سره يعني خدای ﷻ ته شريک مه وايه لا في ذاته ولا في صفاته ولا في افعاله. په بعض رواياتو کي راغلي دي چي د لقمان

[1] بضم الحاء وفتح الحاء على لفظ التصغير

زوی کافر ؤ، نو همېشه به لقمان نصيحت ورته کاوه حتی اسلم، وعلی تقدير کون ابنه غير مشرک. المراد بالنهي الدوام علی عدم الاشراک فيما بقي من الاوقات.

## إِنَّ الشِّرْكَ لَظُلْمٌ عَظِيمٌ ﴿١٣﴾

په تحقيق شرک لوی ظلم دی، دا علت دی د نهي عن الشرک. وتحقيق ذالک ان الظلم هو وضع الشيئ في غير موضعه، او دا ښکاره خبره ده چي معبوديت چي خاصه مختصه د خدای ﷻ ده په بتانو کي ايښول لوی ظلم دی فافهم... بيت:

الحمد لله لا شريک له........ ومن اباها فنفسه ظلما

هر که در دريا وحدت غرقه باشد جان او
جوهر فرد حقيقت يافت از جانان او

## وَوَصَّيْنَا الْإِنسَانَ بِوَالِدَيْهِ

امر کړی دی موږ هر انسان ته چي د مور او پلار سره احسان کوئ (فاللام للجنس او الاستغراق لان ما لهما واحد کما ثبت في محله) او شکر يې وا ياست او اطاعت يې کوئ (يعني في ماسوی الشرک والمعاصي لانه لا طاعة للمخلوق في معصية الخالق.

**پوه سه**: چي دا جمله معترضه ده په قصه کي د لقمان.

## حَمَلَتْهُ أُمُّهُ

دی په حمل کي وړی دی مور.

**فائده**: دا جمله معترضه په معترضه کي ده تاکيد د وصيت په حق کي د مور. وفي الحديث المتفق عليه عن ابی هريرة ؓ ده وويل ده وويل چي يو سړي وويل و آنحضرت ﷺ ته يا رسول الله څوک ډېر حقدار دی په ښه صحبت چي زه يې ورسره وکړم؟ قال ﷺ امک قال الرجل ثم من؟ قال امک ثم امک ثم اباک.

**فائده**: د دې حديث له نکته نګاه څخه معلومه سوه چي د مور درې حقه د حسن صحبت دي او د پلار يو، دليل يې دا دی چي مور اولاً زوی نهه (۹) مياشتي علی الاغلب په خپله خېټه کي ساتلی دی چي ډېر مشقت و پر مور، وروسته په وخت کي د زېږېدلو او په جلاوالي کي د حمل پر دې ډېر تکليف تېرېږي، بيا وروسته د رضاع په

وخت کي د عيال او دده کالي او مرداري وروپول او د شپې او ورځې دده خدمت کول. بلکې وروسته تر فطام هم تر ډېري زمانې پورې کما هو من اجلى البديهيات.

وَهْنًا عَلٰى وَهْنٍ وَّفِصٰلُهٗ فِىْ عَامَيْنِ

**پوهه:** چي وهن ضعف ته وايي مصدر دی ای ذات وهن ای وهنا کائنًا علی وهن. ولي چي څونه حمل د دوی په رحم کي لويږي د دې ضعف ډېرېږي الى ان تضع حملها.

**فائده:** ښځه په خلق يعني په بدن کي او په خُلق بضم الخاء يعني په اخلاقو کي ضعيفه ده لانه عليه الصلوة و السلام سماهن ناقصات عقل و دين.

"وفصاله في عامين" او له شيدو څخه د پرېکولو په دوه کال کي کېږي.

**پوهه:** چي دا بل حق دی د خدمت د مور پر ولد باندي.

**درويش وايي:** چي مسئله د رضاع په بسط سره په فقه کي مذکوره ده على الاختلاف بين ائمة المذاهب.

**درويش وايي:** چي په مرور د زمان اوس اوضاع د عيال او د مور او پلار بالعکس روانه ده.... بيت:

دختران را همه جنگ است با مادر ..... پسران را همه بدخواه پدر مى بينم

**مسئله:** علماء وايي چي د مور خدمت او شفقت پر اولاد لازم دی او د پلار احترام او عزت پر اولاد لازم دی والفرق بينهما ظاهر فتدبر.

تاريخ قديم د الحسن البصري رحمه الله په احوالو کي وايي چي دی سره د علميت خداداده او د طريقت د لاري د پوره شهرت خاوند ؤ لکن دده پلار وختي وفات سوی ؤ او موريې ژوندی وه، دی چي به د ماخستن د لمانځه څخه راغلی په سرای کي د مور خونه يې په مخ کي وه، نو اول به يې د مور احوال پرسي وکړه او يو ګړی به يې مجلس ورسره وکړی، اخير به يې مور ورته وويل چي زه بيد يږم ولاړه سه خپل عيال ته، نو ده به ورته وويل چي راکه چي زه دې پښې مچ کړم، نو د مور پښې به يې مچ کړې او د خپل عيال خواته به ولاړی، دده په دې کي مقصد دا ؤ چي که زه بې پرسه او بې پرسانه د مور د عيال و خواته ولاړ سم نبايد چي د دې به ګله او خيره په زړه کي پيدا سي چي دا سې بې پرواه تر ما تېر سو، خير دده خو دا عادت همېشه ؤ، يوه شپه په سبب د يو شغل دی ماخستن په مسجد کي ځنډېدلی ؤ، کور ته چي راغلی موريې

بیده سوې وه، نو حیران سو چي کداوس زه د مور پښې مچ کړم له خوبه به ووځي او که د عیال وخوا ته تېرېږم زما دائمي احترام د مور به پاته سي، نو بالآخرېې کرار داسي وکړه چي بېره یې د مور د پښو په خاوره پوري مښل چي مور یې نسوه ویښه کورته ولاړی، او دده دا عادت ؤ چي د سهار تر لمانځه وروسته د اشراق د لمانځه تر وخته دی او دده مریدان په ذکر او وظیفه مشغول وه، د اشراق دوه رکعته لمونځ چي به یې وکړی، نو پر مریدانو به یې مخ راوړه چي د شپې چا خوب لیدلی دی، که به چا خوب لیدلی ؤ دده هغه د خوب تعبیر بیان کړی وبالجملة همېشه دده دا معمول ؤ، نو په دغه شپه چي دده د مور د پښو په خاوره پوري بېره مښلې وه خوب ولیدی، د سهار تر لمانځه وروسته چي دده د مریدانو د خوب لیدلو بازخواست وکړی حسب المعمول یو مرید وویل چي ماته د شپې په خوب لیدلې چي د ږیرې تول وبښتان دي د ملغلرو ډک وه، حسن البصري رح وویل چي دا خوب لیدل د برایي شپې زما د خدمت او احترام د مور یوه واقعه ده، نو حال یې پوره و مریدانو ته بیان کړی او دا یې زیاته کړه چي زه ډېر خوشبخت یم چي د مور د پښو خاوره مي په دربار کي د باري تعالی په ملغلرو منظور سوه، انتهی قصة الحسن رح.

**درویش وایي:** چي ما د مور د وضع الحمل تکلیف بیان کړی، یو ستر عالم په کتاب کي خپل ودې تکلیف ته په وخت کي د وضع الحمل د مور تشبیهًا اشاره کړې ده او داسي وایي ...... بیت:

رنجی کشیدم مدتی چون رنجهائی درد زه
تا من برائیدم چنین تحفهٔ نصائح نا بور

ترجمه: رنځ او تکلیف مي یووړی څه موده لکه تکلیفونه د درد د زه (یعني وضع الحمل لنګوالي ترڅو چي ما وزېږول یعني تصنیف مي کړه داسي تحفه نصائح نامور یعني نامداره ده.

**بوه سه:** چي تحفه نصائح نوم د کتاب فارسي مشهور دی په بیتو سره چي په هغه کي تول له عقائد او عملیات او نوري فوائد تر پایه پوري مصنف په فارسي شعرو بیان کړی دی، او د تعجب وړ خبره داده چي قافیه د تول له کتاب د بیتو پر را، مهمله ده.

**درویش وایي:** چي زما د تعلم اول په وخت کي ملایانو په درس وایه تحفة النصائح

چي علاوه تر بيان د امور دينيه ؤ د فارسي ژبې د زدکړي لپاره لو سرمايه وه.

**فائده علميه:** پوه سه! چي په دې بيت کي د تحفه نصائح استعاره تمثيليه ده وهي في اصطلاح علم البيان ان لايكون في شيئ من مفردات المشبه والمشبه به مجاز بل يشبه الهيئة المنتزعة من المشبه بالهيئة المنتزعة من المشبه به فالتشبيه بين الهيئتين كما في قولهم للشخص المتفكر في امر من الامور، رئيتك تقدم رجلاً وتؤخر اخرىٰ فافهم.

**أَنِ اشْكُرْ لِي وَلِوَالِدَيْكَ إِلَيَّ الْمَصِيرُ ﴿١٤﴾**

دا چي زما شکر ووايه په طاعت او عبادت کولو سره او په ژبه هم (مثلاً الحمد لله رب العالمين على ما هدانا الى الاسلام، وجعلنا من امة محمد ﷺ (ان مفسره دی تفسير دی د وصينا آه) او د مور او پلار شکر ووايه په خدمت او حسن عشرت او امتثال امرهما موافقًا للاسلام، سفيان بن عيينة وايي په تفسير کي ددې من صلى الصلوات الخمس (يعني بجميع اركانها و واجباتها و سننها وغير ذالک) فقد شکر الله ومن دعى لوالديه في ادبار الصلوة الخمس مثلاً اللهم اغفر لوالدي كما ربياني صغيراً فقد شكر لوالديه "الي المصير" ماته ستاسي مرجع ده په ورځ د قيامت.

**پوه سه:** چي جمله هم وعد ده او هم وعيد يعني اجازيک على الشکر بالجنة ونعيمها وکفرک بالنار ...

**فائده:** حق د استاذ او د معلم الدين فوق دی تر حق د والدينو، تاريخ وايي چي د اسکند څخه چا پوښتنه وکړه مالک تعظيم مؤدبک يعني استاذک اشد من تعظيمک لابيک؟ ده ورته وويل: ان ابى حطني من السماء الى الارض، ومعلمي رفعني من الارض الى السماء، قال الحافظ الشيرازي رح:

من فلک بودم وفردوس برين جايم بود
يعني روحی آدم آورد درين خراب آبادم

**حکايت:** بزرجمهر ته چا وويل چي څه سبب دی چي ته تعظيم د معلم ډېر کوې تر تعظيم د پلار؟ ده ورته وويل لان والدي سبب لحيواتي الفانية (يعني چي مده د عمر ده) ومعلمي سبب حياتي الباقية.

**درويش وايي:** چي ددې زماني شاګردان د استاذانو په ازار کي تر اميانو ډېره

برخه اخلي، مثلاً که مقتدی د مسجد چي دی يعني شاګرد يې امام ؤ هغه مقتدی د شاګرد د استاذ په عداوت کي ؤ، شاګرد هم د خپل استاذ په عداوت کي لپاره د مراعات د مقتدي چي ته ده تنخوا يا زکوة مثلاً ورکوي سرګرم کوشان وي.

**مسئله**: په حديث شريف کي راغلي دي چي که د چا مور او پلار مړه وه په داسي حال کي چي د هغه سړي څخه ازار وه او دی ژوندی ؤ فليستغفر لهما ويتصدق لهما (يعني طلب د بخښي دي کوي د مور او پلار لپاره او خيرات دي پسي کوي) حتی يکتب بارًا لوالديه، ومن زار قبر ابويه او احدهما في کل جمعة او احدهما کان بارًا (يعني اذا کان يمکن للولد زيارتهما في کل جمعة)

وَإِن جَاهَدَاكَ عَلَىٰٓ أَن تُشْرِكَ بِى مَا لَيْسَ لَكَ بِهِۦ عِلْمٌ فَلَا تُطِعْهُمَا

او که کوشش وکړی او طلب وکړی له تا څخه مور او پلار تا چي ته شريک کړه ايها المؤمن يعني په عبادت کي هغه شی چي عبارت له بتانو څخه دی وغير ذالک من الملائکة والشمس والقمر چي تا لره نشته ای مؤمنه په شرک د هغو د خدای ﷻ سره علم، نو په دې باره کي د مور او پلار په خوله مه کوه، ولي حق د خدای ﷻ غالب دی پر حق د هر چا، کما ورد في الحديث قال رسول الله ﷺ لاطاعة للمخلوق في معصية الخالق، رواه احمد والحاکم في المستدرک عن عمران والحکم بن عمرو الغفاري او په بخاري او مسلم او په سنن ابی داؤد والنسائي عن علي رضی نحوه.

والحاصل: ته ای مؤمنه څرنګه به د مور او پلار په خوله کوې په هغه شي کي يعني الشرک چي تا ته يې بطلان په دلائلو قاطعه وو سره ثابت دی.

وَصَاحِبْهُمَا فِى ٱلدُّنْيَا مَعْرُوفًا

او ته ای مؤمنه ژوند کوه او ګذاره کوه د دغه مور او پلار سره چي دوی تا ته دعوت د شرک درکوي په دنيا کي هغه چي معروف په شرع کي وي يعني شرع او عقل سليم يې قبلوي.

**مسئله**: له دې آيت څخه دا معلومه سوه چي پر مؤمن واجب ده نفقه د مور او پلار چي فقيران وي که څه هم کافران وي، وجاء في حديث اسماء بنت ابی بکر رضی چي زما مور مدينې ته راغله او دا مشرکه وه په هغه زمانه کي چي د

مکې او مدینې تر منځ تګ او راتګ په صلح کې د حدیبیې په منځ کې د علیه الصلوة والسلام او د قریشو سوی ؤ، نو اسماء ﷺ وایي چې ما د علیه الصلوة والسلام ځخه پوښتنه وکړه چې زما مور ماته راغلې ده وهي راغبة عن الاسلام. آیا صله رحمي ورسره وکړم یعني د طعام او خرڅ د لارې په باره کې؟ نو علیه الصلوة والسلام راته وویل هو! ورسره وه یې کړه، بخاري مسلم.

**مسئله**: که مور او پلار وه زوی مؤمن ته وویل چې موږ تر بت خانې ورسوه په خوله دې نه کوي، ولي چې معصیت او شرک ته ځي، او که پلار او مور بت خانې ته پر خپلو پښو تللي وه او زوی ته یې وویل چې موږ تر کوره پورې بوزه، پر زوی واجب دی ددوی بېول، فتدبر في حق الوالدین المؤمنین ایها المؤمن.

**درویش وایي**: چې دا یو څو بیته په حق کې د مور او پلار او په زیات والي کې د حق د مور کمامر في الحدیث النبوي ﷺ امک ثم امک ثم امک ثم اباک. دا بیتونه له بعضې عربو ځخه مروي دي چې مور یې حج ته په شا راوستلې وه او دا بیتونه یې ویله:

احمل امي وهي الحمالة..... ترضعنى الدرة والعلالة

ولله در القائل في حق الام

لامــک الحق لـو علمت کبیر...... کثیرک یا هذا لدیه یسیر

فکم لیلة باتت بثقلک مشتکی...... لـهـا من جراها انة وزفیر

دا خو په وخت کې د حمل د مور حال ؤ

وفي الوضع لو تدری علیها مشقة..... فمن غصص لها الفواد یطیر

دا خو حال د لنګېدلو د مور ؤ

وکم غسلت عنک الاذی بیمنها ..... وماحجرها الا لدیک سریر

**وَاتَّبِعْ سَبِيلَ مَنْ أَنَابَ إِلَيَّ**

او ته متابعت کوه یا مؤمن د لارې د هغه چا چې رجوع یې ما ته وي، یعني اطاعني وهو النبي ﷺ واصحابه ؓ، ابن عباس ؓ وایي: چې مراد له اناب ځخه ابوبکر ؓ دی وذالک حین اسلم یعني ابوبکر ؓ راغلـه ده تـه عثمان بن عفان وطلحة والزبیر وسعد بن ابی وقاص وعبدالرحمن بن عوف ؓ دوی ابوبکر ؓ ته وویل قد

صدقت هذا الرجل يعنون النبي ﷺ وآمنت به؟ قال نعم هو صادق يعني في دعوى الرسالة فآمنوا به، نو تاسي هم ايمان راوړئ، نو هغو د ابوبکر رض متابعت وکړی، نو ابوبکر رض دوی رسول الله ﷺ ته وروستل او هغو ټولو ايمان راوړی.

**درويش وايي:** چي دغه کسان صحابه کرام ﷺ متقدمين د اسلام دي.

**مسئله شرعيه:** نه دی روا اطاعت د والدينو چي زوی امر کړي په پرېښولو د يو فرضي کار او يا په کولو د مکروه تحريمي کار، ولي چي زوی د مور او پلار په قول عمل ونه کړي، خو امتثال د امر د خدای ﷻ يې وکړی، او که يې په خوله وکړی امتثال د امر د غير الله يې وکړی وهو شرک في الحقيقة، وقد قال رسول الله ﷺ لاطاعة للمخلوق في معصية الخالق.

**مسئله:** د مور او پلار اطاعت واجب دی پر زوی که يې په امر مباح سره امر کړی يعني چي نه ممنوع شرعًا وُ او نه عقلاً.

**مسئله:** که مور يا پلار زوی امر کړی چي ډېر ذکر د خدای ﷻ مه کوه مثلاً، يا ډېري نفلي روژې مه نسه، يا په تبليغي جماعت کي مه داخلېږه، او يا ډېر حرص د دنيا مه کوه، ونحو ذالک، ففيه اختلاف، بعض علماء وايي چي امتثال يې واجب دی، بعض علماء وايي چي نه دی واجب، امام مظهري رح وايي چي ظاهره داده چي نه دی واجب، اول دليل يې دادی چي خدای ﷻ په دې آيت کي "واتبع سبيل من اناب" امر کړی دی په اتباع د سبيل د من اناب ولاشک ان اکثار النوافل لکه ډېر ذکر کول يا ډېري روژې نيول يا ترک د حرص د دنيا سبيل المنيبين الى الله ده، الا ترى چي صحابه کرامو ﷺ ترکوا الاوطان وهاجروا الى الحبشة والى المدينة وبذلوا انفسهم واموالهم في سبيل الله على خلاف مرضات ابائهم وامهاتهم، او خدای ﷻ په دې باره کي دا آيت نازل کړی دی "قُلْ إِن كَانَ آبَاؤُكُمْ وَأَبْنَاؤُكُمْ وَإِخْوَانُكُمْ وَأَزْوَاجُكُمْ وَعَشِيرَتُكُمْ وَأَمْوَالٌ اقْتَرَفْتُمُوهَا وَتِجَارَةٌ تَخْشَوْنَ كَسَادَهَا وَمَسَاكِنُ تَرْضَوْنَهَا أَحَبَّ إِلَيْكُم مِّنَ اللَّهِ وَرَسُولِهِ وَجِهَادٍ فِي سَبِيلِهِ فَتَرَبَّصُوا حَتَّىٰ يَأْتِيَ اللَّهُ بِأَمْرِهِ ۗ وَاللَّهُ لَا يَهْدِي الْقَوْمَ الْفَاسِقِينَ ۝

نو څرنګه به روا وي پرېښول د مجاهدې في سبيل الله مع النفس والشيطان التي سماه رسول اللهﷺ الجهاد الاكبر، لپاره د ارضاء د مور او پلار، دوهم دليل دادی چي حاکم د عامر بن عبدالله بن الزبير رض څخه روايت کړی دی عن ابيه چي ابو قحافه چي د ابوبکر رض پلار ؤ، څه وخت چي ابوبکر رض بلال حبشي رض ازاد کړی بلال او عامر بن فهيره وام عميس وزبيرة او نور ازاد کړه، ابو قحافه ده ابوبکر رض ته وويل چي زه تا وينم چي ته ضعاف افراد ازادوې، نو کاشکي تا په ځای کي د ضعاف مريانو او مينځيانو اقویٰ مريان ازاد کړي وای چي ستا په ښه به درغلي وای، او پر دښمن به ستا کومکيان وای، نو ابوبکر رض ورته وويل يا ابت انما اريد ما عندالله فنزلت وسيجنبها الاتقى الذی يؤتی ماله يتزکی، يعني في عتق هؤلاء المذکورين من العبيد والاماء. او هجرت وکړی ابوبکر رض مع رسول اللهﷺ الی المدينة واخذ معه اربعة آلاف درهم ولم يترک لاهله شيئًا على خلاف مرضات ابيه ابی قحافة، او دا قصه په تفصيل سره په قصه کي د هجرت د عليه الصلوة والسلام مع ابی بکر رض الی المدينة في تفسير سورة التوبة بيان کړل سوې ده فراجع.

ثُمَّ إِلَيَّ مَرْجِعُكُمْ فَأُنَبِّئُكُمْ بِمَا كُنْتُمْ تَعْمَلُونَ ﴿١٥﴾

وروسته يعني په ورځ د قيامت رجوع ده ستاسي (نو مرجع مصدر ميمي دی او ضمير د جمع راجع دی وزوی، مور او پلار ته) نو زه به تاسي خبر کړم په هغو عملو چي تاسي په دنيا کي کول يعني جزاء به درکړم، زوی تا ته پر اسلام او مور او پلار ته پر کفر.

**فائده:** ترجمه د ما کنتم تعلمون چي فقير وکړه پر تقدير ددې وه چي ما موصوله سي وحينئذ فالعائد الى الموصول محذوف ای تعملونه او باعمالکم که مصدريه سي.

**پوهنه:** چي دا دوه ايته معترض دي په بيان کي د وصيت د لقمان وزوی ته.

تتمه حقوق الوالدين: په صحيح حديث کي راغلي دي چي يو سړی و عليه الصلوة والسلام ته راغلی او داسي يې ورته وويل چي يا رسول اللهﷺ زما مور نهايته سپين سرې او ضعيفه ده چي زه يې په خوله کي ډوډۍ ورکم او په خوله کي يې اوبه ورکوم او زه اودس ورتازه کوم او هر ځای ته يې په شا وړم، نو آيا ددې حق پر ځای دی او که څرنګه؟ عليه الصلوة والسلام ورته وويل لا ولا واحدًا من مأة.

هغه سرې ورته وویل: لم یا رسول اللهﷺ؟ علیه الصلوة والسلام ورته وویل: دې چې ستا خدمت کاوه هغ په نهایت وخت کي د ضعف ستاؤ ددې اراده وه چې خدای تا ورلوی کړي یعني ستا د ژوند غم یې کاوه او ته چې یې خدمت کوې ددې د مرګ په طلب کي یې، لکن بیا هم احسنت والله یثیبک علی القلیل کثیرًا، وفي الحدیث الصحیح طوبٰی لمن بر بوالدیه، وویل لمن عقمهما او د عطاء بن یسار رض څخه روایت دی چې یو قوم چې په سفر روان وه فنزلوا بریة (په یوه صحراء کي یې واړول چې تولهٔ شپه یې د خره نارې اورېدلې چې دوی یې له خوبه هم وه ایستل چې سهار سو دوی شا وخوا وکتل یوه خېمه د بزې د وجغونه څخه جوړه یې ولیدل چې په خېمه کي یوه سپین سرې ښځه ناسته وه، نو دوی ورته وویل چې موږ ستا د چاپېړې له خوا څخه د خره نارې اورېدلې تر سهاره پورې، او ستا سره خر هم نسته؟ هغې ورته وویل ذالک ابني کان یقول لي یا حمارة فدعوت له ان یصیر الله حمارًا، نو دی چې مړ سو په دا نژدې مقبرې کي مو دفن کړی، نو دا غه دی چې تر سهاره د خره نارې وهي، له وهب بن منبه څخه روایت دی چې نوح علیه السلام له کښتۍ څخه راووتی له ډېرې بد خوابۍ له سببه څخه بیده سو، نو د خوب په حالت کي یې عورت ښکاره سوی ؤ، او دده زوی حام ناست ؤ پر خندل یې او عورت یې نه کړی وریټ، فسمع سام و یافث نو راغله د نوح علیه السلام پر عورت یې یوه کپړه جامه ورواچول او عورت یې وریټ کړی، نوح علیه السلام چې ددې ماجرا څخه خبر سو، نو حام زوی ت-یې په دغو الفاظو ښېرا وکړه غیر الله لونک فصار لونه اسود فالسودان من نسل حام فصار السواد والذل لاولاده الی یوم القیامة... سعدي رح:

جوانی سر از رای ما درتباقت دل دردمندش بآزر بتافت

چو بیچارشد پیشش آورد مهد ... که ای هست مهر و فراموش عهد
نه گریان ودرمانده بودی وخرد ... که شهباز دستش خوابم نبرد
نه درمهد نیروی حالت نبود ... مگس راندن از خود مجالت نبود
توآنی که ازیک مگس رنجهٔ ... که امروز سالار سرپنجهٔ
بحالی شوی باز درقفر گور ... که نتوانی از خویشتن دفع مور

يٰبُنَيَّ إِنَّهَآ إِن تَكُ مِثْقَالَ حَبَّةٍ مِّنْ خَرْدَلٍ

(يا بني) على صيغة التصغير (انها) اى الخصلة من الاسائة او الاحسان، وقال قتادة الضمير راجع الى الخطيئة وذالك لان ابن لقمان قال لابيه يا ابت ان عملت خطيئة حيث لايراني احد كيف يعلمها الله فقال لقمان.

**فائده**: مرجع الضمير مذكور حكمًا في قول ابنه السائل فافهم هداک الله. تفسير معترض آخر لقوله تعالى: فانبئكم بما كنتم تعملون، اخرج ابو يعلى والطبرانى وابن مردوية وابن عساكر عن ابى عثمان النهدي ان سعد بن ابى وقاص قال: چي دا آيت وان جاهداک الآية په ما کي نازل سوى دى، دى وايي چي زه د مور ډېر خدمت ګار وم. نو چي اسلام مي راوړى مور مي راته وويل: يا سعد ما هذا الذى اراک قد احدثت؟ (دا څه نوى کار تا وکړى تعنى الدخول في الاسلام) نو يا به ته دا دين پرېږدې او يا زه نه خواره خورم نه اوبه څيښم حتى اموت نو خلک به تاته پېغور درکوي او درته وايي به يا قاتل امه، په اردو کي وايي (جھوک ہڑتال کرنا) په پښتو يې (د نه خوړلو احتساب کول) بولي، نو سعد وايي ما ورته وويل: موري دا کار مه کوه ولي چي زه دا دين نه پرېږدم لشيئ ابدًا، نو مور مي يوه شبانه روز خورک نه وکړى او اوبه يې ونه څيښلې نو ډېره ضعيفه سوه، نو دې بل شبانه روز هم خوراک او څيښاک ونه کړى فقد اشتد جهدها (يعني ضعف يې نهايت ته ورسېدى) سعد وايي ما چي د مور دا حالت ودليدى نو مي په غوږ کي ورته وويل: يا امه ته پوه سه چي زه د اسلام دين نه پرېږدم او زما قسم په خداى ﷻ دى چي که ته سل روحه ولرې او يو يو روح در څخه خېژي ما ترکت ديني فان شئت کلي وان شئت لا تأکلي، مور چي زما دا خبره واورېدل په خوراک يې پيل وکړى، فنزلت هذه الآية، انتهى، والله اعلم بالصواب.

**درويش وايي**: چي اوس بيرته د تفسير پر خوا.

«إِن تَكُ مِثْقَالَ حَبَّةٍ مِّنْ خَرْدَلٍ» که وي دا خصلت په کوچنيوالي کي.

**پوه سه**: چي اصل د تک تکون ؤ چونکه حرکت د نون په ان شرطيه حذف سو نو التقاء د ساکنين راغله په واو او نون کي، بيا يې نون هم حذف کړى تشبيهًا بحرف

العلة في امتداد الصوت او بالواو في الغنة فصارتک، او بعض مفسرین وایي چي نون يې حذف کړی تخفيفًا لکثرة الاستعمال، ولي چي لم يصن چي اصل يې يصون ؤ نون نه دی حذف سوی، والمثقال ههنا بمعنی الوزن، والحبة بالفارسية دانه والخردل معناه اسپند بالفارسيه، او سپلنی په پښتو.

**بوه سه:** چي اسم د تک مستتر دی رجع دی و خصلت ته چي دا نها ضمير هم ورته راجع ؤ او مثقال په نصب سره يې خبر دی، او نافع رح مثقال په رفع سره وایي چي مثقال يې اسم سي او تک تامة دی ای توجد.

**بوښتنه:** مثقال خو مذکر دی، نو تک يې مؤنث ولي راوړی؟

**خواب:** تانيث په اعتبار د تانيث د مضاف اليه د مثقال يعني حبة لاتحادهما لکن ضمير د انها پر دغه قرائت ضمير القصة دی.

فَتَكُنۡ فِى صَخۡرَةٍ اَوۡ فِى السَّمٰوٰتِ اَوۡ فِى الۡاَرۡضِ

نو وي دغه حبة په منځ کي د يوې لوی ډبري چي من کل الوجوه خفي او پټ ځای دی، يا په اعلی ځای کي د اسمانو چي د چا دست رست نه ورته کيږي، او يا په ډير کښته ځای کي لکه منځ د ځمکي، مولی جامي او صاحب البحر رح وایي چي صخره اصلب المرکبات واشدها منعًا لاستخراج ما فيها چي په پښتو يې ګاره بولي، چي ګاهي دومره سخته وي چي د اوس زماني چاه عميق او په بل نامه برمه ورته وایي چي دغه مخ ته راسي نو آلات د بري چي د مشين او بجلۍ په زور چليږي له ماتولو څخه يې عاجزه سي کما دل عليه التجربة في هذا الزمان، روح البيان وایي چي مراد له صخرة څخه مطلق صخرة اية صخرة کانت کمايدل عليه ايرادها بلفظ النکرة.

**درويش وايي:** چي مظهري او روح البيان له ابن عباس رض څخه نقل کړی دی، کما اخرج ابن مردوية عن ابن عباس رض: چي ځمکه د ماهي پر شا ده او ماهی پر درياب پروت دی او درياب پر صخرة خضراء دی او صخره پر ښکر د غوايي ده او دا غوايی پر الثری ولاړ دی، ولايعلم ماتحت الثری الا الله تعالی انتهی، ابن عطيه وايي وکل ذالک ضعيف لايثبت سنده انما معنی الکلام المبالغة في التفهيم ای قدرته ﷻ تنال مايکون في تضاعيف صخرة ومايکون في السماء ومايکون في الارض انتهی، روح المعاني وايي الاقوی عندی وضع هذه الاخبار ونحوها انتهی قول روح المعاني، او

روح المعاني زياته کړې ده چې ظاهره داده چې مځکه په غير کې د ابو ده يعني الارض المکشوف لسکونة البشر والحيوانات والنباتات، او ليست الماء الا في جوف بالهواء وهکذا ينتهي امر الهواء الى سماء الدنيا ثم وثم الى عرش الرحمن والکل في کف قدرة اللهﷻ انتهى مع زيادة توضيح کلامه المجمل والله اعلم بالصواب وعنده ام الکتاب وعنده علم ما انزل في الکتاب العزيز والقرآن الکريم.

**درويش وايي:** چې دا ؤ بيان هذا المقام الوعر حسب طاقة بالنقل عن التفاسير المعتمدة.

يَأْتِ بِهَا اللَّهُ ۚ إِنَّ اللَّهَ لَطِيفٌ خَبِيرٌ ﴿١٦﴾

هغه خصلت به حاضرېږي يعني په ورځ د قيامت او حساب پر کړه کېږي، بېشکه الله تعالى باريک بين دی چې رسېږي يې علم و هر خفي او دقيق ته، په حقيقت د هر شي خبر دی، دا هم قول د لقمان دی و خپل زوی ته، او قتادهؒ وايي لطيف باستخراجها خبير بمسترها.

**درويش وايي:** چې وروسته تر دې چې لقمان خپل زوی امر کړی په توحيد سره الذي هو اول مايجب على المکلف في ضمن النهي او ده ته تنبيه وکړه پر کمال قدرت د خدایﷻ او پر کمال د علم د عزوجل امره بالصلوة التي هي اکمل العبادة لپاره د تکميل من حيث العمل بعد تکميله من حيث الاعتقاد فقال.

يَا بُنَيَّ أَقِمِ الصَّلَاةَ وَأْمُرْ بِالْمَعْرُوفِ وَانْهَ عَنِ الْمُنكَرِ

او وه يې ويل يا بني اذا جاء وقت الصلوة فلا تؤخرها لشيئ واسترح منها فانها دين (پور دی د پوره بايد سړی ځان ترې خلاص کړي) وصل في جماعة، او امر کوه خلکو ته په معروف في الشرع ونهي کوه د منکر في الشرع کې لپاره د تکميل د غير.

**درويش وايي:** چې ظاهره داده چې مراد له معروف او منکره معنيين معروفين دي مطلقًا. او هغه روايت چې ابن ابی حاتم له ابن جبير څخه کړی دی چې له معروف څخه مراد توحيد دی، او له منکر څخه مراد شرک دی فذکر افضل انواع الامر بالمعروف والنهی والمنکر، ومع ذالک التعميم اولى.

وَاصْبِرْ عَلٰى مَآ اَصَابَكَ

او ته صبر کوه پر هغو شدائدو چي تاته رسيږي خصوصًا فيما امرت به من اقامة الصلوة والامر بالمعروف والنهي عن المنكر.

**پوهسه:** چي احتياج د امر بالمعروف والنهي عن المنكر الى الصبر ظاهر كما لايخفٰى.

اِنَّ ذٰلِكَ مِنْ عَزْمِ الْاُمُوْرِ ﴿۱۷﴾

په تحقيق دغه صبر يا جميع ما امر لقمان ابنه بذالک هر آئينه له معزومات څخه د امور د خدای ﷻ دی يعني حکم ايجاب کړی په دغو سره نو عزم مصدر دی چي معنى يې عقد القلب ده په معنى د مفعول دی.

**درويش وايي:** چي روح البيان په دې ځای کي يوه اوږده قصه د لقمان او د ده د زوی په فارسي ژبه راوړې ده والله اعلم بصحتها. نو ما نقل نه کړه لطولها ولعدم الاعتماد على صحتها، او فقير چي هر څه تلاش وکړی نه يې په عربي او نه يې په فارسي تفاسيرو کي پيدا کړه، والعذر عند کرام الناس مقبول.

وَلَا تُصَعِّرْ خَدَّكَ لِلنَّاسِ

ته روی ګرداني مه کوه، والمعنى لاتمل عنهم (نو کلمه د لام په معنى د عن ده) يعني د خلګو سره چي خبري کوې مخ مه ځني پېچه، وهذا کناية عن التکبر کما قال ابن عباس رضي الله عنه يقول لقمان لابنه لاتتكبر فتحقر الناس وتعرض عنهم بوجهك اذا کلموک.

**درويش وايي:** چي دا عادت د متکبرانو خلګو دی چي مخ په مخ د سړي سره خبري نه کوي بلکې بارخو ورګرځوي او مخ بلي خواته واړوي.

وَلَا تَمْشِ فِى الْاَرْضِ مَرَحًا ۭ اِنَّ اللّٰهَ لَا يُحِبُّ كُلَّ مُخْتَالٍ فَخُوْرٍ ﴿۱۸﴾

او ته تګ مه کوه په مځکه کي په خيال او فرح، په تحقيق د خدای ج خوښ نه دی هر سړی چي په خيال روان وي په تګ کي او فخر کوي على الناس.

**پوهسه:** چي مرحًا مفعول له دی ای لاجل المرح والفخر.

**درويش وايي:** چي مظهري نقلًا عن الزمخشري صاحب الکشاف، وايي چي ان الله آه تعليل دی د ماقبل يعني ولا تصعر آه ولاتمش آه پر طريقه د لف او نشر

غير مرتب حيث قال صاحب الكشاف المختال مقابل للمشي مرحًا، والفخور تعليل ومقابل للمصعر وجهک تکبرًا انتهى بحاصله، او اختيار د لف و نشر غير مرتب لپاره د مراعات د فواصلو د آيتو دی يعني اواخر د آيتو في قوله تعالى ان ذالک لمن عزم الامور وقوله الله ان الله الآية فافهم، او روح المعاني وايي چي لف او نشر مرتب هم کېدای سي، فان الاختيال يناسب الكبر والعجب، المراد بقوله ولاتصعر آه، وكذالک الفخر يناسب المشي مرحًا آه.

**فائده:** چونکه لفظ د کل تر نفي وروسته دی نو دې ته په منطقو کي رفع د ايجاب کل يوايي لکن مقصود څندي سلب کلي دي کما هو المناسب لمقام وعظ لقمان لابنه فافهم.

**پوښتنه:** د لقمان ژبه عربي نه وه، دا فوائد او خواص چي بيان سول دا خو عربي عبارت ؤ؟

**ځواب:** د لقمان ژبه که عربي نه وه لکن دا فوائد حکايت د قرآن کريم دي عن تبليغ لقمان الحكيم.

## وَاقْصِدْ فِيْ مَشْيِكَ

او ميانه رويي کوي په تګ يعني مه ډېر کرار ځه لانه دليل الخيلاء والمتكبرين يعني که عذر نه ؤ يعني لکه د سړي چي زنګنونه درد کوي وغير ذالک چي داسي تګ ته په عربي دبيب وايي او ډېر چابک ځغله لانه مشي السفهاء او د سړي وهيبت ته تاوان دی، قال رسول الله ﷺ سرعة المشي مذهب بها المؤمن (ای هيبة وجماله وحقارته في اعيون الناس) اخرجه ابن عدي وابو نعيم في الحلية من حديث ابي هريرة رضي الله عنه.

**پوه سه:** چي د اسراع منهي عنه څخه مراد مايكون بجد فوق مشيه الطبعي واما الاسراع دون الخبب (يعني ډېلک) فمحمود يعني ښه کار دی.

**پوښتنه:** په حديث شريف کي چي روايت د يزيد بن الغنوي څخه کړی دی چي عليه الصلوة والسلام چي به پر لاري راهي سو داسي به چابک ؤ چي تر ده وروسته سړي به اوږي ښورولې چي هروله يې په عربي بولي نه سوای پسي رسېدلای، نو اسراع څرنګه منهي عنه ده؟

**ځواب**: دا طبعي تګ د علیه الصلوة والسلام ؤ داسي نه ؤ چي ځان ته یې تکلیف ورکاوه، والمنهي عنه هو الاسراع الذي معه التکلیف علی اعضاء المشيءُ بدلیل ماروی الطبراني والبیهقي عن ابی موسیٰ رض قال قال رسول اللهﷺ السکینة علیکم بالقصد في المشيءُ بجنائزکم وعن ابی مسعود رض انهم کانوا ینهون عن خبب الیهود ودبیب النصاری ولکن مشیًا.

**درویش وایي**: چي دبیب تګ په مسلمانانو کي عادت دی د زهادو ریا کارو.

**مسئله**: که امام په لمانځه کي ؤ او پر رکوع بل سړی چي راغلی لپاره د ادراک الرکعة، نو یې ورمیدان کړه رکوع یې ونیوله، ففي الفقه الشریف انه خلاف المندوب، وقد ورد النهي عن ذالک في حدیث مرفوع صحیح.

**وَاغْضُضْ مِنْ صَوْتِكَ ۚ إِنَّ أَنكَرَ الْأَصْوَاتِ لَصَوْتُ الْحَمِيرِ ﴿١٩﴾**

ته کښته کړه (صوت) آواز خپل (نو کلمه د من زائده ده لان الفعل المذکور ههنا متعد بنفسه) یعني ډېر په لوړ اواز ناري مه وهه او خبري مه کوه (کما هو عادة الاعراب واهل البادیة) په تحقیق سره اوحش او دهشت ناکه اواز د خرو دی چي اورېدونکی یې په نظر د کراهت او نفرت یې اوري، نو باید ستا اواز لکه اواز د خرو نه وي چي خلک نفرت ځندي وکړي ستا د نارو څخه لکه د خرو د اوازو څخه چي اول یې زفیر بولي او اخیر ته شهیق وایي، او دا آوازونه په دوږخ کي د دوږخیانو اوازونه دي، راویان وایي چي لقمان رح دوولس زره (۱۲۰۰۰) بابه د حکمت و زوی ته بیان کړه، چي د خلګو تول حالات په دغو حکمتو کي دده درج دي، والحکمة في غض الصوت المامور به انه اوفر للمتکلم (یعني متکلم چي په غض الصوت خبري کوي ډېري خبري کولای سي بخلاف التکلم بالصوت الشدید) والبسط لنفس السامع وفهمه (او په غض الصوت خبري فراخه کوي نفس د السامع او فهم د هغه) او صاحب البحر وایي چي "انکر" افعل دی په معنی د مفعول، لکن د مفعول په معنی ده. افعل صیغه شاذه ده.

**فائده**: اهل جاهلیت به فخر کاوه بجهارة الصوت وتمدح به کما قال قائلهم:

جهیر الکلام جهیر العطاس ...... جهیر الرواء جهیر النعم

**مسئله**: وفي الخلاصة: لایجهر الامام فوق حاجة الناس والافهو مسيءُ.

**درویش وايي:** چي افسوس دی ددې زمانې پر امامانو چي که لس کسه پسي ولاړ وي هم دی قرائت په ګویا کي وايي چي په عمومي کوټې کي سرتر پایه اورېدل کېږي.

**مسئله:** که لویه عیدګاه او یا بله لویه مجموعه وه د لمانځه چي تکبیرات د امام به نه ور رسېدل، نو نورو مؤذنانو به په پخوا زمانه کي تکبیرونه ویل لما فیه من النفع بخلاف ما اذا بلغهم صوت الامام فان التبلیغ حینئذ بدعة منکرة باتفاق الائمة الاربعة؏. وای پر حال د امامانو او خطیبانو چي قرائة القرآن في الصلوة که یې څه هم دده په اواز اوري خو بیا هم دی لمونځ او قرائت په لاوډ سپیکر کي وايي دا خلاف دی د ائمة اربعه؏ له مذهب څخه، البته وعظ او تبلیغ او اذان په ګویا کي بدعت نه دی لاعلام الغائبین والمستورات في الدور فتدبر.

**درویش وايي:** چي وروسته تر قصې د لقمان بیرته خدای ﷻ رجوع کوي و ماقبل ته من خطاب المشرکین من اهل مکة. او توبیخ ددوی پر اصرار پر کفر مع مشاهدتهم لدلائل التوحید، کما یقول الله ﷻ.

أَلَمْ تَرَوْا أَنَّ اللَّهَ سَخَّرَ لَكُم مَّا فِي السَّمَاوَاتِ وَمَا فِي الْأَرْضِ

تاسي نه ګورئ ایها المشرکون چي خدای؏ مسخره ګرځولي دي لپاره ستاسي یعني لپاره د نفع ستاسي، هغه څه چي په اسمانو کي دي من الشمس والقمر والنجوم.

**پوه سه:** چي تسخیر اماده کول د شي دي الی الغرض المختص به قهرًا کما قال الراغب؏ وفي ارشاد العقل السلیم، المراد بالتسخیر دادی چي المسخر (پر صیغه د اسم مفعول) داسي ډول پیدا کړي چي مسخر له نفع پر اخلي عام تر دې چي منقاد دده وی یتصرف فیه مایشاء ویستعمله کیف یرید کعامة ما في الارض من الاشیاء المسخرة للانسان چي انسان یې في وقت الحاجة استعمالوي من الجمادات والحیوانات والنباتات، او لایکون کذالک بل یکون مسببًا لحصول مراد الانسان من غیر ان یکون له دخل في استعماله کجمیع ما في السموات من الشمس والقمر والنجوم بل الملائکة چي په هغو سماویه شیانو سره منوط دي مصالح د عبادو ومعاشًا ومعادًا (یا د دنیا په عیش کي یا د آخرت په عیش کي)

**درویش وايي:** که منافع د بندګانو چي په سماويه اشياوُ سره خدای ﷻ منوط ګرځولي دي تفصيلاً بيان کړم، نو د ډېرو اوراقو د زيات والي سبب به وګرځي لکن مشت نمونه خروار، نو يوازي د لمر بعض خواص به بيان کړو: په لمر سره پرته له نوره څلور فصله پيدا کېږي (۱) ربيع درې مياشتي (۲) صيف درې مياشتي (۳) خريف درې مياشتي (۴) شتی درې مياشتي، چي په دې څلورو فصلو پوري منافع کثيره د عبادو مربوط دي، او د بعث بعد الموت دلائل هم پکښې موجود دي. او بارانونه چي له اسمانو څخه اوري د هغو په فائدو لوی او کوچنی ټوله پوهېږي، او رنګارنګ مېوې په دغو فصلو کي په قدرت د خدای ﷻ ښکاره کېږي، او په ستورو علاوه تر دې چي په بر او بحر کي په دوی سره اهتداء حاصلېږي، د مېوو په رنګو او خوند کي هم دوی پوره ونډه لري، او ملائکه هم بعض پر باد او باران مسلطي دي، او بعضي پر انبياوُ پر وحي راوړلو ګمارل سوي وي، او بعض ملائکه کرام کاتبين دي، او بعض لپاره د محافظت د انسان دي مابين يديه وما خلفه.

"وَمَا فِي الْأَرْضِ" او په ځمکه کي لکه معدنيا د غرو او خزاني د ځمکي حتی الذهب والفضة والزيبق والکبريت الی غير ذالک والنباتات والحيوانات چي پر دې ټولو خدای ﷻ قدرت ورکړی وانسانانو ته چي نفع پر واخلي بالذات او بالواسطة.

**درویش وايي:** ولايمکن احصاء منافع مافي الارض بطوق البشر بل هي في علم الله خالق القوی والقدر.

**وَأَسْبَغَ عَلَيْكُمْ نِعَمَهُ ظَاهِرَةً وَبَاطِنَةً**

او پوره او کامل درکړي خدای ﷻ نعمتونه خپل ښکاره او پټ.

**پوهسه:** چي ظاهرة او پرده معطوف حال دی له نعمت څخه. والنعم الظاهرة هي المحسوسة لکه حسن صورت، وتسوية الاعضاء، کريمه: ولقد خلقنا الانسان فی احسن التقويم، والرزق والعافية والاهل والعيال وغيرها من النعماء الدنيوية والاسلام والرسول والقرآن من نعماء الدنيا والآخرة وتخفيف الشرائع وتوفيق اتباع الرسول وظهور الاسلام والنصر علی الاعداء وغير ذالک.

"وباطنة" يعني چې له حواسو څخه پټ وي لکه زړه او عقل، او حواس باطنه حس مشترک، خيال، وهم وغير ذالک. وحسن الاخلاق (يعني بالنسبة الى الحيوانات والامداد بالملائكة في الغزوات كما في غزوة البدر والالهام يا الاعتقاد الموافق للقرآن والسنة وستر الذنوب في الدنيا لا كتابتها على الباب كما لليهود وعدم التعجيل بالعقوبة بالذنوب، ونور معرفة الله في بعض الناس كالمؤمنين ورسوله وشفاعة رسوله يعني للمؤمنين اذا ماتوا بلا توبة وجعل الندم على الذنب توبة منه وغير ذالک.

وَمِنَ النَّاسِ مَنْ يُجَادِلُ فِي اللَّهِ بِغَيْرِ عِلْمٍ

او ځيني له خلکو څخه هغه دي چې جګړه کوي.

**يوه سه:** هذا عطف على البعيد اى قوله ومن الناس من يشترى لهو الحديث، ومابين المعطوفين كلها معترضات "في الله" اى في توحيده وصفاته "بغير علم" بلا علم چې مستفاد له دليل څخه وي، بغوي رح وايي چې دا آيت نازل سوى دى په نضر بن الحارث وابى بن خلف وامثالهما من المشركين الى يوم القيامة. ولي چې خصوص د مورد منافي د عموم سره د حكم نه دى كما تقرر في الاصول.

وَلَا هُدًى وَلَا كِتَابٍ مُنِيرٍ ۝

چې دا خبره دي راجع وه يوه نبي ته وي او نه يو كتاب ته چې منزل من عند الله دي وي، بل بالتقليد البحت للآباء كما قال الله تعالى.

وَإِذَا قِيلَ لَهُمُ اتَّبِعُوا مَا أَنْزَلَ اللَّهُ

چې دوى ته به وويل سول د رسول الله ﷺ او د مؤمنانو له خوا څخه چې تاسي متابعت وکړئ د ما انزل الله يعني القرآن العزيز.

قَالُوا بَلْ نَتَّبِعُ مَا وَجَدْنَا عَلَيْهِ آبَاءَنَا

دوى به وويل بلکي موږ متابعت کوو د هغه دين چې وه پر هغه دين زموږ پلرونه يعني الشرک.

**يوه سه:** چې معطوف عليه د بل محذوف دى يعني لا نتبع ما انزل الله تعالى.

**فائده:** لفظ آباءو اجدادو ته هم شامل دى.

**مسئله**: له دې آيت څخه دا معلومه سوه چې تقليد په اصولو کې د دين يعني المعتقدات ناجائز دی، قال الله تعالی:

**اَوَلَوْ كَانَ الشَّيْطٰنُ يَدْعُوْهُمْ اِلٰى عَذَابِ السَّعِيْرِ ﴿۲۱﴾**

(همزه د استفهام داخل دی پر محذوف ولفظ قل محذوف ای قل ايتبعون ابائهم) که څه هم وي شيطان بولي دوی (الوو للحال، ضمير د هم راجع دی و آباؤ ته) وعذاب ته د اور لان الدعوة الى الشرک دعوة الى عذاب النار.

**فائدة مهمة**: مظهري رح وايي چې دا آيت دليل دی له منع څخه د تقليد په اصول کي د دين او روح المعاني وايي وهذا ظاهر في منع التقليد في اصول الدين، او روح البيان وايي والآية دليل صريح في منع التقليد في الاصول ای اصول الدين من التوحيد والصفات آه.

**پوه سه**: چې تقليد وضع الشيئ في العنق محيطًا به ومنه القلادة (غاړکی) ثم استعمل في تفويض الامر الى غيره کانه بعنقه، واصطلاحًا قبول قول الغير ای غير الله ورسوله بلا حجة، والتقليد جائز في الفروع والعمليات بالاجماع.

لکن مسئله د منع د تقليد في الاصول ففي روح المعاني هذه المسئلة خلافية دی وايي فالذي ذهب اليه الاکثرون ورجحه الامام الرازي رح والقاضي الآمدي رح انه لايجوز التقليد في الاصول بل يجب النظر يعني په مصنوعاتو کي د خدای ﷻ له اسمانو څخه را نيولې تر مځکي پوري تر حيواناتو تر نباتاتو وغيره پوري په نظام کلي کي فکر وکړي چې نظام خو په خپله نه پيدا کېږي خامخا خالق او صانع لري، نو پر صانع اعظم ج به يې علم يقين پيدا سي ... سعدي شيرازي رح وايي:

برگ درختان سبز درنظر هوشيار ..... هر ورقی دفتريست معرفت کردگار

له يو صحرائي څخه چا پوښتنه وکړه چې د خالق العالم پر وجود څه دليل لرې؟ صحرائي اعرابي ورته وويل: البعرة تدل على البعير (يعني د اوښ پچه چي سړی ويني دلالت کوي پر اوښ يعني چي اوښ دلته تېر سوی دی) واثار الاقدام تدل على المسير (يعني چي څوک د انسانانو پلونه پر مځکه ويني دلالت کوي تګ د انسانانو پر دغه مځکه) فکيف لايدل هذا العالم الکبير على الصانع الخبير (نو څرنګه به دلالت نه کوي دا عالم کبير پر صانع خبير باندي)

**درویش وایي**: ولله دره ما احسن استدلاله علی وجود الصانع العالم الخبیر، بیا دي سړی فکر وکړي چي په یوه مملکت کي چي دوه یا دري بادشاهان وي هغه ملک د خراب سره مخامخ کیږي، کریمه: لو کان فیهما آلهتان الا الله لفسدتا. نو به سړی پوه سي چي صانع العالم یو دی.

دا وه طریقه او دلیل پر توحید د صانع العالم وهکذا الدلیل علی قدرته وعلمه وصائر صفاته الجمالیة والجلالیة اجمالاً ثم نرجع الی تحقیق المسئلة الاختلافیة فنقول والذي ذهب الیه عبیدالله بن الحسن رح وجماعة جواز التقلید في الاصول وروی عن بعضهم ان تقلید عقائد المحق صحیح وان کان اثمًا بترک النظر علی القول الاول.

**درویش وایي**: چي د امام ابو الحسن الاشعري رح څخه چا نقل کړی دی چي ایمان د مقلد في الاصول نه دی صحیح وقال الاستاذ ابو القاسم القشیري رح هذا مکذوب علیه (دا پر امام اشعري رح چا درواغ ویلي دي) ولي پر دې طریقه لازمیږي حکم د کفر کولو پر عوام الناس وهم غالب المؤمنین.

**درویش وایي**: چي مزید تحقیق په روح المعاني او تفسیر کبیر کي مطالعه کړئ، والله اعلم بالصواب.

**وَمَنْ يُسْلِمْ وَجْهَهُ إِلَى اللَّهِ وَهُوَ مُحْسِنٌ**

څوک چي واړوي خپل مخ د خدای ج پر خوا.

**پوه سه**: چي له مخ څخه مراد ذات دی، والمعنی من یسلم نفسه الی الله، لکه تسلیم د مأمور و خپل آمر ته بان فوض امره الیه واقبل بکلیة علیه.

**فائده**: کلمه د من شرطیه ده فقد استمسک جزاء ده، والواو للحال في وهو محسن ای والحال انه محسن مخلص في علمه او عمل یې پر وجه لائق لجنابه تعالی دی کما جاء في الحدیث الطویل الذي رواه البخاري ومسلم عن عمر بن الخطاب رض الاحسان ان تعبد الله کانک تراه فان لم یکن تراه فانه یراک یعني یعلم حالک في الاخلاص والریاء والغفلة، والمراد الحضور التام.

**فَقَدِ اسْتَمْسَكَ بِالْعُرْوَةِ الْوُثْقَىٰ**

نو په تحقیق ده لاس ټینګ کړی په دستګي محکم سره.

**پوه سه**: چي په دې آیت تمثیل لطیف دی د متوکل علی الله بحسن الاخلاص

واليقين الذي هو امر معقول بالامر المحسوس يعني لاس تېنګونکی په محکم لاستي سره د کوزي يا ګلوي چي احتمال د قطع يې نه وي يعني عمل بالاحسان هم هيڅ احتمال د قطع نه لري، والحاصل ان ثواب الله ﷻ على العمل بالاحسان متيقن في الدارين.

وَإِلَى اللَّهِ عَاقِبَةُ الْأُمُورِ ﴿٢٢﴾

او خاص خدای ﷻ ته دی اخیر کار د ټولو مخلوقاتو اذ الكل صائر اليه.

وَمَن كَفَرَ فَلَا يَحْزُنكَ كُفْرُهُ

او که څوک کفر وکړي يعني لم يسلم وجهه الى الله.

**پوه سه:** چي اصل جزاء د من شرطيه محذوفه ده يعني فقد اضر نفسه خپل ځان ته يې ضرر ورساوه، تاته هيڅ ضرر نسي رسولای لا في الدنيا ولا في الآخرة. نو چونکه عدم الضرر وه عليه الصلوة والسلام ته علت ؤ د عدم حزن په کفر د کافر اقيم مقام اصل الجزاء فافهم.

إِلَيْنَا مَرْجِعُهُمْ فَنُنَبِّئُهُم بِمَا عَمِلُوا إِنَّ اللَّهَ عَلِيمٌ بِذَاتِ الصُّدُورِ ﴿٢٣﴾

وموږ ته رجوع ده د خلکو خاصة (نو مرجع مصدر ميمي دی، في الدنيا والآخرة لان العبد لا يستقل في شيئ) نو زه به دوی خبر کړم په هغه شي چي دوی يې عمل کړی وي من الكفر والمعاصي يعني بالتعذيب عليها.

په تحقيق خدای ﷻ خبر دی په هغه شي چي د خلکو په سينو کي يعني په زړو کي دي من الاعتقادات الحقة والباطلة والشكوك والشبهات والخطرات الشيطانية فضلاً عن الاعمال الظاهرة فيجازی کلا حسب اعتقاده وعمله ان خيراً فخير فان كان شراً فشر.

نُمَتِّعُهُمْ قَلِيلًا ثُمَّ نَضْطَرُّهُمْ إِلَىٰ عَذَابٍ غَلِيظٍ ﴿٢٤﴾

نو تمتع او مهلت ورکوو (تمتيعاً قليلاً که مفعول مطلق وي، او زماناً قليلاً که ظرف وي، يعني في الدنيا مدة عمرهم فيها ثم) موږ دوی مجبوره کوو په آخرت کي وړ ته ثقيل عذاب ته وهو عذاب النار.

وَلَئِن سَأَلْتَهُم مَّنْ خَلَقَ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضَ لَيَقُولُنَّ اللَّهُ

که پوښتنه وکړي ددوی يعني د مشرکانو څخه چي چا پيدا کړي دي

اسمانونه او مځکه؟ دوی درته وايي چي الله پيدا کړي دي، ولي چي بل ځواب
دوی نه لري مثلاً چي استناد د خلق و خپلو بتانو ته وکړي.

## قُلِ الْحَمْدُ لِلَّهِ ۚ بَلْ أَكْثَرُهُمْ لَا يَعْلَمُونَ ﴿٢٥﴾

ته ورته ووايه چي حمد دي وي خدای ﷻ لره (چي په دې اقرار سره ستاسي اشراک د بتانو په عبادت کي د خدای ج سره د بېخه ځخه ولاړی) بلکې اکثره ددوی په دې نه پوهېږي چي په دې اقرار کي موږ ملامت سوو، ولي چي ددوی سره مرض د جهل مرکب همراه دي:

آن کس که نداند وبداند که بداند ..... درجهل مرکب ابد الدهر بماند

وانما قيل اکثرهم لان بعضهم يعلمون لکن انکروه عنادًا وتکبرًا، کاشکي دوی په خپل جهل سره اعتراف کړی وای، نو د مرض شرک علاج يې ممکن ؤ:

آن کس که نداند وبداند که نداند .... او اسپ خود از گنبد فيروژه جهاند

## لِلَّهِ مَا فِي السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ ۚ

خدای ج لره دي يعني خدای ﷻ خالق او مالک دی د هغو شيانو چي په اسمانو کي دي من الشمس والقمر والکواکب والملائکة.

**درويش وايي:** چي له هم دې کبله يې کلمه د ما راوړه چي پر مذهب تحقيق د نحاتو وذوی العقول او غير ذوی العقول ته شامله ده، او هغه شيان چي په مځکه کي پر ظاهر د مځکي دي لکه انس او جن، والحيوانات العجم والنباتات والثمار وغيرها که په باطن کي د مځکي وي من الخزائن والدفائن والجواهرات في اعماق جبال الارض وغيرها مما لا يعلمه الا الله تعالى.

## إِنَّ اللَّهَ هُوَ الْغَنِيُّ الْحَمِيدُ ﴿٢٦﴾

په تحقيق خدای ﷻ غني دی له حمد ځخه د حامدينو او له عبادت ځخه د عابدينو، مستحق د حمد دی که يې څوک حمد وايي او که نه.... بيت:

ای غنی درذات خود از ما سوی خـويشتن
خود تو ميگوئی بحمد خود ثنايی خويشتن

وفي الاربعين الادريسية: ياحميد الفعال ذا المن على جميع خلقه بلطفه

شیخ سهروردي رح وايي كه څوک دوام وکړي پر دغه ذکر يحصل له من الاموال ما لايمكن ضبته، له دې آيت مبارک څخه دا معلومه سوه چي تفويض د كارو و خدای ﷻ ته او توكل پر خدای ﷻ او اخلاص د مقصد او اعراض د ما سوى الله څخه او اقبال على الله بالتوحيد يعني لا اله الا الله و طاعة الله من موجبات حسن العاقبة وهي الجنة و القربة الى الله ﷻ والوصل بلا فصل:

درین دنیا که بگذشت عمر عزیز .... بخواهد گذشت این دمی چند نیز
کنون وقت تخمست اگر پروری .... گر امید داری که خرمن بری

سعدی شیرازی قدس سره السامی فی کتابه البستان:

شنديم که نا بالغی روزه داشت .... بصد محنت آورد روزی بچاشت
پدر دیده بوسیده هم و مادرش .... فشاندند بادام وزر بر سرش
چو بر وی گذر کرد یک نیمه روز .... فتاد اندورزاتش معده سوز
بدل گفت اگر لقمهٔ چند خورم .... چه داند پدر غیب یا مادرم
چو روئ پسر دربدر بودو وقوم .... نهان خورد وبیدا بسر برد صوم
پس این پیر ازان طفل نادان ترست .... که از بهر مردم بطاعت دراست

یعنی شیخ وپیر ریاء کار.

ابن اسحاق صاحب المغازي د عطاء بن يسار رح څخه وكذا البغوي الشافعي المذهب انه قال نزلت بمكة، وما اوتيتم من العلم الا قليلاً، نو عليه الصلوة والسلام په مدينه کي چي د يهودو ملايان ورته راغله، دوى ورته وويل چي موږ ته دا خبره رسېدلې ده چي ستا په كتاب قرآن کي دا آيت سته وما اوتيتم من العلم الا قليلاً، آيا ستا په دغه آيت مراد خپل قوم دی، كه موږ دي مراد يو؟ فقال ﷺ كلا عنيت خپل قوم او تاسي دواړه مي مراد دي، دوى ورته وويل آيا ستا په قرآن کي دا نسته "انا اوتينا التورات وفيها تبيان كل شيئ؟" فقال رسول الله ﷺ چي تول ما في التورات نسبت و علم ته د خدای ﷻ قليل دی، فانزل الله تعالى هذه الآية.

وَلَوْ أَنَّ مَا فِي الْأَرْضِ مِن شَجَرَةٍ أَقْلَامٌ

**بوه سه:** چي لو حرف شرط دی د دخول یې پر ان چي حرف تحقيق دی، په علم النحو کي روا نه دی، نو له دې سببه تر لو وروسته ثبت مقدر دی، والتقدير لو ثبت ان.

**فائده:** شجرة يې مفرد راوړه اشجار يې نه وو ايه مع انه اشمل، له دې سببه چې له شجرة څخه مراد جنس دی فيشمل جميع الاشجار، و الاقلام جمع قلم وهو مايكتب به.

**ترجمه:** كه چيري دا ثابته سي چې په مځكه كي جنس درختي يعني ددوی بناخونه پر اندازه د قلم پري سي.

## وَالْبَحْرُ يَمُدُّهٗ مِنْۢ بَعْدِهٖ سَبْعَةُ اَبْحُرٍ

"والبحر" اى البحر المحيط بالارض "يمده" اى ينصب ويزيداه "من بعده" اى من خلفه، اووه دريابه نور يعني دا دريابونه د دغو قلمانو مداد سي يعني سياهی او رنگ يعني قلمان په لندوي او خط په كاږي.

**فائده:** مراد له سبعه څخه عدد مخصوصه نه دی، بلكې لپاره د مجرد تكثير دی د مداد فيشمل المائة والالف وتخصيص السبعة لما ان ايام الاسبوع سبعة والكواكب السيارة سبعة.

## مَّا نَفِدَتْ كَلِمٰتُ اللّٰهِ ؕ اِنَّ اللّٰهَ عَزِيْزٌ حَكِيْمٌ ﴿۲۷﴾

نه بسي تمام كلمات د خدای ج چي مراد څخه ي معلومات دي، يعني بتلك الاقلام وبذالك المداد ولا بالاكثر من ذالك بالغًا مابلغ، ولي چي معلومات د خدای ج غير متناهي دي لايمكن نفادها، او دغه رنگه قلمان او دغه مداد متناهي دي وقد قالوا لايمكن احاطة المتناهي بغير التناهي.

**فائده:** كلمات يې جمع قلت راوړه لپاره د تنبيه پر دې چي دغه اقلام او مداد پر قليل د معلوماتو د خدای جل جلاله احاطه نسي كولای فكيف بالكثير منها كما لايخفى.

"اِنَّ اللّٰهَ عَزِيْزٌ حَكِيْمٌ" خدای ج غالب دی چي هيڅ شی يې نسي مغلوب كولای، او د حكمت څښتن دی لايخرج عن علمه وحكمته شيئ فكل ما يخلقه الله ففيه حكمته عرفها الناس او لا تعرفوها.

**فائده:** اهل التجربة اولياء الله وايي: چي خاصيت د اسم جليل يعني يا عزيز وجود الغنى والعز، نو څوک چي دا اسم عزيز څلوېښت (۴۰) واره في كل يوم څلوېښت ورځي ورد وګرځوي اغناه الله تعالى واعزه ولم يحوجه الى احد. او شرط دا چي د ذكر په وخت كي همت د خلكو له خواڅخه د خدای جل جلاله و خواته فقط مبذول كرځوي.

**فائده**: خاصيت د اسم جليل عارفانو دا بيان کړی دی چې خدای ﷻ به دفع د بلاؤ ځندي وکړي او دروازې د حکمت به ورته خلاصي کړي من اکثر ذکره صرف عنه مايخشاه من الدواهي والآفات وفتح له باب الحكمة وقطع العلائق مع الخلائق والتوكل على الله وتفويض الامر اليه تعالى شرط قوی فی ذالک.

مَا خَلْقُكُمْ وَلَا بَعْثُكُمْ إِلَّا كَنَفْسٍ وَاحِدَةٍ ۗ إِنَّ اللَّهَ سَمِيعٌ بَصِيرٌ

نه دي پيدا کول ستاسي ايها الناس اجمعين او نه بعث بعد الموت ستاسي ټولو مګر نه لکه خلق او بعث د يوه سړي، ولي خدای پاک يو کار د بل کار کولو څخه نه مشغوله کوي ويکفى بوجود الكل تعلق ارادته مع قدرته الذاتية، نو نه دی ګران و خدای ﷻ ته خلق الکل لکه چي نه دی ګران خلق د نفس واحدة انما امره اذا اراد شيئًا ان يقول له كن فيكون.

په تحقيق خدای ﷻ اوري بل لا بآلة السمع فمعناه يعلم کل مسموع ليدونکی د هرشي لا بآلة البصر والعين فمعناه يعلم كل مبصر، حسين کاشفي رح ميگويد يعني حق تعالى درخلق اشياء ودر بعث از قبور بآلات وادوات احتياج ندارد بلکه اسرافيل را گويد برخيز و بگو برخيز از گورها بيک دعوت او همه خلائق از گورها بيرون آيند انتهى، ومثاله في الدنيا ان السلطان عند الرحيل يضرب نقارة الرحيل فيتهأ الکل من الفوج في ساعة واحدة.

أَلَمْ تَرَ أَنَّ اللَّهَ يُولِجُ اللَّيْلَ فِي النَّهَارِ وَيُولِجُ النَّهَارَ فِي اللَّيْلِ وَسَخَّرَ الشَّمْسَ وَالْقَمَرَ

آيا ته ويني (الاستفهام للانكار ونفي النفي اثبات) يعني ته ويني ايها المخاطب چي خدای ﷻ داخلوي ساعات د شپې په ورځ کي (يعني شپه کوتاه کړي او ورځ اوږده کوي لکه په دوبي کي) او داخلوي ساعتونه د ورځي په شپه کي يعني ورځ کوتاه کړي او شپه اوږده کړي لکه په ژمي کي.

كُلٌّ يَجْرِي إِلَىٰ أَجَلٍ مُسَمًّى

او مسخر يې کړ څولي دي لمر او سپوږمی. (کلٌ: التنوين عوض عن المضاف اليه ای کل واحد من النيرين) روان دي په خپل اسمان کي تريو وخت معين پوري وهو يوم القيامة.

**فائده:** په تسخير كي يې شمس د مخه كړى تر سپوږمۍ، لان الشمس اعظم جرمها وتسخيرها اعجب من تسخير القمر لصغر جرمه اي القمر بكثير من جرم الشمس كما ثبت في كتب الهيئة.

**فائده:** وروسته تر قيامت به ضوء د شمس او قمر د له منځه ولاړ سي او دوى دواړه به دوږخ ته وغورځول سي لا للتعذيب بلكې لپاره د رد پر هغو كسانو چي د لمر او سپوږمۍ عبادت يې كاوه لكه بتان د مشركانو هم سره ددوى د عابدينو دوږخ ته اچول كيږي لانهم ظنوا في الدنيا ان هؤلاء الاصنام شفعائنا عند الله.

وَأَنَّ اللَّهَ بِمَا تَعْمَلُونَ خَبِيرٌ ﴿٢٩﴾

او په تحقيق خداى ﷻ ستاسي په عملو خبر دى، عطف على الم تر ان يولج.

ذَٰلِكَ بِأَنَّ اللَّهَ هُوَ الْحَقُّ وَأَنَّ مَا يَدْعُونَ مِن دُونِهِ الْبَاطِلُ

دغه چي بيان كړل سوه له فراخۍ څخه د علم د خداى وشمول قدرته وعجائب وصفه "بان" اى بسبب ان چي خداى حق او واجب الوجود دى وثابت جميع كمالاته وصفاته والثابت استحقاقه للعبادة، او هغه شيان چي مشركان يې عبادت كوي اى الاصنام باطل ددوى چي دعوى الوهيت د هغو كوي.

وَأَنَّ اللَّهَ هُوَ الْعَلِيُّ الْكَبِيرُ ﴿٣٠﴾

او دا چي خداى ﷻ پورته دى پر هر شي او مسلط دى پر كار من الايجاد والاعدام وسائر امور العباد او صاحب د كبرياء ظاهر دى وكلما كان كذالك يكون علمه وقدرته شاملا لجميع الاشياء.

أَلَمْ تَرَ أَنَّ الْفُلْكَ تَجْرِي فِي الْبَحْرِ

**بوه سه:** چي همزه لپاره د استفهام انكاري داخل سو پر حرف نفي او نفي د اثبات دى او، رؤية كه بصري وي نو ان مجموع مفعول دى او كه رؤيت علمي وي نو ان الفلك يې قائم مقام المفعولين دى، والمعنى آيا ته وينې ايها المخاطب يا ته علم نه لرې چي كښتيانې رواني دي په درياب كي.

**فائده:** فقير ترجمه د فلك په جمع سره وكړه له دې سببه چي علماء وايي چي لفظ د فلك مشترك دى په منځ كي د مفرد او جمعي فرق د مفرد او د جمعي تقديري دى

يعني كه فلک مفرد وي، نو ضمه د فاء لکه ضمه د قفل ده چي مفرد وي او که جمع وي نو ضمه يې لکه ضمه د اسد چي جمع د اسد ده، والتميز بين المفرد والجمع يا په صفت سره کېږي يا په ضمير راجع سره، يعني که يې صفت مذکرؤ نو فلک مفرد دی او که يې صفت مؤنثؤ نو لفظ د فلک جمع دی وهکذا الضمير في التذکير والتانيث، نو په دې آيت کي چونکه صفت يې تجري دی په فعل مؤنث، نو لفظ د فلک جمع دی حيث لم يقل يجري باليًا . فاحفظ هذه الفائدة في لفظ الفلک في جميع القرآن.

**پوه سه:** چي دا آيت متصل دي بقوله تعالى الم تر ان الله يولج آه.

بِنِعۡمَتِ اللّٰهِ لِيُرِيَكُمۡ مِّنۡ اٰيٰتِهٖ

په احسان د خدای جل جلاله چي دونه ثقيل شی لکه کښتي، چي هم ډېر خلک پکښي ناست دي او هم تجارتي اموال ور سره دی د اوبو پر مخ روانه ده په امان کي غالبًا.

**پوه سه:** چي دا بل دليل دی پر عظيم قدرت د ايزد متعال وشمول انعامه للمؤمنين والکفرة کما لايخفى "ليريکم الله آه" چي په تاسي ووينې بعض د قدرت خپل من عجائب البحر في سفرکم.

**پوه سه:** چي په درياب کي قسم قسم حيوانات ليدل کېږي، د مثال په توګه داسي ماهی به هم وليدل سي چي سرې وسر ته ولاړوي لکی به يې نه ويني، او هم دومره ماهی چي تام الخلق هم وي او تقريبًا په ستر ګو نه معلومېږي الى غير ذالک.

اِنَّ فِیۡ ذٰلِکَ لَاٰيٰتٍ لِّکُلِّ صَبَّارٍ شَکُوۡرٍ ﴿۳۱﴾

په تحقيق سره په دې سفر کي د کښتي دلائل د قدرت د ايزد متعال دی هغه چا لره چي کثير الصبر پر مشاق او سختيو د سفر مذکور (نو صيغه د صبار د مبالغې ده) وهکذا صيغة الشکور چي کثير الشکر وي د خدای په امن او عدم الغرق کي، نو عاقل لره لازمه ده چي تفکر په انفس او افاقو کي وکړي او نعمتونه د خدای جل جلاله وپېژني او شکر يې ووايي او يا مراد دادی چي د مؤمنانو لپاره دي، کما ورد في الحديث النبوي الصحيح الذي رواه البيهقي في شعب الايمان عن انس رضي الله عنه قال رسول الله ﷺ الايمان نصفان فنصف في الصبر ونصف في الشکر يعني يشکر في السراء ويصبر في الضراء . ولا يخلو مؤمن عن احدى هاتين الحالتين.

## وَإِذَا غَشِيَهُم مَّوْجٌ

چي پټ کړي دغه راکبان د کښتۍ (ضمير د جمع راجع وراکبينو ته د کښتۍ دی) څپې د درياب يعني څپې تر دې لوړې سي.

**فائده:** کلمه ده اذا چي په ده کي معنی د شرط سته متعلق په دعوا الله پوري يعني هغه يې جزاء ده وهذه الجملة معطوف علی تجری في البحر خبر بعد الخبر لان ضمير هم في غشيهم فاصل بين الاسم والخبر كذا قال المظهري رح وروح المعاني وغيرهما.

## كَالظُّلَلِ دَعَوُا اللَّهَ مُخْلِصِينَ لَهُ الدِّينَ

("كالظلل" جمع د ظلة ده، قال مقاتل كالجبال، قال الكلبي كالصحاب يعني يو تر بل پر له سي، دا څپې د درياب لکه سائبانونه پر دوی تېرېږي) نو دوی په ښه اخلاص دعاء کوي و خدای ﷻ ته يعني بتان وغيره نه ورسره شريکوي که څه هم راکبان مشرکان وي، ولي د دوی دا يقين دی چي کاشف الضر بېله يزدان متعال بل څوک نسته، او د دوی يعني د مشرکانو له زړو څخه تقليد د آباؤ او د هوا او کبر ووځي لشدة الخوف من الغرق.

## فَلَمَّا نَجَّاهُمْ إِلَى الْبَرِّ فَمِنْهُم مُّقْتَصِدٌ

نو هغه وخت چي خدای ﷻ نجات ورکړی دوی ته د غرق او وه يې رسوي مځکي ته يعني خوف زائل سي الی البر په نجاهم پوري متعلق دی او جمله د فلما آه معطوف پر اذا غشيهم ده.

**پوه سه:** چي "فمنهم مقتصد" جواب د فلما دی، ومعنی المقتصد المقيم علی الطريق وهو التوحيد وهذا حال المؤمن او متوسط في الكفر لانزجار الجملة يعني د شدة څخه د شرک نرم سوي وي، او بعض مفسرين وايي چي په ورځ د فتح د مکې چي وسوه آمان ورکړی رسول الله ﷺ ټولو کافرانو ته د مکې، لکن څلورو کسانو ته يې د هغو په باره کي وويل اقتلوهم ولو متعلقين باستار الكعبة، عكرمه بن جهل وعبد الله بن خطل ومقيس بن سيهة وعبد الله بن سعد بن ابی سرح، عکرمه چي دا واورېدل وتښتېدی د درياب پر خوا په کښتۍ کي سپور سو، پر کښتۍ د پر تند باد راوالوتی.

نو اهل سفينه وويل اخلصوا دينكم يعني خالص و خداى ﷻ ته زارى كوئ، ولي ستاسي خدايان تاسي ته فائده د هيڅ شي نسي رسولاى، نو عكرمه وويل: لئن لم ينجي في البحر الا الاخلاص فما ينجئ في البر ايضًا الا الاخلاص اللهم ان لک علي عهدًا ان انت عافيتنى مما انا فيه اتيت محمدًا حتى اضع يدي على يده، يعنى بيعت د اسلام به ورسره كوم فسكنت الريح فرجع الى مكة فاسلم وحسن اسلامه يعني له نفاق څخه خالي ؤ، دا خو مقتصد وه او بل فريق چي هنوز يعني بعد الخروج من البحر پر خپل شرک مصر وه هغه له وروسته آيتو څخه فهمېږي.

**درويش وايي:** چي مظهري وايي فمنهم مقتصد جواب د لما نه دى بلكې جواب محذوف دى او دا دليل د جواب دى. تقديره فلما نجاهم الى البر فاختلفوا فمنهم شاكر لنعمة الله وهو المؤمن ومنهم كافر مقتصد يعني د غايت سرسختي په كفر كي لږ نرم سو لانزجاء بما رئ.

**درويش وايي:** چي قرآن كريم بېله تقديراتو صحيح دى، نو تقديراتو ته څه ضرورت سته او دومره تقدير چي تر مذكور في القرآن هم ډېر طويل دى. او روح المعاني هم د روح البيان رايه خوښه كړې ده او له تقديراتو څخه يې ډډه كړې ده، وقال والظاهر ان المقابل لقسم المقتصد دل عليه قوله تعالى.

**وَمَا يَجْحَدُ بِاٰيٰتِنَآ اِلَّا كُلُّ خَتَّارٍ كَفُوْرٍ ﴿۳۲﴾**

او انكار نه كوي له آياتو څخه زموږ مگر ختار، مشتق دى له ختر څخه وهو اشد الغدر. "كفور" ډېر ناشكره د نعمت د خداى ج دي (كفور، صفت دى د ختار)

**فائده:** دا آيت دليل دى د ابن مالک رح ومن وافقه چي دخول د فاء په جواب كي د لما روا دى، ومن لم يجوز قال جواب لما محذوف اى فلما نجاهم اقسموا قسمين فمنهم مقتصد ومنهم جاحد، ولعل المظهري رح اختار هذا المذهب لكن قد اطال في التقدير فوق الحاجة ولا ينبغي ذالک فافهم هداک الله تعالى، قال عمر بن معديكرب: ... وانک لو رئيت ابا عمير ..... ملأ يديک من غدر وختر

**يٰۤاَيُّهَا النَّاسُ اتَّقُوْا رَبَّكُمْ وَاخْشَوْا يَوْمًا لَّا يَجْزِيْ وَالِدٌ عَنْ وَّلَدِهٖ ۫**

اى خلكو وبېرېږي له خداى ﷻ څخه يعني له عذاب څخه د خداى، او وبېرېږئ

له حساب څخه د هغې ورځي چي ورځ د قيامت ده، چي فائده نسي رسولای (لايجزي، صفت د يومًا دی) پلار و زوی ته.

**پوهـه:** چي د لايجزي سره د عائد محذوف دی لپاره د ربط د موصوف چي يومًا دی و التقدير فيه. او مراد د والد څخه مؤمن دی او د ولد څخه کافر دی، مثلاً نوح عليه السلام سره د درجې د نبوت فائده کافر زوی کنعان ته نسي رسولای چي دفع د عذاب ورڅخه وکړي او شفاعت يې هم نسي کولای.

وَلَا مَوْلُودٌ هُوَ جَازٍ عَنْ وَّالِدِهٖ شَيْـًٔا

او نه زوی يعني چي مؤمن وي (عطف على والد، هو جاز صفت) د خپل پلار يعني چي کافر وي، لکه ابراهيم؏ چي سره د دې چي خليل الرحمن ؤ، وه خپل پلار کافر ته چي آذر يې لقب ؤ او تارخ يې نوم ؤ هيڅ فائده نه رسېږي او دفع د عذاب نسي ځنې کولای او نه يې هم شفاعت کولای سي.

**فائده:** په دواړه ځايه کي موږ وويل چي د ولد څخه مراد کافر دی او په بل ځای کي مو وويل چي د والد څخه کافر مراد دی. لان المؤمن ولدًا کان او مولودًا او غيرهما من الاقارب يشفع للمؤمن وان کان في غاية البعد في النسب بل يشفع المؤمن للمؤمن وان اجنبيا عنه بمجرد المعرفة، قال الله تعالى والذين آمنوا واتبعهم ذريتهم بايمان يعني الحقنابهم ذريتهم چي مؤمنان وي بسبب شفاعتهم ای الذين آمنوا لهم. وقال الله تعالى جنات عدن يدخلونها ای الاولاد المؤمنين الصالحين، ومن صلح ای آمن من آبائهم وازواجهم وذرياتهم.

**پوهـه:** چي شيئًا يا مفعول مطلق دی ای شيئًا من الاجزاء.

**فائده:** د مؤمن مولود چي والد قريب ته فائده نه رسېږي چي کافر وي. نو جد وهکذا جد الجد ته په طريق اولی فائده نه رسېږي، وهکذا الوالد چي دده څخه زو کړي ته چي کافر وي فائده نه رسېږي نو لمسي يا کړوسي ثم وثم چي کافران وي په طريقه اولی فائده نه رسېږي.

**فائده:** په دې آيت کي قطع د طمع د مؤمنانو د عصر نبوي؏ ده چي د اکثرو پلرونه پر کفر مړه سوي وه او ددوی دا اميد ؤ چي موږ به يې شفاعت وکړو او له عذاب الهي څخه به يې خلاص کړو، او په عين حال کي رد دی پر يهودانو چي

دوی به هره ګناه کوله په دې به دلا وره وه چې زموږ اباء و اجداد انبياء تېر سوي دي حتمًا به زموږ شفاعت کوي .... ع: این خیال است و محال است و جنون.

إِنَّ وَعْدَ اللَّهِ حَقٌّ فَلَا تَغُرَّنَّكُمُ الْحَيَوٰةُ الدُّنْيَا

په تحقیق سره د خدای ﷻ وعده حق ده، یعني بالبعث بعد الموت والعقاب والثواب. لایمکن تخلفه، نو تاسي دي نه خطا باسي زینت او جاه وجلال، مال و منال دد دې ژوند ناقص چې فاني دی.

**پوه سه:** چې کلمه د فاء لپاره د سببیت د ماقبل ده یعني ان وعد الله حق مابعد لره یعني لاتغرنکم آه.

وَلَا يَغُرَّنَّكُم بِاللَّهِ الْغَرُورُ

او تاسي نه خطا باسي د خدای ج د حلم په سبب او د امهال په سبب "الغرور" غولونکی چې د اسماؤ څخه د شیطان دی یعني یا درته وایي لابعث ولا نشور یا درته وایي چې خدای غفور او رحیم دی. یا درته وایي چې ستاسي اباء انبیاء وه یا ستاسي اولاد صلحاء، وه هغه به ستاسي شفاعت کوي او له عذابه د خدای حسب اعمالکم السیئة والکفر به مو خلاصوي.... مقوله:

ان السفینة لاتجری علی الیبس

کار امروز کن بفردا نگذاری زنهار .... روز چون یافته کار کن و عذر میار

موعظت در حاصل این آیت:

برد مرد هوشیار دنیا خس است .... که هر مدتی جای دیگر کس است
منه برجهان دل که بیگانه ایست .... چو مطرب که هر روز در خانه ایست
نه لائق بود عشق با دلبری .... که هر بامدادش بود شوهری
مکن تکیه بر ملک وجاه وحشم .... که پیش از تو بودست وبعد از توهم
همه تخت ملک پذیرد زوال .... بجز ملک فرمانده لایزال
غم وشادمانی نماند ولیک .... جزای عمل ماند ونام نیک
عروس بود نوبت ماتمت .... اگر نیک روزی بود خاتمت
خدایا بحق بنی فاطمه .... که بر قول ایمان کنم خاتمه

**درويش وايي:** چي ابن جرير او ابن حاتم له مجاهد رح څخه مرسل روايت (يعني د صحابي نوم يې نه دی ذکر کړی) چي يو سړی راغلی له صحراء نشيانو څخه، چي بغوي رح نوم حارث بن عمرو بن الحارث بن محارب بن حصفة ښوولی دی، نو دې سړي له عليه الصلوة والسلام څخه دا پوښتنې وکړې (۱) عن القيامة ای وقتها؟ (۲) زما ماينه اميدواره ده ته ماته ووايه چي زوی به راوړي او که لور؟ (۳) زموږ پر وطن بارانونه نه دي سوي، ته راته ووايه چي کله به اوربښت پر دوی کېږي؟ (۴) ماته خو دا معلومه ده چي په کوم وطن کي زه زو کړی يم، ته راته ووايه چي مرګ به مي په کوم وطن کي وي؟ فانزل الله تعالى هذه الآية.

**إِنَّ اللَّهَ عِندَهُۥ عِلْمُ ٱلسَّاعَةِ وَيُنَزِّلُ ٱلْغَيْثَ وَيَعْلَمُ مَا فِى ٱلْأَرْحَامِ**

په تحقيق په نيز د خدای ج دی فقط علم د قيام القيامة، يعني نه ملک مقرب په خبر دی او نه نبي مرسل په خبر دی، او خدای ج اوروي باران هر وخت چي يې اراده سوه لايعلم وقت نزولها الاهو، او خدای ج خبر دی چي په رحمو کي د ښځو څه شی دي، نر دی او که ښځه، تام الاعضاء او که بعض اجزاء ناقص دي الى غير ذالک لايعلمها غيره تعالى.

**وَمَا تَدْرِى نَفْسٌ مَّاذَا تَكْسِبُ غَدًا وَمَا تَدْرِى نَفْسٌۢ بِأَىِّ أَرْضٍ تَمُوتُ**

او نه دی خبر هيڅ سړی چي سبا به زه څه کسب کوم، او نه دی خبر هيڅ سړی چي په کومه ځمکه کي به زه مرم، وفي الحديث الصحيح الذي رواه ابن عمر رض ان رسول الله ﷺ قال چي خزائن د غيب پنځه دي لايعلمها الى الله (۱) لايعلم احد مايکون في غد الا الله (چي سبا ورځ به څه پېښېږي بېله خدايه (۲) لايعلم ما في الارحام الا الله (کمامر بيانه عنقريب.

(۳) لايعلم احد متى تقوم الساعة الا الله (۴) ولا تدري نفس بأی ارض تموت الا الله (۵) لا يعلم احد متى يجيئ المطر الا الله، رواه احمد و البخاري.

ابن ابی شيبه رح په خپل کتاب کي روايت کړی دی له خيثمه رح څخه چي يوه ورځ ملک الموت يعني عزرائيل عليه السلام د سليمان عليه السلام مجلس ته راغلی، نو ده د سليمان ع په مجلس کي يوه سړي ته دوه درې واره وکتل، نو ملک الملک چي ولاړی هغه

سړي سليمان عليه السلام ته وويل چي دا څوک ؤ چي ماته يې دوه درې واره وکتل؟ سليمان ع ورته وويل چي دا ملک الموت ؤ، دې سړي ورته وويل چي زما خيال دی چي دی زما د قبض روح لپاره راغلی ؤ، ته باد ته امر وکړه چي ما له شام څخه يوسي په هندوستان کي مي ايله کړي، نو سليمان ع هم دغسي وکړه، ملک الموت چي بيا د سليمان ع مجلس ته راغلی، نو سليمان ع پوښتنه څنږي وکړه چي ته ولي هغه سړي ته تېز تېز کتل؟ عزرائيل ع ورته وويل چي ما ده ته د تعجب له لاري کتل، له دې سببه چي پر ما امر الهي سوی ؤ چي د دې سړي روح په هند کي قبض کړه او دی ستا په مجلس کي په شام کي ناست ؤ، والله اعلم کذا في المظهري.

## إِنَّ اللَّهَ عَلِيمٌ خَبِيرٌ ۝

يعني پر ټولو شيانو کامل علم لري او په بواطنو د امورو داسي خبر دی لکه په ظواهرو د هغو.

**حکايت**: منصور چي د مسلمانانو خليفه ؤ، يوه شپه يې عزرائيل ع په خوب ليدی، ده ورته وويل چي زما عمر څونده پاته دی؟ عزرائيل ع په پنځو ګوتو اشاره ورته وکړه، نو سهار ده معبران د خوبو راجمعه کړه چي په هغو کي سراج الامة ابو حنيفه رحمه الله هم ؤ، چا ورته وويل چي پنځه کاله اشاره ده چا ورته وويل چي د پنځو مياشتو اشاره ده چا ورته وويل چي د پنځو ورځو اشاره ده، به هر حال د منصور رنګ ژړ سو او وار خطا سو، نو د امام ابو حنيفه رح څخه يې پوښتنه وکړه، ده ورته وويل چي عزرائيل ع چي تا ته په ګوتو اشاره وکړه غرض يې دا ؤ چي دا مدة العمر په پنځو غيبو شيانو کي دی چي لا يعلمها الا الله، نو د منصور رنګ پر ځای سو، او د امام اعظم فوق العادة احترام يې وکړی.

**درويش وايي**: چي بحمد الله وحسن توفيقه تفسير د سورة لقمان پر پنځه نيمي بجې د پنجشنبې د ورځي د جمادی الاخير تخمينًا پر (۲۵) نېټه سنه (۱۴۳۱ هـ) پای ته ورسېدی، فاقول الحمد لله والمنة والصلوة والسلام على سيد البرية وعلى آله وصحبه الكملة البررة.

فقیر وایي: دا تفسیر که خدای ﷻ پوره کړی زما د عمر به سرمایه وي
او د آخرت به مي توښه وي
بل ارمان د عبید په زړه کي نشته
چي تفسیر يې خدای ج پوره کړي
مرګ یقین دی چي راځي که يې څه وخت معلوم نه دی
خدای ج قادر دی چي تفسیر تر مرګ دمخه را پوره کړي
نور نعمتونه مناسب زما د حال يې دي راکړي
ما ذلیل ته ذوالجلال
د تفسیر پوره کېده به د فقیر د سر شال وي
که دا شال پر سر را واچاوه ایزد متعال
زما د مرګ ماتم به لوی اختر وي
که تفسیر پوره زه ووینم راهي سم
زما په مرګ دي هیڅ څوک شور او ماتم نه کړي
په تمامه معنی ژوندی یم چي تفسیر خدای ج را پورته کړي

التجاء:

الهی یا الهی یا الهی.......... ندارم جز امیدت تکیه گاهی
زکن موجود کردی جمله عالم.......... مرا از ذنب خود عذر خواهی
ندارم طاعت مقبول درگاه.......... بجز اشک ندامت آه آهی
ندارمت توشه راه قیامت.......... بجز شرمندگی و آه آهی
شفیع آورده روی محمد.......... کرم کن بر من گم کرده راهی



سورة السجدة مكية وهي ثلثون اية وثلث ركوعات
بسم الله الرحمن الرحيم

تاريخ شروع تفسير سورة السجدة ٢٥ جمادى الثاني روز جمعه ساعت لس بجې (١٤٣١ هـ)

و ايضًا تسمى هذه سورة المضاجع كما في تفسير الاتقان.

**بوه سه:** چې اخبار د مفسرينو متفق دي پر مكيت ددې سورت تر اخيره پورې، روى عن ابن عباس رضي الله عنهما انها مكية، وايضًا روى بسند صحيح عن عبد الله بن الزبير رضي الله عنه انها مكية بتمامها، وروى النحاس عن حبر الامة رضي الله عنه ان سورة السجدة نزلت بمكة سوى ثلاث آيات. افمن كان مؤمنًا الى اخير ثلث آيات فانهما نزلت بالمدينة. والله اعلم.

الٓمّٓ ﴿١﴾ تَنزِيلُ الْكِتٰبِ لَا رَيْبَ فِيهِ مِن رَّبِّ الْعٰلَمِينَ ﴿٢﴾

قد سبق تحقيق الايات المقطعة القرآنية في اول سورة البقرة، والصواب في تفسيرها الله اعلم بمراده بذالك كما ذهب اليه امام الامة ابو حنيفة رحمه الله.

**بوه سه:** چې مفسرين ددې آيت "تنزيل آه" په اعراب كې قسم قسم بيان كړى دى، والاوجد الانسب بما بعده داده چې تنزيل الكتاب مبتداء ده، ومعناه بالفارسية فرو فرستادن قرآن بتدريج، كما هو معنى التنزيل من باب التفعيل او لاريب فيه، حال من الكتاب اى حال كونه لاشک فيه عند اهل الانصاف، والنظر الدقيق اى لا المعاندين والمتكبرين والمقلدين للآباء كاهل مكة، من رب العالمين خبر المبتداء المذكور لان العلماء قالوا ان محط الفائدة في الجملة الاسمية هو الخبر وهو كونه من رب العالمين لان كفار مكة انكروا ذالک كما يدل عليه مابعده.

**درويش وايي:** چې دليل ددې چې قرآن مجيد من عند رب العالمين دى دادى كه قرآن كلام البشر واى يعني محمدًا ﷺ كما قال كفار مكة لأتوا بمثله بل بمثل عشر سور مفتريات بل بمثل سورة منه، كريمه: لو كنتم في ريب مما نزلنا على عبدنا فأتوا بمثل سورة من مثله، وقد عجز بلغاء عدنان وفصحاء قحطان عن الاتيان بمثله بل عن الاتيان بما يدانيه.

**درويش وايي:** چې قرآن مجيد معجزه باقيه ده كر الازمان ومر الدهور.

## أَمْ يَقُولُونَ افْتَرَاهُ

**پوه سه:** چي ام منقطعه دی په معنی د بل، کلمه د بل لپاره د انتقال ده له مضمون څخه د جمله اولی چي پر حقیقت د قرآن مبارک یې دلالت کاوه و بلې جملې ته او همزه لپاره د انکار دی پر کولو د دې وروسته خبري، نه پر وقوع ددې خبري، ولي دوی خو دا خبره کوله یعني دوی خو وایي چي محمد ﷺ دا قرآن له ځانه جوړوي او پر خدای دروغ وايي نعوذ بالله من هذا القول القبيح المتن، فهذا القول منكر متعجب منه لغاية ظهور بطلانه.

## بَلْ هُوَ الْحَقُّ مِنْ رَبِّكَ

کلمه د بل لپاره د اضراب ده ددوی د قول څخه، والمعنی داغسي نه دی لکه دوی چي وايي بلکې قرآن حق دی منزل له جانبه څخه د خدای ج دی كما يدعيه محمد ﷺ انظر ايها المخاطب و لطف او بلاغت ته د قرآن کریم، اولاً خدای پاک اشاره وکړه واعجاز ته د قرآن کریم بقوله، الم كما بينه القاضي بيضاوي بكلام طويل لايناسب نقله بحال المتعلمين للتفسير الايوبي، ثم رتب عليه ان تنزيله من رب العالمين، وروسته یې ددې خبري تائيد وکړی بنفي الريب عنه، وروسته یې اضراب او انتقال وکړی د مشرکانو وه خبرو ته على خلاف ذالک انكارًا له وتعجبًا منه، ولي دمخه تېره سوه چي ام منقطعه دی په معنی د بل آه دی والهمزة للانكار ثم انتقل بقوله بل هو الحق آه وبين حكمة تنزيله بقوله كذا قال البيضاوي رح ونقله المظهري رح.

## لِتُنْذِرَ قَوْمًا مَا أَتَاهُمْ مِنْ نَذِيرٍ مِنْ قَبْلِكَ لَعَلَّهُمْ يَهْتَدُونَ ۝

چي ته وېرروې یعني په قرآن سره هغه قوم چي دوی ته نه ؤ راغلی يو ېرونکی (کلمه د من لپاره د استغراق د نفي ده) تر تا دمخه چي مراد ځني کفار د قریشو دي، لعل په معنی د لام کی دی ای لکی یهتدون بانذارک اياهم.

**پوه سه:** چي کفار د قریشو له زماني څخه د فترت دي بین عیسی و محمد علیهما السلام.

**پوه سه**: چي جمله د ما آتاهم صفت دی د قومًا. وفي الحديث الصحيح ليس بيني وبينه (اى عيسى) نبي.

**سوال**: اسماعيل عليه السلام خو نبي ؤ او په قوم د عربو ؤ؟

**ځواب**: اسماعيل عليه السلام نبي ؤ د مخه تر عيسى ؑ او نبوت دده په موت دده ختم سو.

**پوه سه**: چي مقصود له بعث ځخه د انبياء عليهم السلام بيان طريق الحق و كل يهتدي بقدر استعداده وبعض الناس لايكون فيهم استعداد قبول الحق بلكې استعداد نظري يې هم په سبب د اصرار پر كفر د لاسه وركړي وي... بيت:

توان پاک کردن ز زنگ آينه .... وليکن نيايد ز سنگ آينه

**حکايت**: راوي وايي چي شيخ نجم الدين الاصفهاني قدس سره د يوې جنازې سره تللی ؤ يعني من صالحي اهل مكة كان الميت، نو ميت يې دفن كړى يو عالم يې و قبر ته كښېنستى تلقين يې ميت ته كاوه يعني داسي يې ورته وويل چي كه نكير ونكر ملكي درته راغلې او تاته يې وويل من ربك ومن نبيك وما دينك (لكه د هر مړي ځخه چي دا سوال كېږي) ته ورته ووايه ربي الله جل جلاله ونبي محمد ﷺ وديني الاسلام، شيخ نجم الدين رح كرار وخندل او دده عادت دا ؤ چي هيڅ كله به يې نه خندل، نو بعضې شاګردانو يا مريدانو له ده ځخه د ضحک سبب وپوښتى، شيخ رح زجر او خشكه ورته وكړه، وروسته چي له جنازې ځخه فارغ سو خپل ځاى ته راغلى بيا بعض اصحابو له ده ځخه پوښتنه د سبب د ضحک وكړه، ده ورته وويل چي ما پر دې وخندل چي ملقن چي قبر ته كښېنستى او تلقين يې شروع كړى صاحب القبر وويل: الا تعجبون من ميت يلقن حيًا. صائب اصفهاني رح وايي:

زبى دردان علاج درد خود جستن بدان ماند
که خار از پا برون ارد کسى بانيش گژدمها

وقال العارف الجامي قدس سره

بناخلفان زمانه غره شو هرگز .... مرو چو سامرى از ره ببانگ گوساله

**درويش وايي**: چي مراد د جامي رح د ناخلفانو د زمانې تهٔ ن پيران دي دوخت چي لافي د بزرګۍ ومريدانو ته وهي، دى وايي چي ددوى په لافو مه غولېږئ لكه سامري د موسى ؑ د زمانې چي د لارې د حق چي دين د موسى رح ؤ د ګيلګي چي ده

جوړ کړی ؤ په اواز پسې روان وه، ددې بیت معنی داده چې جامي رح شکایت د
ټګانو پیرانو ځنې کوي فافهم.. وقال الحافظ قدس سره:

دره عشق وسوسه اهرمن بست ..... هش دار و گوش دل به پیام سروش کن

اَللّٰهُ الَّذِیْ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ وَمَا بَیْنَهُمَا فِیْ سِتَّةِ اَیَّامٍ

لفظ الله مبتداء ده جمله یې خبر ده، خدای ﷻ هغه ذات مقتدر دی چې پیدا
کړي یې دي اسمانونه یعني سره د مافیها من الکواکب والشمس والقمر
والملائکة والارض او ځمکه یعني سره د ما علیها من الانس والجن والحیوانات
والنباتات ومافیها من الکنوز في جبالها والخزائن والدفائن وغیرها ''وما
بینهما'' من الریاح والسحاب وغیرها، په شپږو ورځو کې چې اوله ورځ یې یکشنبه
وه او اخیره ورځ یې جمعه وه.

ثُمَّ اسْتَوٰی عَلَی الْعَرْشِ

بیا یې غلبه وکړه پر پیدا اینبت د عرش چې اعظم د مخلوقاتو دی. دا تفسیر د
متأخرینو دی، والمتقدمون یقولون هذا الآیة من المتشابهات ویقولون استواء
یلیق به وقد مر تفسیر استوائه علی العرش في سورة یونس وسورة الفرقان.

مَا لَکُمْ مِّنْ دُوْنِهٖ مِنْ وَّلِیٍّ وَّلَا شَفِیْعٍ اَفَلَا تَتَذَکَّرُوْنَ ④

نسته تاسې لره ماسوا له خدای ﷻ ځنې یو ولي، کلمه د من لپاره د استغراق د
نفي ده یعني چې تاسې تر مرضات د خدای ج تېر سئ، نو بیا تاسې لره کومک
کونکی نسته په هغه ځایو کې چې تاسې و نصرت ته محتاج یاست، او د شفیع
معنی د ناصر ده مجازًا.

**یوه سه:** چې جمله مالکم یا استینافیه ده یا حال ده له فاعل ځنې د استوی.
''افلا تتذکرون'' آیا تاسې فکر نه وهئ او عبرت نه اخلئ چې ایمان بالتوحید
راوړئ.

**بوه سه:** چې همزه لپاره د انکار دی پر عدم تذکر او فاء عطف ده مقدر کما هو
القانون في الحروف الواقعة بعد همز الاستفهام وقد مر مرارًا هذا القانون في هذا
التفسیر والتقدیر ههنا الا تتفکرون فلا تتذکرون.

يُدَبِّرُ الْأَمْرَ مِنَ السَّمَاءِ إِلَى الْأَرْضِ ثُمَّ يَعْرُجُ إِلَيْهِ

تدبير د امورو د دنيا کويُ، دا جمله يا مستأنفه ده يا حال ده له فاعل څخه د استولى يا خبر بعد الخبر ده له لفظ الله څخه في قوله الله الذي آه "من السماء" يعني په امور سماويه سره لکه ملائکه او بارانونه چي د اسمان له خوا راځي، او دا توهم مه کوه چي خداى ﷻ په اسمانو کي دى او تدبير د دنيا کوي، ولي چي خداى لره مکان محال دى، کما ثبت في کتب العقائد بالدلائل.

**پوه سه:** چي اصل تدبير فکر وهل دي په اخير د کار چي اخير او عاقبت د دې کار به څه وي، که بفارسي ميگويد (انديشه کردن در عاقبت کار) او نسبت و خداى ج ته معنى يې تقدير او تهيه د اسبابو ده، او خداى پاک لره مدبرات سماويه سته، کريمه: فالمدبرات امرًا، فجبرئيل ؑ مقرر دى بنزول الوحي الى الانبياء ؑ وايضًا بالرياح والجنود (لښکرو) وميکائيل ؑ پر بارانو او پر نباتاتو وغيرها، وملک الموت على قبض الارواح، او اسرافيل ؑ دوى ته امور د خداى ج له خوا راوړي.

**پوه سه:** چي عروج لوړ تګ ته وايي او ضمير د اليه راجع و خداى ﷻ ته دى نه په دې معنى چي خداى ﷻ په اسمان کي دى لانه محال بلکې په معنى د دې چي امر په علم کي د خداى ﷻ مثبت ګرځي موجود بالفعل يعني کما انه علم تعالى ذالک الامر في الازل چي په فلاني وخت کي وجود بالفعل ته راوځي، فالعروج اليه تعالى حکمي باعتبار الرتبة. حسين کاشفي رح وايي: ميسازد کار دنيا را يعنى حکم ميکند بدان وميفرستد ملکى را که موکلست بدان امر از آسمان بسوى زمين پس ملک مى آيد وآن کار را بجاى ميارد، پس ملک عروج ميکند بسوى آسمان.

فِي يَوْمٍ كَانَ مِقْدَارُهُ أَلْفَ سَنَةٍ مِّمَّا تَعُدُّونَ ۝

درروزى که هست اندازه او هزار سال از آنچه شمار ميکنيد سالى را دوازده ماه وماهى راسى روز يعنى فرشته فرود مى آيد از اسمان وبالا ميرود درمدتى که اگر آدمى رود وآيد، جز هزار سال ميسر نشود زيرا که از آسمان تا زمين پانصد ساله راه هست بسير آدمى پس مقدار نزول وعروج هزار سال بود.

**فائده:** مراد له يوم څخه پر دې تقدير مطلق وخت دى لا اليوم المتعارف لان

نزول الملائكة وصعودها غير مختص باليوم المتعارف (يعني ورځ) لكن الله تعالى بكمال قدرته قد جعل نزول الملک وعروجه في طرفة عين، او روح المعاني ددې آيت في يوم كان الخ تفسير داسي كړى اى في برهة (په يوه برخه كي) متطاولة من الزمان او دى وايي فليس المراد حقيقة العدد (يعني زر كاله) بيا روح المعاني ددې سوال په ځواب كي چي د مدة متطاولة څخه تعبير په الف سنه سره ولى وكړى، جواب يې داسي وركړى دى لانها (يعني مدة زر كاله) منتهى د مراتب د عدد ده يعني څوک چي حساب كوي تر زرو چي ورسېږي بيا داسي وايي يو زر دوه زره درې ثم وثم چي بيا زر ته ورسېږي، وايي، دوه زره ثم وثم.

**پوښتنه:** په سورة المعارج كي داسي راغلي دي (تعرج الملائكة والروح اليه في يوم كان مقداره خمسين الف سنة) نو ددې دوو آيتو تر منځ به توافق څرنګه كوو؟

**ځواب:** بغوي رحمه الله وايي چي په اول آيت كي مراد عروج دى د ملكو من السماء الى الارض ونزولها، او په مذكوره آيت كي بيان مدت د مسافة من الارض الى سدرة المنتهٰى چي هغه ځاى دى د جبرئيل ؑ او دده سره ورسره ملكو دى، نو معنى د مذكوره آيت داده چي جبرئيل ومن معه من في مقامه يعني سدرة المنتهٰى چي مسافت يې د پنځو زرو كلو دى يعني په سير د بشر او انسان لكن جبرئيل ؑ دا مسافت قطع كوي په يوه ورځ كي د ايام يعني برهة قليلة من الزمان. وهذا كله قول مجاهد او الضحاک رحمه الله انتهى قول البغوي رحمه الله.

**درويش وايي:** چي د معراج په شپه چي جبرئيل ؑ د عليه الصلوة والسلام سره تر سدرة المنتهٰى پوري ورسېدى، نو جبرئيل ؑ و آنحضرت ﷺ ته عذر وكړى چي زه تر دې ځايه لوړ طاقت د پرواز نه لرم، چي شيخ سعدي رحمه الله دا موضوع داسي بيان كړې ده:

چنان گرم درتيه قربت براند .... كه درسدره جبرئيل از وباز ماند
بدو گفت سالار بيت الحرام .... كه اى حامل وحى برتر خرام
بگفتا فراتر مجالم نماند .... بماندم كه نيروى بالم نماند
اگر يک موى برتر پرم .... فروغ تجلى بسوزد پرم

دا د قدرت الهي او شرافت نبوي حال دى چي ملكه مقربه له دتګ او پرواز څخه عاجزه سوه او آدم زاد سيد نوع البشر ﷺ په پنځوس زره د نور په حجابو كي پورته

ولاړې، د جامي رحمه الله د معراج د شپې يو بيت وا ورئ:

شد از سبو حيان گردون صدا ده .... كه سبحان الذى اسرى بعبده

**فائده:** د بغوي رحمه الله پر توجيه د خمسين الف سنة ضمير د اليه راجع دى و مكان ته د ملكي يعني جبرئيل عليه السلام يعني المكان الذى امره الله تعالى ان يسرح اليه.

**درويش وايي:** چې روح البيان توجيه د الف سنة او د خمسين الف سنة لكه بغوي رحمه الله كړې ده، ده هم بيان كړې ده، وروسته يې ويلي دي يقول الفقير قد اختلف العلماء في تفسير هذه الآية على وجوه شتى وسكت بعضهم تفويضًا لعلمها الى الله تعالى حيث ان في كل ما ذكروا فيها اى في تفسيرها نوعًا من الجرح ويشعر بشيئ من القصور فالتفويض اليه تعالي اسلم من جميع ما ذكروه انتهى بعبارته.

او مظهري رحمه الله او روح المعاني ددې دوو آيتو په تفسير كې ډېر طويل طويل بيانونه كړي دي لايناسب نقلها لمتعلمي التفسير الايوبي، فتدبر.

تنبيه لتائيد قول روح البيان: اخرج عبد الرزاق وسعيد بن المنصور وابن المنذر وابن ابى حاتم وابن الانباري في المصاحف والحاكم وصححه عن عبد الله بن ابى مليكة، قال دخلت على ابن عباس رضي الله عنه انا وعبد الله بن فيروز مولى عثمان بن عفان رضي الله عنه، نو عبد الله بن فيروز له ابن عباس رضي الله عنه څخه پوښتنه وكړه ددې قول د خداى يدبر الامر من السماء الى الارض ثم يعرج اليه في يوم كان مقداره الف سنة ابن عباس رضي الله عنه ورته وويل چې ما يوم مقداره خمسين الف سنة يعني چې دا آيت به څه په كوې چې پنځوس زره كاله پكښې ذكر سوي دي، هغه سړي ورته وويل چې ته به تفسير د دواړو راته وكړې، فقال عثمان ابن عفان رضي الله عنه دا دوې ورځې دي چې خداى پاك په خپل كتاب ذكر كړي دي الله تعالى اعلم بها واكره او زه مكروه بولم ان اقول في كتاب الله تعالى ما لا اعلم انتهى.

**درويش وايي:** چې ددې حديث مفاد دادى چې تفويض د علم ددې دوو ورځو و خداى تعالى وكړل سي بهتره ده، ولې زه علم نه پر لرم، راوي وايي چې بيا مونږ عبد الله بن المسيب ته ورغلو، نو د هغه څخه اتفاقًا يوه سړي پوښتنه وكړه ددې دوو ورځو په باره كې ابن المسيب هيڅ نه ورته وويل، راوي وايي چې ما ابن المسيب ته قول د ابن عباس رضي الله عنه بيان كړى، فقال ابن المسيب هذا ابن عباس رضي الله عنه چې

منع یې وکړه له بیان څخه ددې دوو ورځو وهو اعلم مني، نو زه به څه بیان درته وکړم انتهی. والحاصل ان حبر الامة سید المفسرین ابن عباس رضي الله عنه ددې دوو ورځو له تفسیر څخه ډډه وکړه او تفویض د علم یې و خدای جل جلاله ته وکړی او ابن المسیب هم د ابن عباس رضي الله عنه رایه اختیار کړه، نو دا معلومه سوه چې تفویض د علم الی الله اسلم وجوه البیان لهذین الآیتین فافهم.

والفقیر بعد بیان ماقالوا في تفسیر الیومین المذکورین یختار طریق التفویض الی الله عزوجل.... مصرع: وللناس فیما یعشقون مذهب.

ذٰلِكَ عٰلِمُ الْغَيْبِ وَالشَّهَادَةِ الْعَزِيزُ الرَّحِيمُ ﴿٦﴾

دغه مدبر د اسمانو او د مځکي ومابینهما دا مبتداء ده خبره (عالم الغیب) چې خبر دی په پټو شیانو یعني له خلکو څخه والا فلا غیب عن الله عزوجل (والشهادة) چې حاضر وي و خلکو ته فیدبر الامور کلها علی حسب حکمته (العزیز) چې غالب دی یعني چې مانع د ارادې دده څوک نسي کېدای (الرحیم) مهربان دی پر بنده ګانو په تدبیر کي خپل تفضلاً واحساناً حتی پر مؤمنانو او کافرانو په دنیاوي تدبیر کي .... بیت:

ای کــــریمی که از خـزانه .... گبر وترسا وظیفه خور داری
دوستان را کجا کنی محروم .... تـو که با دشمنان نـظر داری

**فائده**: دا دوه لفظه یا صفتان دي د عالم الغیب والشهادة یا خبر ثان او ثالث لذالک.

الَّذِيٓ أَحْسَنَ كُلَّ شَيْءٍ خَلَقَهُۥ

**یوه سه**: چې موصول سره د صله یا صفت دی بعد الصفتین المذکورتین یا خبر رابع دی یعني چې ښه یې ورکړی دی هر شی چې خدای ج پیدا کړي دي.

**یوه سه**: چې خلقه پر صیغه د ماضي صفت دی د شیئ. والمعنی بالفارسیة نیکو کرد هر چیزی را که بیافرید، یعنی بیار است بروجه نیکو بمقتضای حکمت، او په پښتو یې معنی داده چې هر شی چې خدای ج پیدا کړی دی و هغه ته یې ښه صورت ورکړی دی موافق دده د بنیه سره، مثلاً د بهائمو او د مراغانو پښې

اوړدې دي او غاړي يې هم اوږدې دي تاچي دوی ته مشکل نسي پيدا د خپل قوت او غذاء په باره کي وکذالک کل عضو من اعضاء الانسان مقدر لما يصلح له معاشه که څه هم متفاوت دي اشکال د بهائمو او مرغانو او انسانانو په حسن او خلقت کي کما قال الله تعالى: لَقَدْ خَلَقْنَا الْإِنسَانَ فِي أَحْسَنِ تَقْوِيمٍ، ولي انسان که هر څو بدرنگه وي لکن خپل صورت په صورت د خره يا بيزو نه بدلوي.... شعر:

کرد آنچه درجهان شايد .... کرده آنچنانکه می آيد
از تو رونق گرفت کار همه .... که توئی آفريدگار همه
نقش دنيا بلوح خاک از تست .... دل دانا وجان پاک از تست

**درویش وايي:** چي مخاطب په دې ابياتو کي خدای ﷻ دی، فافهم.

وَبَدَأَ خَلْقَ الْإِنسَانِ مِن طِينٍ ﴿٧﴾

او شروع کړې ده د خلق د انسان (والمراد به ابو البشر آدم ﷺ) له خټو څخه.

ثُمَّ جَعَلَ نَسْلَهُ مِن سُلَالَةٍ مِّن مَّاءٍ مَّهِينٍ ﴿٨﴾

وروسته يې گرځولی دی نسل او اولاد دده (من سلالة) ای نطفة، له اوبو ضعيفو څخه چي په پښتو يې مني بولي.

**فائده:** نطفې ته سلاله وايي له دې سببه چي له انسانه رابهېږي.

ثُمَّ سَوَّاهُ وَنَفَخَ فِيهِ مِن رُّوحِهِ

بيا يې برابر کړی انسان مذکور دی چي اعضاء يې ورکړه على ماينبغي، بيا يې داخل کړی په انسان مذکور کي.

**پوهېږه:** چي ضمير د روحه يا راجع انسان ته دی او يا راجع دی الذی احسن آه ته يعني خدای ج څندي مراد ؤ واضافة الروح اليه تعالى تشريف المضاف كما يقال للكعبة المباركة بيت الله.

وَجَعَلَ لَكُمُ السَّمْعَ وَالْأَبْصَارَ وَالْأَفْئِدَةَ

او پيدا کړي دي خدای ج (التفات من الغيبت الى الخطاب) ستاسي د نفع لپاره (فاللام للفائد) اوربدل، او سترگي او زړونه، جمع د فؤاد ده، چي تاسي په سمع شی

واورئ او په ستر گو شی وويني او په زړو تاسي ادراک د شي وكړئ، وهذا دليل باهر على عظيم قدرته تعالى حيث كان الانسان نطفة بغير سمع وبصرة وتعقل.

**تنبيه**: فقير په ترجمه كي د آيت داسي وويل چي ثم سواه اى الانسان المذكور يا د نفخ فيه په ترجمه كي هم وويل اى الانسان المذكور په دي دواړه ځايه د فقير د انسان مذكور څخه آدم عليه السلام ؤ يعني دواړه ځايه يې ضمير و آدم عليه السلام ته راجع كړى، لكن څرنګه چي د آدم ذكر بعيد دى او وروسته دا عبارت هم راغلى دى ثم جعل نسله آه واقع سو، نو اولى داده چي ضمير د سواه ونفخ فيه ونسل ته راجع سي، نو د آيت معنى داسي ده ثم سواه اى نسل د آدم يعني في رحم امه يعني د مور په رحم كي يې اعضاء وربرابر كړه من العظام وغير تلك العظام ثم نفخ فيه يعني د مور په رحم كي روح پكښې داخل كړى چي ژوندى انسان وګرځېدى، نو پر دې تقدير د من روحه ضمير راجع دى و انسان ته في رحم امه، او يا راجع دى و الذي احسن ته آه، كمامر او پر دې تقدير هم اضافت لپاره د تشريف د مضاف د هذا تقرير هذا المقام بعونه تعالى والله اعلم.

**پوښتنه**: د سمع لفظ يې مفرد راوړى، اود ابصار لفظ يې جمع راوړى، والافئدة ايضًا فرق يې څه دى؟

**ځواب**: لفظ د سمع مصدر دى په معنى د قوة سامعه يا عضو مخصوص (يعني غوږ) نه دى راغلى او په مصدر كي مفرد، تثنيه او جمع برابر دي، او د بصر لفظ كه څه هم مصدر دى (يعني په معنى د ليدلو) لكن دېر استعمال يې په قوة سامعه كي دى، نو ځكه يې جمع راوړى، او فؤاد خو زړه ته وايي هغه عضو مخصوص دى نو ځكه هغه يې جمع راوړى فتدبر.

قَلِيلًا مَّا تَشْكُرُونَ ۝٩

**پوهسه**: چي ما زائد دى لپاره د تاكيد د قلت دى او قليلاً يا مفعول مطلق دى اى شكرًا قليلاً يا ظرف زمان دى اى زمانًا قليلاً تشكرون، يعنى شكر د معطي د دغو جليله ؤ وايا ست يعني فتوحدونه وتعبدونه.

**فائده**: روح المعاني او روح البيان وايي چي قلت په معنى د عدم دى والمخاطب بهذه الآية الكفار وهو بيان لكفرهم بتلك النعم وربها.



Scanned by CamScanner

وَقَالُوٓا۟ أَءِذَا ضَلَلْنَا فِى ٱلْأَرْضِ أَءِنَّا لَفِى خَلْقٍ جَدِيدٍۭ ۚ

(وقالوا) اى المشركين المنكرين للبعث بعد الموت وفيه التفات من الخطاب، في قوله قليلاً ماتشكرون الى الغيبة.

**درويش وايي:** چي والالتفات مطلقًا من محاسن اللسان العربي وله ستة اقسام متبينة مع الامثلة في علم البيان.

"أاذا ضللنا في الارض" آيا چي موږ ورک سوو په مځکه کي اى بعد الدفن فيها او زموږ غوښي او هډوکي په مرور د زماني خاوري سي او په نورو خاورو د مځکي ګډي سي، اى نبعث ونجدد خلقًا، قائل ددې قول که څه هم ابى بن خلف ولکن اسناد يې ټولو ته وکړى لرضائهم بذالک القول نحو بنوا فلان قتلوا والقاتل واحد منهم، والاستفهام لانكار البعث بعد الموت.

بَلْ هُم بِلِقَآءِ رَبِّهِمْ كَـٰفِرُونَ ۝١٠

اى بما بعد الموت من الجزاء كافران دي، نو مراد له لقاء څخه ټوله امور د آخرت دي نه لقاء بالمعنى المتعارف.

**فائده:** اضراب په بل سره لپاره د مبالغې دى يعني يوازي دوى د بعث بعد الموت څخه نه دى منكر بلكې د ټولو امورو څخه د آخرت من دخول الجنة او النار او منكر دي.

قُلْ يَتَوَفَّىٰكُم مَّلَكُ ٱلْمَوْتِ

ووايه دوى ته (يامحمد ﷺ) چي ستاسي روحان كامل اخلي بحيث لايبقى منهما شيئ او يا معنى داده چي ستاسي د ټولو روحان به قبض کوي عزرائيل ؑ، بغوي رحمه الله له عکرمه رحمه الله څخه روايت کړى دى، عن ابن عباس رضي الله عنه قال قال رسول الله ﷺ الامراض والاوجاع كلها بريد الموت ورسوله عطف تفسير دى (اى قاصده) فاذا حان الاجل (چي وخت ورسيږي د اجل اتى ملک الموت، نو ملک الموت وبنده ته وايي چي اى بنده څونه دېر خبر بعد الخبر او رسول بعد الرسول راغله، او تا عبرت نه اخستى او نه دي ما بعد البعث تيارى نيوله او شيطان دي په زړه طول الامل راسخ کړى، اوعزرائيل ؑ ورته وايي: انا خبر ليس بعدى خبر وانا الرسول ليس بعدى رسول اجب ابک طائعًا او مكرهًا يعني که په خوښه وي او که په زوره.... مثنوي:

بس رجال از نقل عالم شادمان ..... وزبقايش شادمان اين كودكان



Scanned by CamScanner

فاذا اقبض روحه، نو قربيان بغاري كړي، عزرائيل ؑ ورته ووايي چي پر چا ژاړئ والله ما ظلمت له اجلاً (يعني چي تر اجل مسمى د مخه ما دده روح نه دی قبض كړی) ولا اكلت له رزقًا (نه ما خوړلی دی دده رزق بلكې رزق موعود يې ختم سو) بل دعاء ربه (خدای ج وغوښتی) فليبك الباكي على نفسه (هر څوک چي ژاړي پر خپل ځان دي ژاړي) فوالله لي عودات وعودات حتى لا ابقى فيكم احدًا (قسم په خدای ج دی چي زه بيا راځم بيا راځم تر هغه وخته پوري چي يو ستاسي به ژوندي نه پرېږدم)

**بوه سه:** چي ملک جسم لطيف دی نوراني يتشكل باشكال مختلفة. وفي الصحاح توفى هـ الله ای قبض روحه والوفات الموت.

## الَّذِي وُكِّلَ بِكُمْ

چي مقرر دی د خدای ﷻ له خوا څخه پر تاسي باندي يعني پر قبض د روحانو.

**فائده:** ملک الموت لايعلم بوقت وفات احد مالم يؤمر به، روايت كړی دی ابن الدنيا له ابن جريج څخه بلغنا انه يقال (ای من جانب الله) لملک الموت اقبض فلانًا في وقت كذا في يوم كذا، وروی احمد وابن ابی الدنيا عن معمر بلغنا ان ملک الموت لايعلم متى يحضر اجل الانسان حتى يؤمر بقبض روحه.

ترجمه: هغه ملک الموت چي ګمارل سوی دی له جانبه د خدای ج په قبض سره د ارواحو ستاسي، وله اعوان من الملائكة.

**فائده:** ملک الموت يظهر للمؤمن باحسن صورة وللكافر باقبح صورة تفسير مظهري ج وايي اخرج ابن ابی الدنيا عن ابن مسعود وابن عباس رض.

**درويش وايي:** چي ابن ابی الدنيا او د ابن مسعود او ابن عباس رض تر منځ ډېري واسطې سته چي مظهري نه دي ذكر كړي، نو فقير يې د صحت ضمانت نسي كولای والله اعلم. مظهري ج وايي په روايت د ابن مسعود او د ابن عباس رض چي ابراهيم ؑ ته خدای پاک د خليل الله منصب وركړی، نو ملک الموت دا سوال له خدای ج څخه وكړی چي ماته اجازه راكړه چي ابراهيم ته زېری د منصب د خليليت ورسوم او خدای پاک اجازه هم وركړه، نو ملک الموت ابراهيم ته راغلی او زېری يې پر وكړی فقال ابراهيم الحمد لله بيا ابراهيم ؑ ملک الموت ته وويل چي ته په ماووينه چي ته څرنګه قبض كوې روحان د كافرانو، ملک الموت ورته ووېل

لاتطيق رؤية ذالک يعني ته یې طاقت د ليدلو نه لرې، ابراهیم ؑ ورته وویل طاقت یې لرم، نو ملک الملک ورته وویل چې مخ یوې خواته واړوه، وروسته چې ابراهیم ؑ وکتل یو تور سړی ولاړ دی چې سر یې تر اسمانه رسیږي او تر خوله یې لمبې د اور راوځي او هر وېښته پر بدن دده په صورت د سړي دی چې د هغو تر خوله هم لمبې د اور وځي، نو ابراهیم ؑ چې دا سانحه ولیدل بېهوشه سو، ثم افاق ملک الموت یې په صورت اولی کي ولیدی، نو ابراهیم ؑ ملک الموت ته وویل یا ملک الموت لو لم یلق الکافر من البلاء والحزن غیر صورتک لکفاه يعني دا صورت لیدل دده د عذاب لپاره کافي دی، بیا ابراهیم ؑ ورته وویل کیف تقبض ارواح المؤمنين؟ ملک الموت ورته وویل چې ته یوه خواته مخ واړوه، ابراهیم ؑ چې مخ واړاوه که ګوري یو سړی یې ولیدی بنه ځوان احسن الناس وجهًا واطيبهم ریحًا في ثیاب بیض، نو ابراهیم ؑ عزرائیل ملک الموت ته وویل لو لم یر المؤمن عند الموت من قرة عین والکرامة الاصورتک هذه یکفیه انتهی روایة المظهري.

**درویش وايي:** چې ما ډېر تلاش وکړی په هیڅ تفسیر کي مې دا قصه په مذکوره الفاظو ونه لیدل فالله اعلم، وقصاری مابینه المفسرون في قبض روح المؤمن یکون ملک الموت باحسن صورة وفي قبض روح الکافر باقبح صورة وانتنها وهذا لقدر صحیح نقله جمع کثیر من المفسرين رح، حسین کاشفي رح وايي عجب از آدمی که باوجود چنین حریفی (يعني عزرائیل ؑ) درکمین چگونه لاف آسایش تواند زد .... بیت:

آسودگی مجوی که از صداست اجل .... کس زن انداده اند برات سلمی
یک لحظه صورت نه بندد امان .... چو پیمانه پرشد بدور زمان

يعني چې د عمر پیمانه ډکه او اجل ورسیږي، بعض علماء وايي چې غفلت د زړو د خلګو نه وايي، خدای ج به نه وای حواله کړی قبض د ارواحو ددوی ملک الموت ته، خیر سباح قدس سره چې یو له عارفانو د رب العزت ؤ ناجوړی ؤ، ملکل الموت غوښتل چې دده روح قبض کړي، دی په ځان پوه سو چې وخت د قبض دي ورسېدی په دغه وخت کي یې وویل یا ملک الموت ته یو ګړی صبر وکړه چې زه د ماښام فریضه اداء کړم، ولي چې د فرمان الهي زمانه له لاسه وځي، وفرمان تو که روح بردن است از دست نمی رود چون نماز اداء نمود سر بسجده

نهاد گفت الهی آن روز که این ودیعت برمن نهادی (یعنی لمونځ) زحمت ملک الموت درمیان نبود چه باشد که امروز بی زحمت او روح من بستانی این بگفت وجان بداد (یعنی تولی قبض روح او بقدرت خود کرد.

درویش میگوید که این حال محبان وعاشقان خدا است انکار ازان نباید کرد، واین حال منافی آیت کریمه نیست، اذا جآء اجلهم لایستأخرون ساعة ولایستقدمون، مصرع: با کریمان کارها دشوار نیست.

**فائده:** في موت سوی الادمین، روایت کړی دی ابو الشیخ والعقیلي في الصفاء والدیلمي عن انس رضی الله عنه قال قال رسول الله ﷺ آجال البهائم وخشاش الارض کلها في التسبیح فاذا انقضی تسبیحهه قبض الله ارواحها ولیس لملک الموت في ذالک شيئ، او دا حدیث بل روایت هم لري چي خطیب د ابن عمر رضی الله عنه نه روایت کړی دی، مظهري رحمه الله وایي وکل ملک الموت واعوانه بقبض ارواح للانسان اکرامًا للمؤمنین واهانة وتعذیبًا للکافرین.

**درویش وایي:** چي ددې اکرام د مؤمنانو او تعذیب د کافرانو د مخه تېر سو.

**فائده:** خطیب بغدادي رحمه الله په خپل تفسیر کي له ضحاک رحمه الله او هغه له ابن عباس رضی الله عنهما ځخه روایت کړی دی چي قبض د روحانو د ذوی الروح څلور ملکي دي (۱) پر قبض د روحانو د بني آدم مسلطه ده (۲) وملک في الجن (۳) علی الشیاطین (۴) وملک علی قبض ارواح الوحش والطیر والسباع والحیتان حتی النمل، فهم اربعة.

**فائده:** الملائکة یموتون في الصعقة الاولی یعني په اول نفخه کي او ملک الموت یې قبض د ارواحو کوي ثم یقبض الله روح ملک الموت.

**درویش وایي:** چي مظهري دا حدیث رانقل کړی دی او بیا یې ویلي دي چي ددې حدیث په سند کي جویبر راوي سته چي ضعیف دی جدًا او حدیث د ضحاک له ابن عباس رضی الله عنهما په منځ کي د اسنادو راویان نه دي راوړل سوي.

ثُمَّ إِلَىٰ رَبِّكُمْ تُرْجَعُونَ ﴿١١﴾

وروسته تر قبض الروح ستاسي رجوع و خدای جل جلاله ته ده، معنی داده چي هغه ځای ته چي خدای جل جلاله معین کړی ؤ ملکو ته چي اعوان د ملک الموت وه چنانچه د مؤمنانو روحان ملکي د رحمت وړي د اسمانو پر خوا چي اووم اسمان ته ورسېږي

هغه د مؤمنانو د روحانو قرارګاه ده، او د کافرانو روحان ملکي د عذاب ورې د اسمان پر خوا او اول اسمان ته چي يېړ ورسوي دروازې د اسمان ورته بندي کړي فلا يفتح لهم، نو بېړ مځکي ته راوغورځوي. او معنى د آيت داده چي ترجعون بعد الحشر ژوندي وځای ته د حساب نو هر چا ته من المؤمن والكافر والمطيع والعاصي جزاء ددوی د عملو ورکړل کېږي.

وَلَوْ تَرَىٰٓ إِذِ ٱلْمُجْرِمُونَ نَاكِسُوا۟ رُءُوسِهِمْ عِندَ رَبِّهِمْ

که ته ووينې يا محمد (ﷺ) چي مجرمان ای المشركين چي دوی به په دنيا کي ويله (ااذا ضلنا في الارض ائنا لفي خلق جديد) چي ځړولي به يې وي له خجالته خپل سرونه د خپل رب په وړاندي له پښېماني. او حسرت څخه.

**پوه سه:** چي بعض مفسرين وايي چي "لو" شرطي دی او جزاء يې محذوفه ده بعد تمام الكلام تقديره لرئيت امرًا فضيعًا (يعني خوفناکه حالت) او بعض د مفسرينو وايي چي کلمه د لو لپاره د تمنى ده يعني کاشکي چي ته ووينې.

**پوښتنه:** کلمه د "لو" او د اذ خو لپاره د ماضي دي او دا مذكوره امور په آيت کي مستقبل دي في يوم القيامة؟

**ځواب:** هغه چي متحقق وي په علم کي د خدای ج که څه هم مستقبل وي لکه ماضي متحقق الوقوع دی لامحالة.

رَبَّنَآ أَبْصَرْنَا وَسَمِعْنَا فَٱرْجِعْنَا نَعْمَلْ صَٰلِحًا إِنَّا مُوقِنُونَ ﴿١٢﴾

دوی وايي (دا جمله حال ده له فاعل څخه د ناکسوا يا حال مرادف دی د ناکسوا يا جمله استينافيه بيانيه ده په جواب کي ددې سوال مايقولون (ربنا ابصرنا) بتقدير النداء ای خدايه موږ وليدلې په سترګو حشر بعد الموت چي په دنيا کي موږ ځندي منکر ؤ (وسمعنا) او موږ واورېدی له تا څخه تصديق د رسول خپل چي موږ يې په دنيا کي تكذيب کاوه (فارجعنا) موږ بيرته رد کړه دنيا ته موږ به عمل صالح کوو لکه چي ستا رسول موږ ته ويل، زموږ اوس يقين دی پر هغه شي چي موږ پکښي شک کاوه بلکي منکر وو يعني البعث بعد الموت.

**پوه سه:** چي مفعول د ترى محذوف دی دل عليه ناكسوا رؤسهم والتقدير لو

ترى نكوس رؤسهم، يو محقق شاعر شايد سعدي رح به وي ددې حال د مشركانو دا خوارۀ ابيات ويلي دي:

سر از جيب غفلت براور كنون .... كه فردا نماند بخجلت نگون
كنونت كه چشمت اشكى ببار .... زبان در دهانست عذرى بيار
نه هـــموار باشد روان دربدن .... نه هموار گردد زبان در دهن

وَلَوْ شِئْنَا لَآتَيْنَا كُلَّ نَفْسٍ هُدَاهَا وَلَٰكِنْ حَقَّ الْقَوْلُ مِنِّي

كه زمونږ اراده وای (لاتينا كل نفس) اى العاقلة من الجن والانس "هداها" يعني هدايت د هغه نفس (لكن حق القول مني) اى ثبت وتحقق قولي وسبقت كلمتي چې ما وويل وابليس ته چې ده وويل لاغوينهم اجمعين الاعبادك منهم المخلصين فالحق والحق اقول لاملئن جهنم منك ومن تبعك اجمعين.

**پوه سه**: چې مفعول د شئنا محذوف دى چې جواب د لو دلالت پر كوي. والتقدير لوشئنا ان نؤتى كل نفس هداها اى مايهتدى به الى الايمان والعمل الصالح وخلق الانقياد لرسوله قلبًا وقالبًا.

لَأَمْلَأَنَّ جَهَنَّمَ مِنَ الْجِنَّةِ وَالنَّاسِ أَجْمَعِينَ ۝١٣

زه به ضرور ډكوم جهنم له جن او انس څخه ټوله.

**فائده**: تقديم د الجنة يې تر ناس وكړى ولي په خطاب كې د ابليس مقدم جن ؤ تر انس او هورې چې يې جن مقدم كړى لانه الاوفق لمقام تحقير ذالك المخاطب عليه اللعنة، او بعض مفسرين وايي چې تقديم د جن دوارۀ ځايه لپاره ددې چې اهل جهنم له جن څخه اكثر دى تر اهل جهنم من الانس، هر آئينه او په تحقيق زه هرو مرو ډكوم دوږخ د جنياتو او د انسانانو څخه.

**پوه سه**: چې لام په الجنة والناس كې لپاره د عهد دى، والمراد المجرمون والكافرون من الفريقين الذين مرذكرهم (اجمعين) لپاره د تاكيد دى او دا معنى د هغه حديث صحيح چې مسلم يې روايت كړى دى عن عائشة رضي الله عنها قالت قال رسول الله ﷺ ان الله خلق للجنة اهلاً خلقهم لها وهم في اصلاب آبائهم وخلق للنار اهلاً خلقهم لها وهم في اصلاب آبائهم.

**بوه سه:** چي لام د لاملئن جواب د قسم محذوف دی، له شبلي نعماني رح څخه روایت دی چي دده څخه چا د دې آیت پوښتنه وکړه، ده وویل یا رب املأ نارک من الشبلي واعف عن عبیدک.

**درویش وایي:** چي اهل الله د خدای رح رضا غواړي د جنت او دوزخ غم نسته ورسره، د سلطان العارفین بایزید بسطامي قدس سره السامي څخه منقوله ده چي ده په یو مناجات کي داسي وویل چي: خدایه که بایزید په دوزخ کي وي او ته خندي راضي یې، بایزید ته به هغه دوزخ جنت معلومېږي، او که بایزید په جنت کي وي او ته څندي ناراضه یې، بایزید ته به هغه جنت دوزخ ایسي، ددې وینا ژوندی مثال په موږ انسانانو کي دادی چي یو سړی د چا کور ته مېلمه ورسي او هغه صاحب البیت ساده ښوروا مېلمه ته راوړي او په ډېر ورین تندي او خوش طبعي ډوډی د مېلمه سره وخوري، نو شک نسته چي مهمان ته دا ساده ښوروا لکه ورجي وغوښي، سالن، پیرني وغیره ده، او که د چا کره مېلمه ورسي او ښه ډول ډول خواره یې پخ کړي وي او صاحب البیت په ډېر تریو تندي ور ووځي او د مېلمه د مخه زوی په چپلاخه ووهي او نور کارونه ددې قسم څخه وکړي، نو هغه مېلمه ته دا ډوډی لکه زهر داسي ایسي.

فَذُوقُوا بِمَا نَسِيتُمْ لِقَاءَ يَوْمِكُمْ هَٰذَا ۚ

"فذوقوا" لیس من ذوق الفم بل بمعنی جربوا والفاء للسببیة یعنی لما حق القول مني کما مر، نو ملکي چي خازنان د دوزخ دي دوی ته ووایي وروسته تر دخول د دوزخ ذوقوا یعني عذاب جهنم "بما نسیتم" کلمه د باء سببیه ده او کلمه د ما مصدریه ده ای بسبب نسیانکم، ملاقات ددې ورځي یعني البعث والرجوع الی الله ای الی موقف حسابه تعالی، هذا صفت دی د یومکم.

إِنَّا نَسِينَاكُمْ ۖ وَذُوقُوا عَذَابَ الْخُلْدِ بِمَا كُنتُمْ تَعْمَلُونَ ﴿١٤﴾

موږ تاسي هېر کړلاست یعني پرې مو ښولاست (چونکه حقیقت نسیان پر خدای رح محاله ده، نو معنی نسیناکم ترکناکم من الرحمة العامة او یا ترکناکم في العذاب) او وړئ عذاب د همېشه والي په دوزخ په سبب د هغه چي تاسي عمل کاوه په دنیا کي من الکفر والمعاصي.

**فائده**: دا آیت چي یې مکرر کړی لپاره د مزید نا امیدی د دوی له خلاصون څخه د اور، او بله فائده یې داده چي تصریح یې په مفعول سره وکړه یعني عذاب الخلد چي په اول ذوقوا سره مقدر ؤ، او بله فائده یې داده چي بیان د علت د ذوقوا بیان کړی یعني الکفر و المعاصي لکه د مخه چي یې تعلیل په بما نسیتم آه سره بیان کړی.

اِنَّمَا يُؤْمِنُ بِاٰيٰتِنَا الَّذِيْنَ اِذَا ذُكِّرُوْا بِهَا خَرُّوْا سُجَّدًا

ایمان نه راوړي په آیاتو سره مګر هغه کسان چي دوی ته پند او وعظ ورکړل سي په آیاتو سره، دوی ولوېږي پر مخانو له خوفه د عذاب د خدای ج سجدًا حال دی ای ساجدین.

وَّسَبَّحُوْا بِحَمْدِ رَبِّهِمْ وَهُمْ لَا يَسْتَكْبِرُوْنَ ۩ ﴿۱۵﴾

"وسبحوا" ای نزهوا الله عما لایلیق به تعالی کالعجز عن البعث بعد الموت یعني متلبسین بحمده تعالی یعني حامدین له شکرًا علی ما وفقهم الاسلام یعني یقولون سبحان الله وبحمده، او دوی کبر نه کوي له ایمان او طاعت څخه د خدای ج دا آیت د سجدې دی.

تَتَجَافٰى جُنُوْبُهُمْ عَنِ الْمَضَاجِعِ يَدْعُوْنَ رَبَّهُمْ خَوْفًا وَّطَمَعًا ۡ وَّمِمَّا رَزَقْنٰهُمْ يُنْفِقُوْنَ ﴿۱۶﴾

"تتجافی" حال دی من فاعل سبحوا پورته وي یعني لپاره د تهجد د لمانځه، جنوبهم ای بغلونه د دوی د هغه ځایه چي دوی پر بیده وه، دوی عبادت کوي د خدای جل جلاله حال من من الضمیر المجرور في جنوبهم وهو الفاعل في الحقیقة تتجافی "خوفًا" له سببه د عذاب د خدای ج او له غضب څخه د خدای ج وطمعًا او طمع یې هم وي د ثواب او د رحمت د خدای ج.

**فائده**: ځای د سجدې دی وهم لایستکبرون بالاتفاق، کاشفي ج وایي: این سجده نهم است بقول امام اعظم رح، او امام شافعي رح وایي چي دا لسمه سجده ده من سجود القرآن، حضرت شیخ اکبر قدس سره وایي: که این را سجده تذکر وساجد باید که متذکر گردد آن چیزی را که ازان غافل شده بود وتصدیق کند دلالات وجود وحدانیت خدا را که دلالتها درهمه اشیا موجود است.. سعدی رح:

برگ درختان سبز درنظر هوشیار ..... هر ورقی دفتریست معرفت کردگار
وقال محقق آخر:
همهٔ ذرات از مهٔ تا بماهی ..... بوحدانیتش داد گواهی
همه اجزای کون از مغز تا پوست ..... چو وابینی دلیل وحدت اوست

**فائده:** ینبغی ان یدعوا الساجد في سجدة هذه الآیة بما یلیق بآیاتها ففي هذه الآیة یقول اللهم اجعلني من الساجدین لوجهک المسبحین بحمدک واعوذبک من ان اکون من المستکبرین عن امرک.

**پوه سه:** چي کلمه د من په مما کي لپاره د تبعیض ده، او مراد له انفاق څخه صدقه ده که فرضي وي که نفلي، فائده د من تبعیضي داده چي ټوله مال دي سړی نه صرفوي ولي که دی ټوله مال صرف کړي په لاره کي د خیر، نو چي مسکین سي پر صرف المال کله به پښېمانه وي او پر فقر به بې صبري څني کېږي.

**درویش وایي:** وهذا یختلف باختلاف الاشخاص، ولي ابوبکر رضي الله عنه ټوله مال په غزاء کي د تبوک علیه الصلوة والسلام ته راوړی علیه الصلوة والسلام رد نه کړی.

**درویش وایي:** چي هناد له اسماء بنت زید رضي الله عنها څخه روایت کړی دی قال قال رسول الله ﷺ سره جمع به کړي خدای پاک د قیامت په ورځ خلگ په یوه مځکه کي چي د نعره کونکي اواز اوري او په سترګو ټوله د ټولیو معلومېږي، یعني ملکه ولاړه سي او ناره کړي چېري دي هغه کسان چي حمد د خدای ج یې وایه في السرا والضراء فیقمون وهم قلیل فیدخلون الجنة بغیر حساب، بیا هغه منادی ناره کړي این الذین کانت تتجافی جنوبهم عن المضاجع فیقیمون وهم قلیل فیدخلون الجنة بغیر حساب ثم یقوم سائر الخلائق یعني ماسوی د فوق الذکر دوو ډلو څخه، نو د هغو سره حساب شروع سي.

وعن ابی الاشعري رضي الله عنه قال قال رسول الله ﷺ ان في الجنة غرفًا (جمع د غرفه ده بالاخانې) چي ظاهر یې له باطنه څخه معلومېږي او باطن یې له ظاهره څخه، خدای ج اراسته کړي دي د هغو کسانو لپاره چي خبري په نرمی کوي او مېلمه ته ډوډی ورکوي، او همېشه نفلي روژې نسي او د شپې لمونځ کوي، والناس ینام رواه البیهقي في شعب الایمان او ترمذي هم ورته روایت کړی دی، له ابو هریره رضي الله عنه

څخه روایت دی چي مسلم راوړی دی قال قال رسول اللهﷺ افضل الصيام بعد رمضان (يعني بعد صيام شهر رمضان) شهر الله المحرم (يعني روژي دي د محرم د مياشتي چي پښتانه يې د حسن حسين مياشت بولي) وافضل الصلوات بعد الفريضة صلوة الليل (يعني في جوف الليل چي مراد څندي د تهجد لمونځ دی) وعن ابن مسعودؓ قال قال رسول اللهﷺ عجب ربنا عن رجلين، يعني د دوو کسانو څخه خدای پاک تعجب کوي.

**پوه سه:** چي تعجب په معنی اصلي چي ادراک د امر عجيب دی پر خدای جل جلاله محال دی، نو مراد څندي اظهار د رضی او محبت دی.

(۱) رجل ثار عن فراشه و وطئائه ولحافه (چي ولاړ سي د خپلي نالی يا کوربچي څخه او له هغه ځايه چي دی پر پروت ؤ او د خپل تلتک څخه) من بين حبه واهله (او له منځه د خپل محبوب او اهل چي عبارت له زوجې څخه دی) الی صلوته يعني صلوة التهجد، فيقول الله لملائکته انظروا الی عبيدي ثار عن فراشه ووطائه بين حبه واهل رغبة فيما عندي وشفقة مما عندي (يعني دده رغبت او محبت دی د هغه ثواب چي زما سره سته يعني الجنة، او دی بېرېږي د هغه څه څخه چي زما په قدرت کي سته من العذاب والنار)

(۲) او بل هغه سړی چي في سبيل الله يعني په غزاء کي وي، نو دی او ملګري تو له شکست وخوري يعني له کافرانو څخه، نو دا سړی چي فکرو کړي پر ماتخونده عذاب وي په شکست او تېښته کي او ما لره به څونده ثواب وي چي بېرته پر دښمن حمله وکړم، فرجع حتی اهريق دمه (نو رجوع وکړي چي وينه يې توی سي يعني شهيد سي، فيقول اللهﷻ لملائکته انظروا الی عبدي رجع فيما عندي وشفقة مما عندي حتی اهريق دمه انتهی.

**درويش وايي:** چي عبد الله بن رواحة الخزرجيؓ په مدح کي د رسول اللهﷺ دا بيت ويلی دی، عن ما رواه البغويؒ عن ابی هريرةؓ:

وفينا رسول الله يتلو کتابه .... اذا انشق معروف من الفجر ساطع

يعني چي سپېدې راوچوي د سهار په لمانځه کي، د معروف معنی مشهور دده

ارانا الهدی بعد العمی فقلوبنا .... به موقنات ان ما قال واقع

موږ يې راوستولو حق لاري ته چي اسلام دی، وروسته تر ړندوالي چي کفر

دی، او هغه خبري چي دی يې کوي من نصر الدين القويم والبعث بعد الموت وغير ذالک واقع کیږي.

يبيت يجافی جنبه عن فراشه..... اذا استثلقت بالكافرين مضاجع
عن فراشه يعني لصلوة التهجد.

وروی احمد والترمذی وصححه، والنسائي وابن ماجه ومحمد بن نصر في كتاب الصلوة وابن جرير وابن ابی حاتم والحاكم وصححه، وابن مردويه والبيهقي في شعب الايمان عن معاذ بن جبل، ده وويل چي زه د رسول اللهﷺ سره په يوه سفر کي يوه ورځ وده مبارک ته نژدې روان وم، ما ورته وويل يا نبي الله ماته خبر راکړه په هغه عمل سره چي زه يې وکړم ما به جنت ته داخل کړي او له اوره به مي لېري کړي؟ عليه الصلوة والسلام وفرمايل: لقد سئلت عن عظيم، يعني د لوی کار پوښتنه دي راڅخه وکړه "وانه يسير" او په حقيقت کي دا کار اسانه دی "على من يسره الله عليه، تعبد الله ولا تشرک به شيئًا وتقيم الصلوة (ای الصلوات الخمسة المفروضة مع مراعات ارکانها وواجباتها وسننها وغير ذالک کما هو معنى اقامة الصلوة، وتؤتی الزكوة وتصوم رمضان وتحج البيت (يعني که زکوة درباندي فرض ؤ او حج د بيت الله ان استطعت اليه سبيلاً) ثم قال الا ادلک على ابواب الخير، الصوم جنة (سپر دی له گناهو څخه) والصدقة تطفی الخطيئة (او صدقه که فرضي وي او که نفلي گناه رژوي) وصلوة الرجل في جوف الليل ثم قرء تتجافی جنوبهم عن المضاجع حتى بلغ يعملون الى اخير الحديث.

او ابو الدرداء او قتاده او ضحاک وايي چي مصداق ددې آيت هغه کسان دي چي د ماخستن او د سهار لمونځ په جماعت وکړي، او حسن وايي چي دا هغه خلک دي چي د ماخستن د لمانځه د مخه نه بدېږي او عبد الله ابن احمد په زواهد کي او ابن عدي او ابن مردويه له مالک بن دينار څخه روايت کوي چي ده وويل سئلت انس بن مالک عن هذه الآية تتجافی جنوبهم عن المضاجع. قال کان قوم من اصحاب رسول اللهﷺ من المهاجرين الاولين يصلون المغرب ويصلون بعدها الى العشاء فنزلت هذه الآية فيهم، او قتاده او عکرمه هم دغه قبلي شان نزول تائيد کړی دی، واخرج ابن جرير عن ابن عباس چي ده ددې آيت معنى داسي بيان کړه يعني تتجافی

جنوبهم آه، چي دوی همېشه د شپې ذکر د خدای ج کوي يا په لمانځه کي يعني التهجد يا په قيام کي يعني چي له ځايه ولاړ سي، او قعودًا او على جنوبهم يعني لايزالون يذكرون الله لكن مع هذا كله من الروايات، روح المعاني وايي چي جمهور د علماء ددې آيت حمل پر هغه مشهور روايت کوي يعني صلوة التهجد، او په فضيلت کي د تهجد ما لايخفى اخبار راغلي، او جمهور د علماؤ رحمهم الله وايي چي افضل د نوافلو د تهجد لمونځ دی. والله اعلم بالصواب.

فَلَا تَعْلَمُ نَفْسٌ مَّآ أُخْفِيَ لَهُم مِّن قُرَّةِ أَعْيُنٍ

هيڅ سړی او څوک خبر نه دی که نبي مرسل وي او که ملک مقرب (وهذا السلب الكلي مستفاد من وقوع النكرة اعنى نفس فى سياق النفي) چي دوی ته پټ په علم کي د خدای ج ساتل سوي دي له هغو نعمتو څخه چي د سرپي سترګي په خونکي کېږي من منازل الجنة وحوراتها وغلمانها يعني چي دوی يې ويني، قال الكاشفي رح في تفسيره الفارسي: از روشناهى چشمها يعنى چيزى كه بديدن او چشمها روشن گردد آه.

**پوه سه:** چي قرة اعين كنايه ده له غايت خوشالۍ څخه په عربو کي، په پښتنو کي وايي سترګي دي روښانه.

**پوه سه:** چي د من بيان دی د ما، وهذا اول مما قال المظهري كلمة من زائدة، وقد جاء في الحديث الصحيح يقول الله عز وجل اعددت لعبادي الصالحين ما لاعين رئت ولا اذن سمعت ولا خطر على قلب بشر اقرؤا ان شئتم فلا تعلم نفس ما اخفى لهم آه رواه بخاري ومسلم.

**درويش وايي:** چي والله اعلم مراد د عباد الصالحين څخه د خدای ج په دې حديث کي ما مر نعوتهم واعمالهم في هذه الآية تتجافى جنوبهم عن المضاجع الى اخيرها، قال السعدي الشيرازي قدس سره:

بدو نيک و ابذل كن سيم وزر .... كه اين كسب خير است وآن دفع شر
ازآن كس كه خيرى بماند روان[1] .... دمادم رسد رحمتش بر روان[2]

---

[1] يعنى صدقه جاريه كالمساجد وتعليم العلوم الدينية وتصانيف في الامور الاسلامية.
[2] يعنى روح ته د هغه

جَزَآءًۢ بِمَا كَانُوا يَعْمَلُونَ ﴿١٧﴾

دا د ما اخفی لهم جزاء او ثواب دی د هغو عملو چي دوی په دنیا کي کول من اعمال الخیر.

**فائده**: جزاء یا منصوب دی مفعول مطلق د فعل محذوف دی یعني یجزون جزاءً یا منصوب علی کونه علت لما سبق، والتقدیر اخفی للجزاء فافهم، ذکر البغوي رحمه الله واخرج الواحدي وابن عساکر من طریق سعید بن جبیر عن ابن عباس رضي الله عنه چي په منځ کي د علي بن ابی طالب والولید بن عقبة بن ابی معیت تنازع وکړ کلام في امر شيئ فقال الولید لعلي رضي الله عنه اسکت فانک صبي وانا والله ابسط منک لسانًا واشجع منک جبانًا واملاء منک حشوًا في الکتیبة، فقال علي رضي الله عنه اسکت فانک فاسق فاجر فانزل الله تعالی:

أَفَمَن كَانَ مُؤْمِنًا كَمَن كَانَ فَاسِقًا ۚ لَّا يَسْتَوُۥنَ ﴿١٨﴾

آیا کېدای سي هغه څوک چي مؤمن وي (کعلي رضي الله عنه ههنا) لکه هغه څوک چي فاسق وي (کولید بن عقبة ههنا) والاستفهام للانکار یعني داسي نسي کېدای، نه دي سره برابر.

**پوښتنه**: په اول کي د آیت کي په سبب د استفهام انکاري نفي د مشابهت وکړل سوې پر ابلغ وجه، نو د لایستون فائده به څه وي؟

**ځواب**: فائده یې زیادة التاکید ده او وروسته تفصیل هم پر بناء کوي.

**فائده**: جمع په لایستون کي په اعتبار د معنی د من ده، ولي چي لفظ د من اول عام دی هر مؤمن ته شامل دی او لفظ د من ثاني هم عام دی هر کافر ته شامل دی والافراد فیما سبق یعنی في لفظ کان في الموضعین مبني علی افراد لفظ من کما لایخفی.

**درویش وایي**: چي استواء چونکه مجمل وه تفصیل د استواء خدای جل جلاله په دې آیت کي وکړي.

أَمَّا الَّذِينَ ءَامَنُوا وَعَمِلُوا الصَّٰلِحَٰتِ فَلَهُمْ جَنَّٰتُ الْمَأْوَىٰ

هر چي هغه کسان دي چي ایمان یې راوړی وي او عملونه د خصلاتو صالحاتو کوي من الفرائض والواجبات والسنن والمستحبات من الاعمال

البدنية والمالية والمركب منهما كالحج والعمرة وغيرذالك، نو دوی لره جنتونه دي د اوسېدو لپاره.

**پوه سه:** چي ځای د اقامت حقيقي جنتونه دي وبس، ولي دنيا د کوچ وبار ځای دی، نو ځکه مؤمنان به په مأوی حقيقي کي وي او کافران چي په خپل اختيار سره يې مأوی حقيقي پرېښول او په مأوی مجازي پوري يې لاسونه ټينګ کړي دي.

نُزُلًا بِمَا كَانُوا يَعْمَلُونَ ﴿۱۹﴾

**پوه سه:** چي نزل هغه شي ته وايي چي د مهمان لپاره يې څوک مرتب کړي، نزلاً حال دی له جنات څخه وهو في المعنى فاعل للظرف يعني فلهم، تدبر "يعملون" يعني بسبب اعمالهم الحسنة في الدنيا، نو کلمه د ما مصدريه ده او کلمه د باء سببيه ده او که کلمه د ما موصوله سي نو عائد يې محذوف دی والتقدير بما كانوا يعملونه.

وَأَمَّا الَّذِينَ فَسَقُوا فَمَأْوَاهُمُ النَّارُ ۖ

اى كفروا بای نوع من الكفر كالشرک واليهودية والنصرانية والمجوسية والدهرية، نو ځای د اوسېدلو د دوی اور دی چي دا اور دوی په خپل اختيار سره د جنت المأوی په ځای کي مختار کړی.

كُلَّمَا أَرَادُوا أَنْ يَخْرُجُوا مِنْهَا أُعِيدُوا فِيهَا

هر وخت چي دوی اراده وکړي د وتلو له اور څخه راوبه ګرځول سي يعني د ملکو له خوا څخه بېرته اورته دا شاره و خلود ته د دوی ده په دوږخ کي.

وَقِيلَ لَهُمْ ذُوقُوا عَذَابَ النَّارِ الَّذِي كُنْتُمْ بِهِ تُكَذِّبُونَ ﴿۲۰﴾

او وويل سي دوی ته چي تاسي برداشتوئ (يعني ليس المراد ذوق الفم) عذاب د اور چي تاسي واست يعني په دنيا کي د دغه عذاب النار تکذيب مو کاوه، ولي تاسي د بعث بعد الموت څخه منکر واست.

وَلَنُذِيقَنَّهُمْ مِنَ الْعَذَابِ الْأَدْنَىٰ

"ولنذيقنهم" عطف دی على مأهم النار، زه به دوی ته ور رسوم، يعني نږدې عذاب په دنيا کي ابی بن کعب او ضحاک او حسن او ابراهيم رح وايي چي مراد له

عذاب ادنی څخه مصائب د دنیا او ناجوړي په دنیا کي، وفیه ان هذه المصائب مشترکة بین المؤمن والکافر، وقال عکرمه رح اراد بها الحدود وفیه ان هذه ایضًا مشترکة بین المؤمن والکافر، وقال مقاتل رح الجوع سبع سنین بدعاء النبي ﷺ قال ۴ اللهم اعني علیهم بسبع کسبع یوسف ۴ دا عذاب په مکه کي پر دوی مسلط سو حتی اکلوا الجیف والعظام والکلاب.

**پوښتنه:** په دې عذاب کي مسلمانان د مکې هم ورسره شریک وه؟

**ځواب:** مسلمانان د مکې په ذکر د خدای ﷻ د لوږي څخه مستغني وه له اکل څخه د جیف والکلاب والعظام وغیرها، دلیل یې دادی چي صوفیه کرام په خپلو اربعیناتو کي یعني څلوېښت ورځي چي به یې تېرولې صرف ماښام به یې روژه په یوه غړپ اوبو سره ماته کړه لپاره د دفع د کراهت د روژې د شپې په دا څلوېښت شپې کي بل هیڅ شی نه خوړی بلکې ذکر الله یې قائم مقام الغذاء ؤ، وهذا ثابت منهم بالتجربة الصادقة، وقال ابن مسعود رض هو القتل بالسیف یوم بدر وهو قول قتادة والسدي رح.

## دُوْنَ الْعَذَابِ الْاَکْبَرِ لَعَلَّهُمْ یَرْجِعُوْنَ ﴿۲۱﴾

ماسوی د لوی عذابه، ای قبل العذاب الاکبر وهو عذاب الآخرة، شاید چي دوی به رجوع وکړي وایمان ته یعني من بقی بعد القحط وبعد البدر.

**درویش وایي:** چي د من بقی په لفظ سره بعض توهمات دفع سوه کما لایخفی فافهم.

## وَمَنْ اَظْلَمُ مِمَّنْ ذُکِّرَ بِاٰیٰتِ رَبِّهٖ ثُمَّ اَعْرَضَ عَنْهَا ؕ

او څوک ډېر ظالم دی (کلمه د من لپاره د استفهام انکاري دی ای لا احد اظلم) تر هغه چي ده ته ذکر کړل سي آیات د خدای ج لپاره د ایمان بالله وروسته دی روی ګرداني وکړي له هغو آیاتو څخه یعني فکر نه پکښي ووهي او ایمان نه راوړي.

**پوه سه:** چي کلمه د ثم لپاره د استبعاد د روی ګرداني له مثل څخه د دغو آیاتو مع فرط وضوحها وارشادها الی سعادة الایمان في الدارین.

## اِنَّا مِنَ الْمُجْرِمِیْنَ مُنْتَقِمُوْنَ ﴿۲۲﴾

په تحقیق موږ له مجرمانو څخه انتقام اخلو یعني بالعذاب في یوم القیامة.

## وَلَقَدۡ ءَاتَيۡنَا مُوسَى ٱلۡكِتَٰبَ

لام موطئه د قسم محذوف دی یعني جواب د قسم محذوف دی موږ ورکړی ؤ موسٰی ؑ ته کتاب یعني التورات، یعني لکه موږ چي تا ته قرآن کریم درکړی دی تر تا دمخه مو موسٰی ؑ ته کتاب چي تورات دی ورکړی ؤ.

**فائده:** لقد آتینا موسٰی سره د معطوفاتو جمل معترضه دی په منځ کي دد ې قول د خدای پاک: انا من المجرمین منتقمون، وبین قوله تعالی ان ربک هو یفصل آه.

## فَلَا تَكُن فِي مِرۡيَةٖ مِّن لِّقَآئِهِۦ

نو ته یا محمد (ﷺ) مه کرځه په شک کي د لقاء څخه د قرآن.

**پوهسه:** چي اضافت د لقاء اضافت دی د مصدر و مفعول ته او فاعل يې محذوف دی ای ان لقیت الکتاب ای القرآن، ولي چي د کتاب ورکړه یو نوی کار نه دی چي دمخه دي نه وي پیښ سوی، ولي موسٰی ؑ ته تر تا دمخه کتاب تورات موږ ورکړی ؤ.

**سوال:** د نهي د علیه الصلوة والسلام د ارتیاب څخه په قرآن کي یعني په نزول کي د قرآن څه فائده ده او سره دد ې چي په علیه الصلوة والسلام کي شک او مریه هیڅ امکان نه لري؟

**ځواب:** په دې کي تعریض دی پر مشرکانو د مکې چي دوی په شک بلکې په انکار کي وه له نزول څخه د قرآن پر علیه الصلوة والسلام، وجه الرد: چي نزول القرآن کوم نوی کار نه دی، ولي چي تر محمد ﷺ دمخه پر موسٰی ؑ کتاب یعني تورات نازل سوی ؤ، او طبراني له ابن عباس رضی الله عنه څخه روایت کړی دی عن النبي ﷺ في قوله تعالی فلا تکن في مریة من لقائه، قال ﷺ لقاء موسٰی ربه ای الکلام معه في الطور، او بعض مفسرین وايي اراد بذالک لقائه ﷺ مع موسٰی ؑ في لیلة المعراج کما ذکر في الصحیحین وغیرهما.

**سوال:** دا آیت خو تر معراج النبي ؑ دمخه نازل سوی دی فما معنی ملاقات النبي ﷺ مع موسٰی ؑ؟

**ځواب:** روح المعاني وايي چي دا آیت وعده ده د خدای ﷻ له خوا څخه د نبي ؑ سره چي ته به د موسٰی ؑ سره ملاقات وکړې یو وخت وذالک الموعود وقع لیلة الاسراء فافهم.

وَجَعَلْنٰهُ هُدًى لِّبَنِيْٓ اِسْرَآءِيْلَ ﴿۲۳﴾

او موږ وګرځاوه (بعض مفسرین وايي چي ضمير راجع دی و هغه کتاب ته چي پر موسیٰ ؑ نازل سوی ؤ، او قتاده رح وايي چي په خپله موسیٰ ؑ ته ضمير راجع دی، كذا روى الطبراني عن ابن عباس رض عن النبي ﷺ حيث قال جعل موسىٰ هدًى لبني اسرائيل) لارښوود د اولاد د اسرائيل چي مراد ځني يعقوب ؑ دی.

وَجَعَلْنَا مِنْهُمْ اَىِٕمَّةً

او موږ ګرځولي وه د بني اسرائيلو څخه امامان. امام و هغه چاته وايي چي نور خلک اقتداء پسي کوي په امورو کي د خير ومنه امام المسجد، لكن دلته مراد ځني انبياء دي چي په بني اسرائيلو کي يو په بل پسي راتله، حتى قيل ان الانبياء من بني اسرائيل (۴۰۰۰) وكلهم على دين موسىٰ ؑ وكتابهم التورات، او قتاده وايي چي مراد له ائمه څخه اتباع د انبياء دي، والرائ الاول مقبول ومنقول عن كثير من الرواة.

يَّهْدُوْنَ بِاَمْرِنَا لَمَّا صَبَرُوْا ۗ وَكَانُوْا بِاٰيٰتِنَا يُوْقِنُوْنَ ﴿۲۴﴾

(يهدون) والمفعول محذوف اى الناس چي دوی لارښوونه کول خلګو ته (بامرنا) يعني موږ دوی امر کړي وه په هدايت د خلګو د احکام د تورات، او بعضي مفسرينو د امر معنی په توفيق سره کړې ده اى بتوفيقنا اياهم (لما صبروا) هغه وخت چي دوی صبر وکړی پر خپل دين او پر بلاؤ د دښمنانو له خوا څخه. او وه دوی چي زموږ پر آياتو يې يقين درلود دی.

**فائده**: په دې آيت کي دليل دی چي صبر يورث الامامة.

**درويش وايي**: چي مظهري رح وايي من عدوهم بمصر يعني فرعون آه. دا تفسير صحيح نه دی ولي چي صبر پر دښمن په مصر کي خو يوازې موسیٰ او هارون ؑ کړی ؤ او فرعون سره د قوم خو غرق سوه او د مصر سلطنت د بني اسرائيلو لاس ته ورغلی، نو په نورو انبياؤ کي خو عداوت د فرعون نه ؤ، نو اول تفسير اولی او احرى بالقبول دی. ولي مطلق دښمنان خو په هره زمانه کي د انبياء عليهم السلام موجود وه.

اِنَّ رَبَّكَ هُوَ يَفْصِلُ بَيْنَهُمْ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ

په تحقيق سره رب ستا به فيصله وکړي په منځ کي د دوی په ورځ د قيامت او

محق او مبطل به سره جلا کړي.

**پوه سه:** چي دا آيت متصل دی بقوله تعالٰی: انا من المجرمين منتقمون، او قصه د موسٰی ؑ تیوله جمل معترضه وې په منځ کي کما مر سابقًا، لکن په دې آیت کي التفات د تکلم څخه په آیت سابقه کي يعني انا ده و غيبت ته في قوله ان ربک آه فافهم.

فِيمَا كَانُوا فِيهِ يَخْتَلِفُونَ ﴿٢٥﴾

په هغه امر کي د دين چي د کفار مکه وو او مؤمنانو پکښي اختلاف ؤ. فيصله د خدای ﷻ په هغه ورځ داده چي مؤمنان به جنت ته واستوي او کفار مکه به په اهانت دوږخ ته ټيله کړي.

أَوَلَمْ يَهْدِ لَهُمْ كَمْ أَهْلَكْنَا

آيا هدايت نه دی کړی خدای ﷻ ودوی ته يعني کفار مکه ته، يعني بيان يې نه دی کړی.

**پوه سه:** چي همزه لپاره د انکار دی او کلمه د واو عطف ده پر مقدر باندي. والتقدير الم يعتبروا بمن سبقهم ولم يهد لهم الله.

(کلمه د کم خبريه ده مفيد د کثرت ده) څومره ډېر مو هلاک کړي دي.

مِنْ قَبْلِهِمْ مِنَ الْقُرُونِ يَمْشُونَ فِي مَسَاكِنِهِمْ

(کلمه د من بيان د کم ده) تر دوی د مخه يعني تر اهل مکه د قرون يعني اهل قرون ماضيه بسبب کفرهم.

**پوه سه:** چي قرن پر صحيح روايت سل کاله ته وايي "يمشون" چي تګ کوي اهل مکه په خپلو سفرو کي "في مسکنهم" چي کفار ماضيه پکښي اوسېدل.

**فائده:** له دې آيت څخه مطلب دادی چي کفار د مکې بايد له هغو څخه عبرت اخستی وای... بيت:

پند گير از مصائب ديگران ..... تا نگيرند ديگران زتو پند

إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَآيَاتٍ ۖ أَفَلَا يَسْمَعُونَ ﴿٢٦﴾

په تحقيق په دې اهلاک کي د امم ماضيه ؤ دلائل دي پر قبح د مافعلوا من الکفر و المعاصي و على قدرتنا من الانتقام منهم.

**پوه سه:** چې همزه لپاره د انکار دی او کلمه د فاء عطف ده پر مقدر باندې تقدیره ایعرضون عن آیاتنا فلا یسمعونها سماع تدبر وقبول الوعظ.... ابیات:

کسی را که پندار (کبر) سر بود .... پندار هرگز که حق بشنود
زعلمش ملال آید از وعظ ننگ .... شقائق بباران نروید ز سنگ

**اَوَلَمْ یَرَوْا اَنَّا نَسُوْقُ الْمَآءَ اِلَى الْاَرْضِ الْجُرُزِ**

آیا دوی علم نه لري بلکې لري يې. فالهمزة للانكار والواو للعطف على مقدر والتقدير الم يتفكروا (هذا هو المعطوف عليه المقدر) ولم يروا اى لم يعلموا بل علموا وهذا هو معنى الانكار) موږ روانوو اوبه يعني د باران و هغه مځکې ته چې نباتات يې قطع سوي وي دا معنى د الجرز ده.

**فَنُخْرِجُ بِهٖ زَرْعًا تَاْكُلُ مِنْهُ اَنْعَامُهُمْ وَاَنْفُسُهُمْ ؕ اَفَلَا یُبْصِرُوْنَ ﴿۲۷﴾**

نو موږ راباسو په هغو اوبو سره کښت چې خورک کوي له هغه کښت څخه د دوی چارپایان يعني بلګونه او پرورېږي او د دوی ځانونه چې غنم، اوريشي، جواري او مېوې د درختو، آیا دوی يې نه ويني، کلمه لپاره د انکار ده يعني دوی يې ويني. والفاء للعطف على مقدر الا يلقون ابصارهم فلا يبصرون ما ذكرنا حتى چې دوی به دا صنع عجيب دليل ګرځولي وای پر کمال قدرت زموږ او پر کمال احسان زموږ د بندګانو سره او د دوی د انعامو سره او هم دا به يې دليل ګرځولی وای پر قدرت زموږ پر بعث بعد الموت، بغوي رح وايي په روايت له قتاده رض څخه چې اصحابو کرامو مشرکانو ته وويل چې موږ به موږ ته هغه ورځ لرو چې موږ به له جنجاله څخه ستاسي په استراحت سو او خوش وقت به سو او خدای ﷻ به فيصله وکړي زموږ او ستاسي تر منځ چې مراد له دې ورځ د قيامت ورځ ده چې خدای ج حکم کوي په منځ کې د بندګانو فريق في الجنة وفريق السعير، او کلبي رح وايي چې مراد له دې ورځي څخه ورځ د فتح د مکې ده، او سدي رح وايي مراد ځندي ورځ د بدر ده، ولې چې مسلمانانو به دوی ته ويل الله ناصرنا ومظهرنا عليكم، په هر صورت کفارو د مکې به د پسخنده ورته ويل:

**وَیَقُوْلُوْنَ مَتٰى هٰذَا الْفَتْحُ اِنْ كُنْتُمْ صٰدِقِیْنَ ﴿۲۸﴾**

دوی به استهزاءً ويله، کله به وي دا فتح او فيصله ستاسي د استراحت لپاره که تاسي رشتيا واياست.

**فائده:** ویقولون معطوف دی پر مضمون د افلا یبصرون ولي چي نفي د ابصار آیاتو د قدرت انکار د آیات د قدرت. فالتقدیر اینکرون القدرة الالهیة ویقولون استهزاءً متٰی آه.

**قُلْ يَوْمَ الْفَتْحِ لَا يَنْفَعُ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا إِيْمَانُهُمْ وَلَا هُمْ يُنْظَرُوْنَ ﴿٢٩﴾**

(”قل“ دا جمله مستأنفه ده في جواب ما ذا قول لهم حین قالوا ذالک ای متٰی هذا الفتح آه) ورته ووایه چي ورځ د فتح فائده نه کوي و هغو کسانو ته چي کافران وه ایمان د دوی. او نه دوی ته مهلت ورکول کېږي چي بیرته دي دنیا ته رد سي.

**درویش وایي:** چي دا عبارت صریح دی په دې کي چي مراد د یوم الفتح څخه ورځ د قیامت ده، ولي په ورځ د قیامت ایمان پر وحدانیت د خدای ج او پر بعث بعد الموت او ایمان پر جنت او دوږخ فائده نه کوي، ولي چي مشرکان په دار التکلیف دنیا کي خو له دې شیانو څخه منکر وه، او قیامت دار التکلیف نه دی، نو کلبي رح چي ویلي وه چي مراد د یوم الفتح څخه فتح د مکې ده، او یا سدي رح چي ویلي وه مراد ورځ د بدر ده، څرنګه به دا آیت توجیه سي یوم الفتح لاینفع الآیة، ولي په ورځ د فتح مکه یا د بدر خو ډېر کسان کافران وه او بیا یې ایمان راوړی ایمان یې قبول دی اجماعًا بلا خلاف، وغایة التوجیه لقول الکلبي والسدي رح بمراعات علو کعبهم في التفاسیر ان المراد لاینفع الذین کفروا و قتلوا في حال الکفر او ماتوا علی الکفر ایمانهم رد والعذاب بعد موتهم.

**پوښتنه:** کافرانو چي دا سوال وکړی متٰی هذا الفتح آه، او خدای پاک په جواب کي د دوی وویل: قل یوم الفتح لاینفع الذین الی اخیر الآیة، څرنګه د دوی سوال په دفع کېږي؟

**ځواب:** توجیه د تطبیق د سوال او جواب داده چي سوال د دوی چي متٰی هذا الفتح آه طلب وُ د تلوار د دوی و یوم الفتح ته علی وجه التکذیب والاستهزاء، نو دوی ته جواب ورکړل سو مطابق د غرض څخه د دوی په سوال، نو ګویا په جواب کي یې داسي ورته وویل چي تاسي تلوار مه کوئ د یوم الفتح په باره کي او مه پسخند وهئ، ولي موږ او تاسي به یوم الفتح ووینو او تاسي به ایمان راوړئ لکن ایمان به

فائده در ته ونه کړي، او تاسي به مهلت وغواړئ او مهلت به هم درنه کړل سي.

**درویش وایي:** وهذا غاية التوجيه في حل هذه الآيات واستظهرت في ايراد هذا التوجيه بروح المعاني وروح البيان والمظهري وتفسير الرازي والبيضاوي والله الموفق.

## فَأَعْرِضْ عَنْهُمْ وَانتَظِرْ إِنَّهُم مُّنتَظِرُونَ ۝٣٠

ته روی گرداني وکړه یا محمد (ﷺ) له دوی څخه (وكلمة الفاء جواب لشرط محذوف اى اذا عرفت حالهم وامرهم فاعرض عنهم، او باک مه کوه په تکذیب ددوی، ابن عباس رض وایي چي دا آیت منسوخ دی په آیت السیف سره یعني چي علیه الصلوة والسلام ته امر د جهاد وکړل سو) ته انتظار وکړه زموږ وفتح او ظفر ته پر دوی، دوی منتظر دي چي پر تا به حوادث د زمانې راسي او ته به مړ سې او دوی به ستا څخه مستریح سي.

**درویش وایي:** چي خدای ﷻ خپله وعده د علیه الصلوة والسلام او مؤمنانو سره پوره کړه فنصر عبده وفتح للمؤمنين على اعدائهم .... بيت:

شکر خدا که هرچه طلب کردم از خدا ..... بر منتهای همت خود کامران شدم
هـــر کرا اقبال باشد زهـــمنون ....... دشمنش گـــردد بزودی سرنگون

له ابو هریره رض څخه روایت دی چي د رسول الله ﷺ عادت مبارکه دا ؤ چي د سهار په لمانځه کي د جمعې په ورځ ده مبارک به په اول رکعت کي د الم تنزيل الخ سوره وایه، او په دوهم رکعت کي یې هل اتى على الانسان آه سوره وایه، او له جابر رض څخه روایت دی چي نبي ﷺ تر هغو چي الم تنزيل سوره او تبارک الذي نه وایي قرائت کړې نه بيد ېدی، رواه احمد والترمذي، وقال هذا حديث حسن صحيح، او له خالد بن سعدان رح څخه روایت دی چي ماته دا خبره رسېدلې ده في الم تنزيل ومثله في تبارك الذي ان رجلاً كان يقرءهما مايقرئ شيئاً غيرهما او دا سړی ډېر ګناه کار ؤ، نو په ورځ د قیامت نشرت یعني کل واحدة من السورتين په مثال د مرغه د وزر خپل او داسي به ووایي رب اغفر له فانه ليكثر قرائتي، خدای پاک به یې شفاعت قبول کړي، وقال رب العزة وملكو ته: اكتبوا له بكل خطيئته

حسنة وارفعوا له درجة، وقال ايضًا انها اى كل واحدة من السورتين عن صاحبها اى قارئها في القبر انها تكون كالطير تجعل جناحها عليه فتشفع له فتمنعه من عذاب القبر فقال يعني رسول اللهﷺ چي ددې دوو سورتونو تفضيل وركړل سوى دى پر هر سورت د قرآن په شپېته حسنه سره، رواه الدارمى. او له ابن عباس رضی الله عنه څخه روايت دى كه چا قرائت كړل الم تنزيل او تبارك الذي اعطى له من الاجر كانما احى ليلة القدر رواه الثعلبي وابن مردوية، لكن سيوطي رحمه الله وايي چي دا حديث موضوعي دى والله اعلم.

**درويش وايي:** چي لله الحمد والمنة وعلى سيد رسله الصلوة والتحية، وعلى آله واصحابه الكملة، چي په ورځ د دوشنبې پر درې بجې څه بالا په اول د رجب ژه فارغ سوم د تفسير څخه د سورة الم السجدة سنه (۱۴۳۱) هجري قمري في كوئته وقت الهجرة، وروسته ان شاء الله تعالى تفسير د سورة الاحزاب شروع كېږي.

تفسير ايوبي حنفي د نصيراحمد احمدي لخوا سكين او pdf سو. د دعا محتاج احمدي! واتساپ ۰۷۴۹۸۴۹۵۶۹





Scanned by CamScanner

یوه اویا درې آیتونه دي او نهه رکوع دي
بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ
مدني ده

اخرج البيهقي في الدلائل وغيره عن ابن عباس رضي الله عنهما انه قال نزلت سورة الاحزاب بالمدينة وعن ابن مردوية عن ابی الزبير رضي الله عنه مثله وهي (۷۳) آية. الطبرسي وايي بالاجماع واخرج عبدالرزاق في المصنف والطيالسي وسعيد بن منصور وعبدالله بن احمد والنسائي والحاكم وصححه والضياء في المختارة وآخرون عن زربن حبيش رضي الله عنه، دی وايي ماته وويل ابی بن كعب رضي الله عنه چي تاسي سورة احزاب څو آيته بولئ؟ ما ورته وويل: درې اوويا آيته، ابی بن کعب رضي الله عنه راته وويل: ما سورة احزاب ليدلی دی او ويلی مي دی چي دی برابر دی د سورة البقرة او په دغه سورت کي دا آيت موږ ويلی دی. الشيخ والشيخة (يعني محصن او محصنة) اذا زنيا (چي زنا وكړي) فارجموهما، البتة نكالاً من الله.

**درويش وايي:** چي ددې آيت که څه هم قرائت منسوخ دی لکن نص حکم يې باقي دی بالاجماع والاحديث الصحيحة، والله عزيز حكيم فرفع فيما رفع هغه نور آيتونه منسوخ سوه فقط (۷۳) پاته سوه.

درويش وايي:

په امید د ښه صحت او عافیت
اوس شروع کړم په تفسیر ددې سورت
دا کاروان د تفسیر په مشیت د خدای روان دی
خلک هر څه چي دوی وایي دوی دې وایي

**پوه سه:** چي جويبر له ضحاک رحمه الله څخه او هغه له ابن عباس رضي الله عنه څخه روايت کړی دی چي اهل مكه منهم الوليد بن المغيرة وشيبة بن ربيعة دعوت ورکړی و نبي صلى الله عليه وسلم چي ترخپل قول تېر سه يعني لآ اله الا الله موږ به تاته نيمی د خپلو مالو درکړو او بيا چي عليه الصلوة والسلام هجرت وکړی د مديني منورې يهودانو ده ته وويل چي ته بيرته مکې ته ولاړ سه موږ به د لارې خرڅ درکړو او په ډېر اکرام به دې رخصت کړو، او که نسې ولاړ موږ دې وژنو، نو دا آيت نازل سو.

# يَا أَيُّهَا النَّبِيُّ اتَّقِ اللَّهَ

**فائده:** نداء يې عليه الصلوة والسلام ته په لفظ د نبي وکړه ولم يقل يامحمد تعظيمًا لشانه ﷺ وامره بالتقوىٰ من الله تعظيمًا لشان التقوىٰ، وقال البغوي رحمه الله چې دا آيت نازل سوی دی په شان کې د ابی سفيان بن الحرب وعکرمة بن ابی جهل وبن ابی الاعور عمرو بن سفيان السلمي، موضوع داسې وه چې دغه کسان وروسته تر غزاء د احد مدينې ته راغله او د رئيس المنافقين عبدالله بن ابی پر کور يې واړول او د عليه الصلوة والسلام څخه يې امان وغوښتی چې موږ ستا سره څه خبرې کوو، نو د هغې ډلې اهل مکه چې عليه الصلوة والسلام ورکړی عبدالله بن ابی سعد او طعيمه بن ابيرق يعني من يهود المدينة هم ملګري سوه، او په دې دوران کې عمر بن الخطاب رضي الله عنه د عليه الصلوة والسلام سره ناست ؤ، نو دې مکې والو و عليه الصلوة والسلام ته وويل چې ته پرېږده ذکر زموږ د خدايانو اللات والعزىٰ ومناة په بدنامه يعني چې دا بتان جمادات دي لاتضر ولاتنفع او دا ووايه چې ددی آلهه ؤ د شفاعت سته لمن عبدها او موږ تا او ستا خدای ﷻ سره پرېږدو، نو پر عليه الصلوة والسلام ډېره درنه پرېوتل دا مطالبه ددوی، فقال عمر بن الخطاب رضي الله عنه ماته اجازه راکړه چې راغلي ټوله خلک قتل کړم، عليه الصلوة والسلام ورته وويل چې ما دوی ته د خبرو لپاره امان ورکړی دی، نو عليه الصلوة والسلام وويل اخرجوا في لعنة الله وغضبه وامر النبي ﷺ ان يخرجوهم من المدينة فانزل هذه الآية، وقيل الخطاب للنبي ﷺ وامره بالتقوى لكن المراد امته آه، وليس بشيئ ولاوجه للعدل عن الظاهر، قال صاحب روح المعاني وظاهر سياق مابعد ان الامر بالتقوىٰ للنبي ﷺ والمقصود الدوام والثبات عليها وقيل المقصود الازدياد من التقوىٰ، ولې چې تقوىٰ لره باب واسع دی وعرضًا عريضًا لايعلم ....... الاعلام الغيوب.

**درويش وايي:** چې د سياق د مابعد وهو النهي بقوله ولا تطع الكافرين دا توجيه برابره ده، ولې چې دا نهي خو بالاجماع خاص په عليه الصلوة والسلام پورې دي كما يدل عليه شان نزول الآية على ما ذكره البغوي رحمه الله وقد مر آنفًا، نو امر د تقوىٰ هم وده ته دی خاصة لينظم السياق فافهم.

وَلَا تُطِعِ الْكٰفِرِيْنَ وَالْمُنٰفِقِيْنَ ؕ اِنَّ اللّٰهَ كَانَ عَلِيْمًا حَكِيْمًا ۙ

او نه متابعت د کافرانو مه کوه يعني من اهل مكة يعني اباسفيان و عكرمة بن ابی جهل وابو الاعور، او د منافقانو په خوله هم مه کوه يعني من اهل مدينة چي عبدالله بن ابی رئيس المنافقين وعبدالله بن سعد وطعمة بن ابيرق دي كما مر شان نزول الآية "ان الله كان عليمًا" په تحقيق خدای ج ښه خبر دی په خپل مخلوق سره او په مصالح او مفاسدو سره ددوی.

**فائده:** په عربي ژبه کي داسي عبارت راسي چي كان زيد غنيًا معنی يې داده چي زيد دمخه غني و يعني اوس فقير دی، د خدای ج په وصف کي چي داسي عبارت واقع سي كما في هذه الآية معنی يې هغه ډول نه ده، بلکې معنی يې داده چي عليم و او عليم دی او عليم به وي، فافهم هذه الفائدة في جميع القرآن "حكيمًا" په هر فعل کي حکمت لري يعني عبث او بې فائدې کار نه کوي، البته د خدای ج په حکمت به بعض خلک نه پوهېږي.

وَّاتَّبِعْ مَا يُوْحٰۤى اِلَيْكَ مِنْ رَّبِّكَ ؕ اِنَّ اللّٰهَ كَانَ بِمَا تَعْمَلُوْنَ خَبِيْرًا ۙ

او نه متابعت کوه چي تا ته يې وحي کړل سوي دي له جانبه څخه د رب ستا، يعني من التوحيد والاخلاص لله تعالى يعني على اتم وجه ودُم على ذالک.

(پوه سه: چي دا جمله يعني واتبع آه پر منزله د تاکيد ده د امر بالتقوى والنهي عن متابعت الكافرين) په تحقيق خدای ج په ماتعملون سره خبر دی.

**فائده:** له قراء سبعه وو څخه ابو عمر رح يعملون په يا غيبت سره وايي، نو ضمير د يعملون راجع دی و کافرانو او منافقانو ته، يعني خدای ﷻ خبر دی ستاسي په چمو سره چي د اسلام او د مسلمانانو او د نبي ﷺ سره يې کوئ يعني د هغه جزاء به درکړي، او نور قاريان يې په تاء د خطاب وايي يعني تعملون خطابًا للنبي ﷺ واصحابه رض، ولي چي امر بالتقوی که څه هم په صيغه د مفرد راغلی و لكن المراد هو ع وامته، نو پر دې تقدير دا جمله تاکيد د امتثال د امر الهي طمعًا في حسن الثواب وخوفًا عن قبح الجزاء.

وَّتَوَكَّلْ عَلَى اللّٰهِ ؕ وَكَفٰى بِاللّٰهِ وَكِيْلًا ۝

او ته اعتماد او تكيه پر خداى ﷻ وكړه، او كافي دى خداى ﷻ وكيلاً، يعني ټوله امور د مسلمانانو و خداى ﷻ ته وسپاره لكونه قديرًا قدرة كاملة ورحيمًا غاية الرحمة وعليمًا بمصالح العباد ومفاسدهم علمًا تامًا، فائده: كلمه د با زائده ده في الفاعل.

**پوښتنه:** وكفى بالله وكيلاً خو جمله خبريه ده، نو عطف يې پر توكل چي امر دى او جمله انشائيه ده څرنګه صحيح كېداى سي؟

**ځواب:** زجاج رح نحوي وايي چي كفٰى بالله كه څه هم خبريه ده لفظًا لكن په معنى د انشاء ده اى اكتف بوكالته ولاتفوض امورك الى غيره تعالى لانه سفه.

**پوه سه:** چي وكيلاً تمييز له نسبت څخه د كفى وخداى رح ته.

**پوه سه:** چي بغوي رح موافق دى د هغه سره چي روايت يې ابن ابى حاتم كړى دى له سعد او نجيح كړى دى له مجاهد رح څخه. وايي چي ابى معمر جميل بن معمر الفهري چي ډېر فهيم او لبيب او بليغ او حافظ سړى ؤ په كافرانو كي، نو قريشو به ويل چي دا دومره فهم او حفظ چي ده لره دى سبب يې دادى چي ده لره دوه زړونه دي او ده به هم ويل چي زه په سينه كي دوه زړونه لرم چي په هر زړه سره زيات فهم تر محمد ﷺ لرم، نو په ورځ د بدر چي كفارو شكست وكړى او په تېښته د مكې پر خوا روان سوه په دوى كي ابو معمر هم ؤ، نو ابو سفيان چي په حالت كي د تېښتي ؤ ابو معمر يې وليدى چي يوه چوټه يې په لاس كي ده او يوه چوټه يې په پښه ده، نو ابو سفيان ورته وويل چي ابو معمره څه حال دى د خلكو؟ ابو معمر ورته وويل چي په حال كي د شكست دي، ابو سفيان ورته وويل چي ستا ولي يوه چوټه په لاس او بله دي په پښه ده؟ ابو معمر ورته وويل چي زه علم نه لرم زما خو دا خيال ؤ چي دواړي چوټي مي په پښو دي، نو په دغه ورځ خلك وپوهېدل چي كه د ابو معمر دوه زړونه واى، نو ولي يې چوټي هېرېدلې، يعني يوه په لاس كي او بله په پښو.

او له ابن عباس رض څخه روايت دى چي منافقانو به ويل د محمد (ﷺ) دوه زړونه دي، يو زړه يې د موږ سره دى او يو زړه يې د خپلو اصحابو سره، فاكذبهم الله تعالى في هذه الآية، او بعض مفسرين وايي چي په متعددو رواياتو كي راغلي دي چي يو سړى ؤ په عربو كي چي خلكو به ذو القلبين باله، او ده به ويل

چي زما يو قلب ما امر كوي په يو شي سره او بل مي نهي كوي له يو كار څخه.

**فائده:** په آيت كي كه څه هم لفظ د رجل راغلى دى هغه په سبب د شان نزول كمامر لكن خصوص د رجل نه دى مقصود، والمعنى ماخلق لاحد من الرجال والنساء والصبيان بل لذى قلب من الحيوان مطلقًا من قلبين.

## مَا جَعَلَ اللّٰهُ لِرَجُلٍ مِّنْ قَلْبَيْنِ فِيْ جَوْفِهٖ

**پوه سه:** چي جعل په معنى د خلق دى، يو مفعول غواړي چي هغه قلبين دى او كلمه د من زائده ده لاستغراق النفي، او مراد له جوف څخه بطن د سړي دى چي ځيگر ته هم شامل سي، فلايرد انهم قالوا القلب لحم صنوبري مركوز في وسط الصدر مائل رأسه الى الجانب الايسر فافهم.

**تنبيه:** توجيه ده د سوال بناء پر دې ده چي جوف په اصطلاح د پښتنو نس ته وايي او زړه خو په نس كي نه دى بلكې په ځيگر كي دى.

**فائده:** في جوفه يا ظرف لغو دى متعلق په جعل سره دى او يا صفت دى د قلبين يعني كائنين في جوفه.

**پوه سه:** چي قلب معدن دى د روح حيواني او منبع د ټولو قوى حيوانيه دى.

**فائده:** دليل عقلي د نفي د دوو زړو دادى كما ذكره المفسرون چي كه فرضًا كه سړي دوه زړونه لري، فاما ان يفعل بكل واحد منهما شيئًا واحدًا من افعال القلوب فاحدهما فضلة لاحاجة اليه او يفعل بكل واحد منهما غيرما يفعل بالآخر فحء يلزم التعارض والتمانع والتناقض.

**فائده:** يو روح انساني دى چي په هغه سره ادراک او علم او فهم مربوط دى نو هغه په هغه آيت كي مراد دى: ويسئلونک عن الروح قل الروح من امر ربى وما اوتيتم من العلم الا قليلاً: معنى يې داده چي د ماهيت او حقيقت د روح انساني د خداى ج سره دى او تاسي ته لږ علم دركړل سوى دى پر روح يعني چي يا دا وواياست چي روح انساني يو مخلوق د خداى جل جلاله دى، او يا داسي وواياست چي روح انساني هغه دى هر سړى په انا اريد ان افعل كذا وفلان يريد ان يفعل كذا او انت تريد ان تفعل كذا و هغه روح انساني ته اشاره كوي، وهذا الروح مفقود في الحيوانات العجم فافهم، هداک الله تعالى.

**يوه سه:** چي د مخه تېره سوه چي قريشو به ويل چي ابو معمر دوه زړونه لري او ده به هم ويل چي زما په سينه کي دوه زړونه دي، د مثال په توګه دوې شرعي مسئلې خداى ﷻ بيانوي چي هغه د امتناع د دوو زړو په سينه کي د يوه سړي دلالت کوي چي يوه مسئله د ظهار ده چي بيان به يې راسي، مابنه د مظاهر خو حقيقت مور د مظاهر نه ده، ولي ددې دوو نسبتو جمع ممتنع ده چي هم دي د سړي چي مظاهر دى هم مور وي او هم دې مابنه وي، او بله مسئله د متبنّٰى ده چي يو سړى د بل چا زوى په بنوت سره معرفي کړي چي په پښتنو کي دا ډېر پېښېږي چي سړى عقيم وي يعني عيال يې نسي کېداى د بل سړي زوى ځان ته منسوب کړي يعني په زوى ګلوي يې ونسي، نو دلته خو هم دا اجتماع ممتنع ده چي هلک دي هم د خپل پلار زوى وي او هم دي ددې بل سړي زوى وي حقيقةً، ولي دوه نسبه خو يوه لره نه وي، فقال الله تعالى:

وَمَا جَعَلَ أَزْوَاجَكُمُ الّٰٓـِٔي تُظٰهِرُوْنَ مِنْهُنَّ أُمَّهٰتِكُمْ

نه دي ګرځولي يعني خداى پاک ستاسي مابنې هغه مابنې چي تاسي د ظهار لفظ ورته استعمال کړي ودوى ته، ستاسي ميندي په تحريم ابدي سره، چي په جاهليت کي دا لفظ و مابنې ته ويل طلاق قطعي وُ، او په شرع کي رانقل سو و حرمت ته چي په کفاره ورکولو سره پاى ته رسېږي.

**درويش وايي:** چي د ظهار ټولي مسئلې خو په کتابو کي د فقهه شريفي بيان کړل سوې دي لکن لپاره د فهم د آيت څو خبري ضروري بيان کړل کېږي لانهم قالوا ما لايدرک کله لايترک کله، اول صورت د ظهار دادى على المشهور في الجاهلية وبعد الاسلام ايضًا چي سړى خپلي مابنې ته ووايي انت عليّ کظهر امي، بيضاوي وايي چي ذکر د ظهر په ظهار کي کنايه ده له بطن څخه، صريح لفظ د بطن چي يې نه وايه له دې سببه چي نس فرج ته نژدې دى او ذکر د فرج د ادب خلاف دى په قرآن کريم کي، او يا لپاره د تغليظ، ولي اهل جاهليت حرام باله وطي د مابنې ولو في الفرج چي شا د مابنې دي د اسمان وخواته واى، په اسلام کي خو داسي فعل روا دى چي ځاى د دخول فرج وي يعني دبره د شخي نه وي فانه حرام وهو لواطة صغرىٰ کما بين في الفقه، ابن الهمام په فتح القدير شرح الهداية کي وايي لايظهر ما هو الصارف عن الحقيقة آه، يعني د مور پر لخه شا خو هم د زوى پر بوا ته حرام دي.

**فائده:** امهات جمع د ام ده په جمع کلمه د ها ورزیاته کړه تحسینًا للفظ في الجمع فافهم.

**فائده:** کفاره د ظهار یا ازادول د مینځي یا د مریي ده، فان عجز فصیام شهرین متتابعین لیس فیها رمضان ولاشيئ من الایام المنهیة، چي دوې ورځي د اختر دي، و ایام التشریق، که له دې څخه هم عاجز وي یا د سپیتو (۶۰) مسکینانو دوډۍ نصف صاع لکل مسکین او قیمة ذالک علی مابین في الفقه، او د مخه تر اداد کفارې ماینه سرې ته حرامه ده، هدایه.

## وَمَا جَعَلَ أَدْعِيَاءَكُمْ أَبْنَاءَكُمْ

یعني تاسي زوی وبولئ چي په عربي یې تبنی بولي، یعني حقیقت ستاسي زامن نه دي، نو په تبنی سره هیڅ شی د احکامو د شرع نه ثابتیږي لکه میراث وحرمة النکاح.

**درویش وایي:** چي په دې آیت کي رد دی د جاهلیت پر عربو چي ماینه د مظاهر ورته حرامه وه لکه مور، او متبنی حقیقة لکه زوی دی چي میراث وړي او دوی به ویل یحرم من التبنی ما یحرم بالنسب.

**بوه سه:** چي تبنی په شرع کي روا ده، ولي چي رسول اللهﷺ زید بن حارثه رضی الله عنه چي دده مریی ؤ ازاد کړی وتبناه قبل الوحي واخا بینه وبین حمزة بن عبدالمطلب، نو زینب بنت جحش چي د زید ماینه وه او هغه طلاقه کړه وروسته تر عده علیه الصلوة والسلام په نکاح کړه، منافقانو به ویل تزوج محمد زوجة ابنه وهو ینهی عن ذالک فانزل الله تعالی وما جعل ادعیاکم آه.

**فائده:** ادعیا جمع ده د دعي علی الشذوذ، قیاس یې دعوی یعني د جمع قیاس یې لکه جرحي جمع د جریح ده لانه (یعني دعي) فعیل په معنی د مفعول دی، وغایة التوجیه انه شبه فعیل بمعنی المفعول بفعیل بمعنی فاعل فجمع جمعه کتقي واتقیاء وسخي واسخیاء وشقي واشقیاء، کذا في روح المعاني وروح البیان والمظهري والبیضاوي وغیرها.

## ذَٰلِكُمْ قَوْلُكُمْ بِأَفْوَاهِكُمْ

"ذالک" اشارة الی کل ما ذکر، دا تول ستاسي د خولې خبري دي، یعني هیڅ حقیقت نه لري لکه سړی چي مسخرې کوي.

**فائده:** افواه جمع د فم ده اصل د فم فوه وُ مثل د اثواب حذف الهاء پر خلاف د قیاس، بیا یې واو حذف کړی چي حرف علت في الآخیر وُ بیا یې په عوض د واو محذوفه میم راوړی په دې مناسبت چي دواړه حرف شفوي دی فصار فم.

**فائده:** راغب اصفهاني رحمه الله وایي چي په هر ځای کي د قرآن چي خدای تعالی معلق کړي حکم د قول په فم سره اشاره وکذب ته ده، یعني د اعتقاد سره نه ده برابره.

## وَاللَّهُ يَقُولُ الْحَقَّ وَهُوَ يَهْدِي السَّبِيلَ ④

او خدای جل جلاله هغه خبره کوي چي د واقع سره برابره وي، او خدای تعالی هدایت ولاري ته د حق.

## ادْعُوهُمْ لِآبَائِهِمْ هُوَ أَقْسَطُ عِنْدَ اللَّهِ

تاسي د متبنی نسبت کوئ و خپلو پلرو ته یعني له نطفې څخه د هغه پیدا سوي وي یعني دا نسبت کول و خپلو پلرو ته اقسط دی عند الله.

**پوه سه:** چي اقسط اسم تفضیل مراد ځني زیادت مطلقًا دی مشتق د قسط چي په معنی د عدل دی ومعنی الاقسط البالغ في الصدق.

**درویش وایي:** چي بخاري او مسلم چي په اصطلاح د اهل حدیث یې شیخان بولي، والترمذي والنسائي وغیرهم عن ابن عمر رضی الله عنه ان زید بن حارثه چي ازاد شده مریی د علیه الصلوة والسلام وُ، او علیه الصلوة والسلام خپل زوی ګرځولی وُ، چي په عربو کي دا رواج وُ او دې فعل ته یې تبنی ویله، مونږ په دې نامه باله زید بن محمد (ﷺ) حتی نزل القرآن اعوهم لابائهم فقال رسول الله ﷺ انت زید بن حارثه بن شراحیل.

**درویش وایي:** چي اصل قصه د زید بن حارثه رضی الله عنه علی ما اخرج ابن مردویة عن ابن عباس رضی الله عنه چي زید بن حارثه رضی الله عنه د خپلو ماماګانو په کور کي وُ چي بني معن من بني ثعل د طي د قبیلې وه نو دا زید په یوه جنګ کي د طي له قبیلې څخه ونیول سو او د خرڅولو لپاره بازار ته د عکاز راوستل سو، او حکیم بن حزام بن خویلد عکاز ته تللی وُ او ده ته دده عمه خدیجې ویلي وه چي ماته یو ښه هوښیار مریی رانسه چي عرب وي که چیري درباندي پیښ سو، نو حکیم زید رانیوی نو خدیجې ته یې راوستی، او خدیجې ته یې وویل چي داسي هوښیار عربي مریی مي درلره پیدا

کړي، نو که دي خوښه وي خو ته یې واخله او که دي خوښه نه وي ماته یې راپرېږده ولې چې زما هم خوښ دی، خدیجې چې ولیدی د هغې هم خوښ سو، نو خدیجې واخستی، نو څه وخت چې خدیجه ﷺ علیه الصلوة والسلام په نکاح کړه او زید ددې سره ؤ، نو علیه الصلوة والسلام ته دده هوښیاری او پوهې ډېر خوند ورکړی، خدیجې ﵂ ته یې وویل چې دا مریی ماته راوبخښه، خدیجې ﵂ ورته وویل چې په دې شرط یې دربخښم که تا ازاداوه میراث به یې زما وي، علیه الصلوة والسلام د میراث شرط نه ومانه، نو خدیجه ﵂ تر هغه تېره سوه او علیه الصلوة والسلام ته یې وویل چې ما دربخښلی دی که یې ازادوې او که یې د ځان سره پرېږدې، نو زید بن حارثه په کور کې د علیه الصلوة والسلام ځوان سو، وروسته زید مذکور د ابو طالب د اوښانو په قافله کې شام ته روان ؤ، نو زید خپل د قوم پر وطن تېرېدی د زید اکا دی وپېژندی، نو ورولاړ سو او ورته وه یې ویل: من انت یا غلام؟ قال غلام من اهل مکة، اکا یې ورته وویل په نسب د اهل مکه یې؟ زید ورته وویل یا، اکا یې ورته وویل حر یې که مریی؟ زید ورته وویل چې مریی یم، اکا یې ورته وویل د چا؟ زید ورته وویل د محمد بن عبدالله بن عبدالمطلب، اکا یې ورته وویل اعربي انت ام عجمي؟ زید ورته وویل عربي، اکا یې ورته وویل چې ستا اصل د کومي قبیلې دی؟ زید وویل من کلب، اکا یې ورته وویل: من ای کلب؟ قال من بني عبدود، اکا یې ورته وویل چې چېري ونیول سوې؟ زید ورته وویل د ماماګانو په کلي کې، اکا یې ورته وویل من اخوالک؟ زید ورته وویل د طې قبیله، اکا یې ورته وویل د مور نوم دي څه شی دی؟ زید ورته وویل سعدی، اکا یې را ولاړ سو په غېږ پوري یې ټینګ ونیوی او ده ته یې وویل چې ابن حارثه؟ زید ورته وویل نعم، نو اکا یې پلار راوغوښتی قال یا حارثة هذا ابنک، حارثه چې راغلی هغه وپېژندی، نو حارثه زید ته وویل چې ستا بادار یعني محمد بن عبدالله د تاسره څرنګه کړه وړه کوي؟ زید ورته وویل چې تر خپلو قریبانو او اولادو زه پر ګران یم، نو بیا چې کله زید مکې ته بیرته راتلی، نو پلار او اکا یې هم ورسره وه حتی چې مکې ته راغله او د رسول الله ﷺ سره یې ملاقات وکړی، نو حارثه ورته وویل یا محمد انتم اهل حرم الله وجیرانه (یعني همسایه ګان د حرم)

وعند بيته تعالى يعني كعبة تفكون العاني وتطعمون الاسير، ابني زيد عندک،
زموږ سره احسان وکړه او دی موږ ته په لاس راکړه بېله فدیې یعني روپی مه
راڅخه غواړه، فانک ابن سید قومه (ددوی مراد عبدالمطلب ؤ، ولي چې د علیه
الصلوة والسلام پلار په وخت کې د حمل دده مبارک وفات سوی ؤ) او که احسان
نه راسره کوې هر څومره فدیه چې غواړې موږ ورته تیار یو، علیه الصلوة والسلام
ورته وویل چې تر ټولو خیر معامله به زه ستاسي سره وکړم، قالوا وماهو؟ علیه
الصلوة والسلام وویل چې زه به زید ته اختیار ورکړم که یې ستاسي تګ خوښ ؤ
نو بېله فدیه یې بوزئ، او که یې زه مختاره کړم نو به کار نه په لرئ، دوی ورته
وویل جزاک الله خیرًا فقد احسنت، نو علیه الصلوة والسلام زید راوغوښتی او
ورته وه یې ویل یا زید اتعرف هؤلاء؟ قال زید نعم هذا ابی وهذا عمی واخي، علیه
الصلوة والسلام ورته وویل چې ښکه چې ودي پېژندل، که دي خوښه وي نو
ددوی سره ولاړ سه او که دي زه خوښ یم زما حال خو درمعلوم دی، قال زید رضی الله عنه ما
انا بمختار علیک احدًا ابدًا، ته زما لپاره لکه پلار او اکا یې، پلار او اکا یې ورته
وویل یا زید اتختار العبودیة، یعنې مریی توب دي تر حریت خوښ دی؟ قال زید
ما انا بمفارق هذا الرجل، نو علیه الصلوة والسلام چې د زید رضی الله عنه حرص ولیدی پر
عدم مفارقت له ده څخه، قال ﷺ اشهدوا تاسي یعني پلار او اکا ته یې وویل چې
زید زما له خوا ازاد دی، نو پلار او اکا یې په ډېره خوشحالی زید د علیه الصلوة
والسلام سره پرېښو، او دی یې زید بن محمد وباله، نو د جاهلیت په زمانه کې
ټولو خلګو زید بن محمد باله، حتی چې دا آیت نازل سو ادعوهم آه.

فَإِنْ لَّمْ تَعْلَمُوٓا اٰبَآءَهُمْ فَإِخْوَانُكُمْ فِى الدِّيْنِ وَمَوَالِيْكُمْ

او که تاسي ته نه وه معلوم پلرونه ددوی چې نسبت یې وکړئ، نو دوی خو
ستاسي دیني ورونه دي او ستاسي ازاد شده ګان مریان، نو که چا پو ښتنه در څخه
وکړه چې دا سړی ستا څه دی ورته ووایه چې دیني ورور مي دی او مولی مي دی.

وَلَيْسَ عَلَيْكُمْ جُنَاحٌ فِيْمَآ اَخْطَاْتُمْ بِهٖ

او نسته پر تاسي ګناه په هغه ویناوو کې چې خطاوزئ او تېي مو هېري وي،

او یا مو سهواً پر خوله درسي یعني چي نسبت د متبنی وه متبنی ته وکړئ لقوله ﷺ رفع عن امتي الخطاء والنسيان.

## وَلَٰكِن مَّا تَعَمَّدَتْ قُلُوبُكُمْ

لکن ګناه په هغه صورت کي سته چي په قصد د زړه یعني چي درمعلومه وي ته يې نسبت متبنی ته وکړئ، عن سعید بن ابی وقاص وابی بکرة رضی الله عنهما قالا قال رسول الله ﷺ من ادعى الى غير ابيه وهو يعلم (یعني پر دې يې علم درلودی چي زما پلار نه دی) فالجنة عليه حرام (ای بالدخول الاولی) رواه الشیخان في الصحيحين، وابو داؤد وابن ماجه.

**فائده**: مراد له نسبت څخه وغیر ته د پلار عام دی که پلار بدل کي او که نیکه وهلم جرا. یا قوم بدل کړي، په پښتنو کي دا رواج سته چي یو سړی د یو رزیل قوم څخه وي مثلاً جت وي یا پښ یا پارسیبان وي یا مصلي وي چي دا قومونه د پښتنو په رواج کي رزیل دي که څه هم چي مؤمن صالح وي ودغو اقوامو ته عندالله رزیل نه وایي لکن د رواج له سببه یو سړی چي د دغو نامورو قومو څخه وي شرمېږي، نو ګاهي وایي چي زه سید یم ګاهي وایي بارګزی یم ګاهي وایي پوپلزی یا محمد زی یم الی غیر من الاقوام المعتبرة في العرف، نو داسي سړی په دې حدیث کي داخل دی، ولي چي ده خو هم په سلسلة النسب چي دده ؤ یو نیکه يې په سید بدل کړی وغیر ذالک... مصرع:

په قیامت نسته داسي پوښتنه...... چي د چا زوی يې له کوم وطنه

## وَكَانَ اللَّهُ غَفُورًا رَّحِيمًا

او دی خدای ﷻ بليغ المغفرة والرحمة يغفر للخاطئ ويرحم.

**فائده**: امیر المؤمنین عمر بن الخطاب رضی الله عنه د چا څخه واورېدل چي داسي يې ویل اللهم اغفر خطایای، عمر رضی الله عنه ورته وویل یا ابن آدم استغفر لما تعمدت من الذنوب، واما الخطایا فقد تجاوز الله عنها.

**مسئله**: که یو مجهول النسب سړي ته چا وویل چي دا زما زوی دی، نو که مجهول النسب سړی دومره کشر ؤ چي له قائل څخه يې زېږېدل ممکن وه، نو نسب

يې له قائل څخه ثابتېږي، او که دده مريې ۇ پر ازادېږي، لقوله عليه الصلوة والسلام من ملک ذا رحم منه عتق عليه، او که داسي ۇ چي دا سړی له قائل څخه يې زېږېدل ممکن نه وه يا پر مشرۇ يا مساوي العمرۇ يا لږ کشرۇ، نو نسب يې نه ثابتېږي لعدم الامکان، او که يې مريې ۇ دا قول د مالک مجاز دی له عتق څخه په نېز د ابو حنيفةؒ او په نېز د يارانو دده يعني د شاگردانو دده يعني ابو يوسف ومحمدؒ، مجاز له عتق څخه هم نسي کېدای لان حمل کلامه علی الحقيقة محال والمجاز يستدعی امکان الحقيقة عندهما فيلغوا هذا الکلام عندهما لاعنده، ولې په نېز دده امکان د حقيقت في الواقع د مجاز شرط نه دی بلکې امکان التکلم به من حيث العربية، ولا شک ان عربية قوله للاکبر سنًا صحيح من حيث العربية لانه مبتدأ او خبر دی لکن قرينه د اکبر والي سته چي مانع د حکم سول ای النسب فلذا ينتقل کلامه الی المجاز وهو العتق وهذه المسئلة مبسوطة في الفقه الحنيفي.

بغويؒ وايي چي رسول اللهﷺ خلک رابلل يعني وجهاد في سبيل الله ته، هغو به ورته وويل چي زه به د مور او پلار سره مصلحت وکړم، نو دا ايت نازل سو.

## اَلنَّبِيُّ اَوْلٰى بِالْمُؤْمِنِيْنَ مِنْ اَنْفُسِهِمْ

نبي[۴] احری او اليق دی، والحاصل چي نبيﷺ احری واجدر دی د مؤمنانو لپاره تر خپلو ځانو في کل امر من امور الدين والدنيا (لقوله تعالی حکاية عن يوسف الصديقؑ :ان النفس لامارة بالسوٓ: والنبيﷺ نه بولي خلک مگر وه هغه کارته چي په هغه کار کي نجات او فوز د مؤمنانو په دارينو کي نغښتې وي فلا يجوز اطاعة الاباء والامهات في مخالة امر النبيﷺ في جميع الامور التي منها الجهاد في سبيل الله دی، را وړيان د حديث وايې چي دا ايت په غزوة تبوک کي نازل سو چي عليه الصوة والسلام امر عام وکړی ومؤمنانو ته د خروج الی غزوة تبوک، يعني غير المعذورين کالاعمی والاشل، والمريض صاحب الفراش وغير ذالک، په حديث کي د بخاري او مسلم د انسؓ څخه لايؤمن احدکم (ای ايمانا کاملاً) حتی اکون احب اليه من والده وولده والناس اجمعين.

**يوه سه:** چي معنی د حديث دا ده چي في الامور الاختيارية لان الامور الطبعية خارجة عن الامکان ولايکلف الله نفسًا الا وسعها، يعني چي د ده په اختيار کي وي

وعن ابي هريرة رضي الله عنه ان رسول الله ﷺ قال مامن مؤمن الا وانا اولى به في الدنيا والاخرة اقرئوا ان شئتم (يعني الدليل على ذالک) النبي اولى بالمؤمنين من انفسهم عليه الصلوة والسلام زياته كړه هر مؤمن چي مړ سي وترک مالاً فليرثه عصبته من كانوا (يعني ميراث خواره د ده كه ذوي الفروض او كه عصبه وي وغير ذالک نو د عصباتو څخه مراد عصبات مصطلح د علم ميراث نه دي بلكه عام تر هغو مطلق وارث دى) عليه الصلوة والسلام زياته كړه ومن ترک او كه پر ميت پور باندي ؤ او ضياعا يعني كشنى اولاد يې پاته ؤ چي پر نفقه قادر نه ؤ نو دي ماته راسي فانا مولاه يعني چي پور يې هم ادا كړم او ضائع عيال ته به يې نفقه برابروم.

## وَأَزْوَاجُهُ أُمَّهَاتُهُمْ

او د عليه الصلوة والسلام مطهرات زوجات د ټولو مسلمانانو ميندي دي يعني په تعظيم كي د حق ددوى او په حرمت كي د نكاح ددوى لكل واحد من المؤمنين ابدًا لا في النظر اليهن بلا حجاب او يوازي ددوى سره په خلوت كي ناسته فانه حرام في حقهن كما في حق الاجنبيات كما قال واذا سئلتموهن متاعًا فسئلوهن من وراء الحجاب، او ددوى ولوڼو ته لكه خديجة الكبرى لوڼي اخوات المؤمنين نه ويل كيږي، او نه يې مؤمن ته نكاح حرامه ده لكه د خديجة الكبرى رضي الله عنها، دوې لوڼي يوه وروسته تر بلې د حضرت عثمان رضي الله عنه په نكاح كي وي او فاطمة الزهراء رضي الله عنها د علي رضي الله عنه په نكاح كي وه، او ددوى ورونه ماماګان د مؤمنانو بلل كيږي، او نه ددوى خويندي خالات د مؤمنانو بلل كيږي، دليل يې دادى چي اسماء د ابى بكر رضي الله عنه لور وه د زبير رضي الله عنه په نكاح كي وه، نو خلكو به ويل چي د ام المؤمنين عائشة رضي الله عنها خور د زبير بن عوام په نكاح كي ده، داسي يې نه ويل چي خالة المؤمنين يې په نكاح كي ده، بغوي رحمه الله وايي چي يوې ښځي و عائشي رضي الله عنها ته وويل يا امه يا امي، نو دې ورته وويل چي زه ستا مور نه يم بلكې ام رجالكم، ولي ته هم ښځه يې زه هم، نو ستا سره خو د نكاح بند وبست نه دى ممكن چي ستا مور سم، او بل دا چي ستا سره خو زه بې حجابه خبري كوم، كذا اخرجه البيهقي في سننه انتهى مع زيادة، نو ددې روايت څخه دا معلومه سوه چي مراد په آيت كي تحريم النكاح دى، او په قرائت كي د ابى بن كعب رضي الله عنه، داسي راغلي دي امهاتكم.

وَأُولُوا الْأَرْحَامِ بَعْضُهُمْ أَوْلَىٰ بِبَعْضٍ فِي كِتَابِ اللَّهِ

**پوه سه:** چي اولو جمع د ذو ده خلاف القياس، او مراد د اولوية څخه اولويت في التورات دی، والمعنى خاوندان د قراباتو که له ذوی الفروض څخه وي او که د عصباتو څخه وغير ذالک، بعض د ذوی اولی په بل سره په تورات تر نورو لکه چي بيان به يې راسي په کتاب کي د خدای ج يا معنی في حکم الله، يا معنی په لوح محفوظ کي يا په قرآن وهو هذه الآية يا آيت المواريث، ولذالک قال رسول الله ﷺ کما مر عنقريب، فايما مؤمن وترک مالاً فليرثه عصبة من کانوا.

مِنَ الْمُؤْمِنِينَ وَالْمُهَاجِرِينَ

**پوه سه:** چي صله د لفظ د اولی ده يعني چي دا اولی الارحام د ه د مؤمنانو څخه او که د مهاجرينو څخه وي.

**فائده:** دا آيت ناسخه دی. ولي چي په ابتداء کي د اسلام التورات بالهجرة والموالات في الدين والمواخات سره ؤ هغه ټوله منسوخ سوه.

إِلَّا أَنْ تَفْعَلُوا إِلَىٰ أَوْلِيَائِكُمْ مَعْرُوفًا

مگر نه که تاسي ورکاوه و دوستانو ته يعني من المؤمنين والمهاجرين معروف في الشرع يعني وصية.

**پوښتنه:** که سړی عند الموت وصيت وکړی چي زما ټوله مال د مؤمنانو دی يا د مهاجرينو دی، نو ددې په رڼا کي بايد اولی سي دغه موصی لهم تر ټولو ورثه ؤ؟

**ځواب:** دا آيت عام خو دی لکه سائل چي ووېل لکن خص منه بعض المال بالحديث المشهور واجماع الامة يعني دا موصی له اولی دی تر ورثه ؤ په ثلث المال کي دون کله.

كَانَ ذَٰلِكَ فِي الْكِتَابِ مَسْطُورًا ۝

"کان ذالک" ای ما ذکر من الاحکام "في الکتاب" ای اللوح المحفوظ او القرآن مثبت او ليکل سوی.

**درويش وايي:** چي چا تفسير د كتاب په تورات سره كړى دى ليس بشيئ لانه يخالف السباق والسياق.

وَإِذْ أَخَذْنَا مِنَ النَّبِيِّينَ مِيثَاقَهُمْ

**بوه سه:** چي عامل د اذ اذكر دى والخطاب لنبي ﷺ، ذكر كړه هغه وخت.

**بوه سه:** چي له ذكر څخه د وخت مراد ذكر دى د ماوقع في الوقت وهو الميثاق ههنا، چي موږ واخستى له انبياء عليهم السلام څخه يعني له ټولو څخه ټينګه وعده، دا ميثاق هغه وخت ؤ چي د ملا څخه د آدم دوى راوه ايستل سوه في ضمن جميع ذرية آدم، وعده ددې وه چي تاسي به عبادت د خداى ج كوئ او خلګ و عبادت ته د خداى ج رابولئ او خپلو خپلو قوموته به نصيحت كوئ او يو د بله سره به كومک كوئ ولو بالوصية يعني قوم ته به واياست كه تر ما وروسته يو نبي راغلى چي تائيد يې په معجزاتو سره كړل سوى ؤ تاسي به يې متابعت كوئ.

وَمِنْكَ وَمِنْ نُوحٍ وَإِبْرَاهِيمَ وَمُوسَىٰ وَعِيسَى ابْنِ مَرْيَمَ

او له تا څخه يا محمد (ﷺ) او د نوح او د ابراهيم او د موسىٰ او د عيسىٰ زوى د مريم صلوات الله تعالى وسلامه عليهم اجمعين.

**سوال:** دغه مذكورين انبياء كرام خو په من النبيين كي داخل وه، نو د بيا ذكر كولو څه حكمت دى؟

**ځواب:** تنبيه ده پر فضيلت ددوى پر نورو انبياؤ ع لكونهم اصحاب الشرائع الجديدة والكتب النازلة عليهم وكونهم اولوا العزم من الرسل.

**فائده:** رسول كريم ﷺ يې په ذكر كي په دې آيت كي د مخه كړى كه څه هم په زمانه كي تر ټولو وروسته دى، له دې سببه چي په حديث شريف كي چي روايت يې سعد له قتاده رض څخه كړى دى حيث قال ع كنت اول الناس في الخلق (اى من صلب آدم) وآخرهم في البعث (اى الرسالة الى لناس)

وَأَخَذْنَا مِنْهُمْ مِيثَاقًا غَلِيظًا ۝

او واخستى موږ له دوى څخه يعني الانبيا عليهم السلام وعده يعني چي تاسي به وفا كوئ په ما عهدوا سره ډېره سخته وعده عظيم الشانه يا ټينګه وعده په قسمو سره.

**سوال:** اخذ المیثاق له انبیاء ؑ څخه خو دمخه ذکر سو، نو په اعاده کي یې څه فائده ده؟

**ځواب:** تکرار یې لپاره د دغه وصف چي غلیظًا دی.

لِيَسْـَٔلَ الصّٰدِقِينَ عَن صِدْقِهِمْ

دا جمله علت ده د ماقبل لپاره چي اخذ المیثاق ؤ، والمعنی فعلنا ذالک لیسأل الله تعالی یوم القیامة الانبیاء الذین صدقوا عهودهم یعني دوی پر ځای کړي وې خپلي وعدې چي خپلو اقوامو ته یې تبلیغ کړی ؤ.

**پوه سه:** چي لیسئال آه بیان د غایة او د غرض اخذ المیثاق.

**فائده:** په دې سوال کي د انبیاء ؑ څخه مع ان الله ﷻ اعلم بحالهم تبکیت او الزام دی پر الذین کفروا و اثبات الحجة علیهم، قال القرطبي رحمه الله في تفسیره اذا کان الانبیاء یسئلون فکیف بغیرهم.. سعدی شیرازی قدس سره په تائید د قول د قرطبي وایي:

دران روز کز فعل پسند و قول ..... اولو العزم راتن بلرزد زهول

بجای که دهشت خورد انبیاء ..... تو عذر گناه را چه داری بیا

او یا معنی د آیت داده چي سوال به وکړل سي له هغو کسانو څخه چي تصدیق د انبیاء ؑ یې کړی ددوی د تصدیق.

**سوال:** په آیت کي لفظ د صدق راغلی دی او دوی خو تصدیق کړی ؤ وشتان بینهما؟

**ځواب:** مصدق د صادق هم صادق دی فافهم.

وَأَعَدَّ لِلْكٰفِرِينَ عَذَابًا أَلِيمًا ۝

او خدای ﷻ اراسته کړی کفارو لره عذاب درد ورکونکی.

**پوه سه:** چي دا جمله عطف ده علی مادل علیه قوله لیسأل الصادقین کانه قال فاثاب المؤمنین واعد للکافرین آه.

يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ ٱذْكُرُوا۟ نِعْمَةَ ٱللَّهِ عَلَيْكُمْ إِذْ جَآءَتْكُمْ جُنُودٌ

اې هغه كسانو چي ايمان يې راوړی دی در ياد كړئ نعمت د خدای ج پر تاسي باندي (مراد له ذكر څخه نعمت هر ځای چي په قرآن كريم كي راسي شكر د نعمت دی)

"اذا جآءتكم" ظرف دی د نعمت "جنود" لښكرونه چي كفار د قريش وه او غطفان وه، بني مرة وبني اشجع وبني سليم وبني اسد ويهود قريضه والنضير چي مجموع پر صحيح روايت دوولس زره (۱۲۰۰۰) كسه وه.

**درويش وايي:** چي دا غزا په نامه د غزوة الخندق هم يادېږي او په نامه د غزوة الاحزاب هم وايي، تاريخ وايي: چي دا واقعه د شوال په مياشت په سنه (۴) د هجرت كي واقع سوې ده كذا في المواهب اللدنية، وروسته تر اتو مياشتو د شړلو او جلا وطن كولو د بني نضير.

**فائده:** قصه د اجلاء د بني النضير داسي وه، تاريخ وايي چي عليه الصلوة والسلام چي مدينې منورې ته راغلی، نو د بني قريضه د قوم او د بني نضير د قوم سره چي د يهودانو د مدينې دوه قومه صلح وكړه چي تاسي به نه دښمن ته زما كومك وركوئ پر ما باندي او نه ماته پر دښمن زما، نو بني النضير چي يهودان د خيبر وه اصلاً او مدينې ته نژدې په يوه قريه كي چي نوم يې زهره ؤ اوسېدل، قرار داد او صلح يې ماته كړه چي عليه الصلوة والسلام سره خلفاء اربعهؓ ابوبكر، عمر، عثمان، علي رضي الله عنهم ددوی كلي ته ورغلی ؤ د يوه كار لپاره، نو بني النضير دوی كښېنول د لوی دېواله د يو بام سره، نو ددوی طمع داوه چي عليه الصلوة والسلام سره د خلفاؤ رضي الله عنهم مړ كړئ، نو يو سړی يې پر بام دمخه خېژولی ؤ او لويه ډبره يې هم ورسره پورته كړې وه چي پر عليه الصلوة والسلام او خلفاؤ رضي الله عنهم يې راشوه كړې چي تېوله مړه سي، جبرئيل عليه السلام خبر راوړی چي چابک ولاړسئ چي له بامه ډبره راغورځول كېږي، عليه الصلوة والسلام سره د اصحابو چسف ولاړ سول، ډبره چي يې رايله كړه دوی ځندي خلاص سول، نو دا ميثاق چي دوی مات كړی نو عليه الصلوة والسلام محمد بن مسلمةؓ ورواستاوه چي زما له ښاره ووزئ يعني د قريب وه مدينې ته كلي چي د زهره يې نوم، نو دوی منع وكړه له جلا وطنی څخه په سبب د عناد د رئيس ددوی چي حيی بن اخطب ؤ چي په عناد كي د رسول الله ﷺ مشابه د ابوجهل سره په قريشو كي،

نو عليه الصلوة والسلام فوج كشي پر وكړه، نو ديو محاصره وه شپږ ورځي، او ددوى په زړو كي خداى ج رعب او بېره پيدا كړه، نو عليه الصلوة والسلام ته يې حال واستاوه چي موږ فرار كېږو زموږ وينه مه تويوه، عليه الصلوة والسلام ومنل نو دوى خالي لاس له خپلي قريې څخه ووتل او ددوى مالونه، كورونو په غنيمت مسلمانانو ته پاته سوه، نو بعض ددوى اذرعات چي شام ته نژدې د يو ځاى نوم دى او بعض يې خيبر ته ولاړه، او ددوى رئيس حيى بن اخطب سره د بعض مشرانو مكې ته ولاړه، او قريشو ته يې وويل چي موږ ستاسي ملګري يو پر جنګ د مسلمانانو، قريشو هم په سبب د شدت بغض د عليه الصلوة والسلام ددوى سره موافقت وكړى.

تاريخ وايي: چي د راغلو كسانو څخه مكې ته نامورې كسان د يهودانو دغه كسان وه سلام بن ابى الحقيق حيى بن اخطب كنانة بن الربيع وهودة بن قيس وابو عامر الوالبي ونضر من بني النضير ونضر من بني واهل، نو قريشو ته يې وويل موږ ستاسي ملګري يو ترهغو چي د مسلمانانو ريښې مو نه وي كښلي.

**درويش وايي:** چي قريشو ورته وويل چي تاسي اهل د كتاب اول ياست يعني تورات، دا راته ووايا ست چي زموږ او د محمد چي اختلاف دى موږ پر حق يو او كه محمد، او زموږ دين خير دى او كه د محمد؟ دوى ورته وويل بل دينكم خير من من دينه وانتم اولى بالحق منه دا چي دې يهودانو قريشو ته وويل دوى ډېر خوشاله سوه، او د يهودانو دعوت ته يې پر حرب رسول اللهﷺ مرحبا وويل، او ابو سفيان بن حرب مرحبابكم احب الرجال عندنا من عاهدنا على حرب وعداوة محمد (ﷺ) نو دې يهودانو چي د بني نضير او بني وائل د قبيلو چي تعداد يې شل كسه وه، ابو سفيان ته يې وويل چي ته پنځوس كسه د مختلفو قبائلو څخه د قريشو مختار كړه او ته به هم پكښې شامل يې چي موږ او دا پنځوس كسه تر پوښ د كعبې لاندي سو، او ځيګرونه په كعبه پوري يعني په دېوالو پوري د كعبې جوت كړو، بيا به يوه خوله ووايو چي والله بالله چي موږ ټول له متفق يو پر حرب د محمد، او موږ به دده سره جنګ كوو بابقى منا رجل واحد، ففعلوا ذالک، وقد حكى الله ذالک الصنيع من اليهود بقوله في موضع آخر: أَلَمْ تَرَ إِلَى الَّذِينَ أُوتُوا نَصِيبًا مِّنَ الْكِتَابِ (يعني يهود المدينة چي كتاب تورات دوى ته وركړل سوى دى) الى قوله وَكَفَىٰ بِجَهَنَّمَ سَعِيرًا، وروسته دا كسان د يهودانو

چي د قریشو سره یې معاهد وکړه د غطفان قبیلې ته ولاړه او هغه یې هم باعثه کړه پر قتال د نبي ﷺ، نو دې یهودانو د غطفان د قبیلې سره وعده وکړه چې موږ به د یوه کال تول خورما د خیبر تاسي ته درکوو، نو ددوی سره یې معاهده وکړه په دغه شرط مذکور، او بیا عیینه و خلفاؤ ته نوشته کړه من بني اسد، قال البغوي رح چي قریش د مکې ووتل د مدینې پر خوا چې قائد یې ابو سفیان بن حرب ؤ او د غطفان قبیلې چي قائد یې عیینة بن حصن الفزاري ؤ، راوي وایي چي ابو سفیان څلور زره عسکر جمع کړه او بیرغ یې و عثمان بن ابی طلحة ته ورکړی، او په عسکرو کي د ابو سفیان درې سوه (٣٠٠) آسان وه او زر (١٠٠٠) اوښان وه چي د مکې څخه ووتل ونزلوا بمر الظهران او هورې د اسلم قبیله او د اشجع قبیله او د بنو مرة قبیله او د بنو کنانة قبیله او د فزارة قبیله او د غطفان قبیله ورسره یو ځای سوې، بعض رواة وایي چي مجموع لښکرونه لس زره (١٠٠٠٠) کسه وه، او صحیح داده چي دوولس زره (١٢٠٠٠) کسه وه، نو ټول د مدینې پر خوا روان وه، نو له دې کبله ودې غزا ته غزوة الاحزاب وایي، راویان ددې قصې وایي چي قریشو چي دا آمادګي وکړه فوراً یو جماعت د خزاعة د قبیلې چي حلیفان د رسول اللهﷺ وه په مکه کي، په څلورو ورځو کي یې ځانونه مدینې ته ورسول او ټوله قصه و علیه الصلوة والسلام ته وکړه، راویان د قصې وایي چي علیه الصلوة والسلام دا خبره د اجتماع د اقوام مختلفه وو کمامر لپاره د حرب خپل واوریده، اوله خبره یې دا وکړه حسبنا الله ونعم الوکیل، نو ده مبارک په قرار د پیغام الهي: وشاورهم فی الامر فاذا عزمت فتوکل علی الله، اصحاب رایٔ د مهاجرینو او انصاروﷺ یې د مشورې لپاره راغونډ کړه، سلمان فارسي رض چي د مخه مریی او بیا ازاد کړل سوی ؤ او دا یې اول وارؤ چي په غزاء کي شامل سوی ؤ، نو سلمان فارسي رض دا مشوره ورکړه چي موږ چي به په فارس کي د داسي مشکل سره مخامخ سوو یعني چي د دښمنانو عدد به نهایته ډېر ؤ او مقابله بالمشافهة به مو په وس نه وه پوره، نو پر ځان به مو خندق راوګرځاوه د یوه کاره غره په لمن کي او شاد لښکر به د غره وخواته وه او مخ ته به یې خندق ؤ چي دومره به یې عرض ؤ چي آس نه سوای تر غور ځېدلای او بل لا څخه کوې، او دومره به یې عمق چي نه آس نه سړی ور کښته کېدای، ـ ـ ـ وای.

**درویش وایي:** چي په هغه زمانه کي جنګ یا د توري ؤ یا د غشي، نو د خندق په سبب نه تورو د دښمن او نه غشي د دوی پر مسلمانانو تاثیر کولای سوای، نو د

عليه الصلوة والسلام د سلمان فارسي ﷺ دا رايه خوښه سوه، نو يو غر چي په نامه سره د جبل سلع يادېدی پر دغه نقشه برابر يې پيدا کړی، نو عليه الصلوة والسلام پر مدينه منوره عبدالله بن ام مکتوم ﷺ مقرر کړی، او ښځي يې ټولي و محفوظو قلعو ته د مسلمانانو چي د مديني منورې دباندي وې واستولې او محافظ دربان به ورسره ؤ، نو عليه الصلوة والسلام د غزاء په نيت له مديني څخه د جبل سلع پر خوا سره د مهاجرينو او انصارو ﷺ راهي سول، بيرغ د مهاجرينو يې زيد بن حارثه ته ورکړی او بيرغ د انصارو يې سعد بن عبادة ﷺ ته ورکړی، او دري زره (۳۰۰۰) مهاجرين او انصار ورسره وه او (۳۶) آسان ورسره وه، چونکه د وتلو په وخت کي هلکان هم ورسره راوتلي وه چي يا به بلوغ ته رسېدلي وه يا نه، نو هغه کوچنيان چي بلوغ ته به نه وه رسېدلي هغه يې بيرته مديني ته رد کړه، يعني چي تر پنځلس کاله کم ؤ او چي د پنځلسو کالو به ؤ هغه ته به يې اجازه ورکړه يعني عبدالله بن عمر، زيد بن ثابت، ابو سعيد الخدري، براء بن عازب.




د خندق نقشه په خپله عليه الصلوة والسلام معلومه کړه، او هرو لسو کسانو څلوېښت گزه مځکه غارول او خاوري يې ځني ايستلې پر طرف د عسکرو تاچي خزه غونډي سي، لکن په سلمان فارسي ﷺ کي چي ډېر قوي سړی ؤ د مهاجرينو او انصارو اختلاف پيدا سو، هري ډلې به ويل چي سلمان فارسي ﷺ زموږ د ډلي دی، رسول الله ﷺ وويل چي سلمان منا اهل الله.

**درويش وايي:** چي دا نسبت د سلمان ﷺ لوی ځای د فخر او خوشالۍ ؤ يعني عليه الصلوة والسلام و ځان ته منسوب کړی.

**واقعه:** عمر بن عوف رض وايي چي زه وم، سلمان فارسي، حذيفه، نعمان بن مقرن المزني او شپږ کسه نور د انصارو وو چي خندق مو غاراوه، نابيره د خندق په منځ کي يوه سخته لويه ډبره چي په ښتنو يې گاره بولي پيدا سوه چي زموږ د اوسپني آلاتو هيڅ تاثير نه پر کاوه، بلکې بعض کلنگان پکښي مات سوه، نو عمر بن عوف رض وايي چي ما سلمان فارسي ته وويل چي ته له خندقه ور ووځه او صورت حال ددې گاره و عليه الصلوة والسلام ته بيان کړه، که يې وويل چي گاره پر ځای پرېږدئ خو پرې به يې بږدو، ولي موږ پر خپل سر د عليه الصلوة والسلام له نقشې ځخه نه سو تېرېدای، سلمان فارسي چي ورغلی عليه الصلوة والسلام په يوه ترکي خېمه کي تشريف فرما ؤ، سلمان چي صورت حال و عليه الصلوة والسلام ته ووايه، نو عليه الصلوة والسلام ورته وويل انا نازل ان شاء الله تعالی، آنحضرت ﷺ چي راغلی مارتول يې د سلمان د لاسه واخستی په اوله ضربه دريمه حصه د گاري جلا سوه او يو برق غوندي رڼا تر ډبري راووتل لکه څراغ چي سرې په توره شپه کي ولگوي، عليه الصلوة والسلام الله اکبر ووايه او مسلمانانو هم الله اکبر ووايه، بيا دويم وار عليه الصلوة والسلام په سوټک ووهل دوه ځايه سول او يوه لويه رڼا تر راووتل چي اطراف د مديني يې ټول روښانه کړل، لکان مصباحًا في جوف بيت مظلم فکبر رسول الله ﷺ تکبير فتح وکبر المسلمون، نو عليه الصلوة والسلام سلمان تر لاس ونيوی چي له خندقه وتی، سلمان رض و عليه الصلوة والسلام ته وويل بابی انت يا رسول الله لقد رئيت شيئًا ما رئيت مثله قط؟ عليه الصلوة والسلام پر نورو خلگو مخ راواړاوه او ورته وه يې ويل چي تاسي هم لکه سلمان چي وايي کوم شی وليدی؟ قالوا نعم، نو عليه الصلوة والسلام ورته وويل ضربت ضربتی الاولی فبرقت الذی رئيتم اضائت لی قصور الحيرة ومدائن کسرٰی کانها انياب کلاب واخبرنی جبرئيل ؑ ان امتی ظاهرة عليها، يعني حيرة او مدائن ښارونه د کسرٰی به فتح کړې، دوهم وار چي ما ووهل، نو هغه برق چي تاسي وليدی په هغه برق ماته ښکاره سوی کوښې، الحمرة من الروم لکه غاښونه د سپو فاخبرني جبرئيل ؑ ان امتک ظاهرة عليها، نو مسلمانان ډېر خوشحاله سول او دې ويل الحمد لله الذي موعده صدق وعدنا النصر بعد الحصر، منافقانو به ويل

تعجب دی وه محمد ته چي تاسي ته تمنّی او وعدې بالباطل در کوي او وايې چي زه د مدینې څخه قصور د حیرة او مدائن د کسری وینم او دا ځایونه ټول ته تاسي ته فتح سي او دی د بېري پر ځان خندق را ګرځوي او میدان ته د جنګ نه سي ورتلای فانزل الله حالهم في القرآن : وَإِذْ يَقُولُ الْمُنَافِقُونَ وَالَّذِينَ فِي قُلُوبِهِمْ مَرَضٌ (ای نفاق) مَا وَعَدَنَا اللَّهُ وَرَسُولُهُ إِلَّا غُرُورًا۝ چي موږ صرف په دې وعدو خطا باسي.

**درویش وايي**: چي راویان د قصې وايې چي علیه الصلوة والسلام سره ده مسلمانانو خاوري د خندق پر خپل شا وو مبارکو چلولې او دا کال ډېره لوږه او سختي پر مسلمانانو مسلطه وه رسول اللهﷺ چي حال زار د مسلمانانو ولېدی داسي وویل:

اللهم لا عیش الا عیش الاخرة ......... فارحم الانصار والمهاجرة

مسلمانانو په جواب کي داسي ورته وویل:

نحن الذین بایعوا محمدا ......... علی الجهاد ما بقینا ابدًا

راوي وايي چي قریشو او بني قریضه اراده وکړه چي پر مدینه حمله وکړي، نو علیه الصلوة والسلام درې سوه (۳۰۰) کسه مدینې ته واستول چي مدینه د احتمالي یرغل څخه وساتي په حدیث صحیح کي د البراء بن عازب رض څخه روایت دی چي ما ولېدی علیه الصلوة والسلام چي خاوري د خندق ئې پر خپله شا مبارکه اچولې حتی چي ګرد او غبار د خندق د ده د نس مبارک وبېښتیان پټ کړي وه او دا بیتونه د ابن رواحه رض د ځان سره په جهر ویله:

اللهم لو لا انت ما اهتدینا ..... ولا تصدقنا ولا صلینا

فانزلن سکینة علینا ..... وثبت الاقدام ان لاقینا

ان الاولی قد بغوا علینا ..... اذا ارادوا فتنة ابینا

په اخیر کي به یې اواز ته ډېر مد ورکړی.

**فائده**: د سلمان فارسي رض په مدح کي یو شاعر وايي:

لقد رقی سلمان بعد رقه ....... منزلة شامخة البنیان

وکیف لا والمصطفی قد عده ....... من اهل بیته عظیم الشان

كمامر بيانه تفصيلاً، حسين الكاشفي رح ميگويد: بعد از شش روز كه مهم خندق سمت اتمام يافت، اقبلت قريش ومن معهم، خندق راديدند گفتند اين كار عرب را نيست ونبوده، نو دوی په يوه شپله كي واړول. راوي وايي چي عليه الصلوة والسلام ومن معه د خندق په محاصره كي قريب يوه مياشت تېره كړه وهو اثبت الاقوال.

**درويش وايي:** چي په سبب د حفر الخندق دې غزاء ته غزوة الخندق وايي. په دې دوران كي اكثر حال د كفارو بې فائدې غشي ويشتل او ډبري ويشتل وه، راوي وايي چي نوفل بن عبدالله راغلی او آس يې په غمچينه وواهه چي تر خندق يې ابلې خواته واړوي، نوفل سره د آسه په خندق كي ولوېدی فنزل اليه علي رض فضربه بالسيف دوه ځايه يې كړی، په دې دوران كي يو ډېر مشهور جنگيالی پهلوان چي نوم يې عبدود ؤ (باضافة عبد الی ود چي ديو بت نوم ؤ) چي عمر يې په دغه وخت كي نيوي (۹۰) كاله ؤ، شا وخوا گرځېدی يو ځای يې پيدا كړی د خندق چي تنگ ؤ پر آس يې رغ وكړی آس تر خندق واوښتی، نو عبدود نعره وكړه يا محمد يو څوک راواستوه چي زه يې جنت ته واستوم (دا خبره ده د پسخنده وكړه په دين د اسلام) رسول الله ﷺ پر خپلو ملگرو رغ وكړی چي څوک مقابلې ته د عبدود ورځي چا رغ ونه كړی علي رض وويل چي زه ورځم، نو عليه الصلوة والسلام خپله توره ذوالفقار ورده ته وركړه او دعاء د نصرت يې ورته وكړه، راوي وايي چي د عبدود دا مشهوره خبره وه چي كه څوک زما څخه درې غوښتنې وكړي پر يوه ځای زه يې حتماً يوه منم. نو علي رض ورغلی له عبدود څخه يې پوښتنه وكړه چي دا ستا څخه منقوله خبره رشتيا ده؟ عبدود ورته وويل هو! نو علي رض ورته وويل چي زما اول خواست له تا څخه دادی چي ايمان راوړه، عبدود وخندل چي دا خو محال ده. علي رض ورته وويل چي دويم خواست مي دادی چي ته بيرته ولاړ سه د كومه خوا چي راغلی يې، عبدود ورته وويل چي زه په څه خواری او د ځان د خطره راغلی يم بيرته به خالي لاس ځم؟ دا خو زما د نيوي كالو د شجاعت بدنامي ده. علي رض ورته وويل چي درېيم خواست مي دادی چي زما سره جنگ وكړه، عبدود وخندل چي ما په ټوله عمر كي داسي څوک نه دی ليدلی چي ماته دي ووايي چي زما سره جنگ وكړه، د علي رض غرض دا ؤ چي دی دا ونه وايي چي محمد ﷺ دي خپله جنگ ته راسي، نو څرنگه علي رض پياده ؤ نو

عبدود هم خپل د آس پښې پرې کړې ځان يې پياده کړی، او علي ﷺ ته يې وويل چې واری کوې که يې زه وکړم علي ﷺ ورته وويل چې وه يې کړه، عبدود په خپل ټول طاقت سره په توره وواهه، علي ﷺ توري ته سپر ونياوه ځان يې خلاص کړی، دوهم وار علي ﷺ چې پر عبدود واری وکړی عبدود هم توري ته سپر ونيوی، القصه دريم وار چې د علي کرم الله هاشمي رنګونه په جوش راغله داسې د توري ګذار يې پر عبدود وکړی چې سپر يې پرېکړی او د عبدود نيمه حصه د اوږې ورسره پرې سوه عبدود پر مځکه غځار سو علي ﷺ يې سر ځندي پرېکړی، په مسلمانانو کې د الله اکبر ناري پورته سوې، د الله اکبر ناري چې عليه الصلوة والسلام په خپله خېمه کې واورېدې په دې پوه سو چې علي ﷺ عبدود قتل کړی، نو يې داسې وويل: لافتی الا علي ولا سيف الا ذوالفقار، په کشف الاسرار کې وايي چې د کفارو درې مشهوره کسان ووژل سول او د اصحابو څخه د عليه الصلوة والسلام يو هم نه دی شهيد سوی.

**فائده:** له ډېر شغل څخه د کيندلو د خندق د عليه الصلوة والسلام يو د عصر (مازديګر) لمونځ قضا سو، ولذالک قال رسول الله ﷺ شغلونا عن الصلوة الوسطی صلوة العصر ملأ الله قبورهم وبيوتهم نارا، جابر بن عبدالله ﷺ وايي چې رسول الله ﷺ په نس پوري ډبري تړلي وې د لوږي له کبله، دی وايي چې درې ورځي کېدې چې موږ د شي خوند نه وُ څکلی، نو جابر ﷺ وايي ما وويل چې ماته اجازه راکړئ چې زه يو وار کورته ولاړ سم، عليه الصلوة والسلام اجازه راکړه زه کورته ولاړم مايني ته مې وويل چې ما عليه الصلوة والسلام په داسې حال کې وليدی چې د لوږي يې په نس پوري ډبري تړلي وې نو هيڅ صبر مې نه کېدی نو کورته څه شی سته؟ هغې يوه بني راوړه ايستل چې په هغې کې يوه کاسه وربشي وې او ما کورته يو وری درلودی هغه مې ذبح کړی او مايني مې وربشي وه ميچن ته واچولې اوړه کولې يې، چې زه د وري د ټوک ټوک کېدو څخه خلاص بدم ماينه مې د ميچني څخه فارغه سوه، خير غوښي ما کټو يا دېګ ته واچولې او باندې مې کړې، او وړه هم خمير سوه يعني قابل د پخېدلو سوه، مايني مې په تناره کې اوربل کړی چې پتيري پر ووهي، زه د رسول الله ﷺ پر خوا ته راهي کېدلو په حال کې وم چې ماينه مې راته وويل چې ډېر فهم کوه چې د عليه الصلوة والسلام سره د ډېرو صحابه وو په راوستلو مو رسوا نه کړې، ولې ورئ يو دی او

ښېري هم لږ دي، جابر رضي الله عنه وايي چي زه خندق ته ورغلم او علیه الصلوة والسلام ته مي پټ وويل، چي طعيمة په صيغه د تصغير يعني يو لږ طعام ما پخ کړی دی، نو يو ته دوه يا درې کسان نور راسره ولاړ سئ، علیه الصلوة والسلام راته وويل وکم هو يعني څومره اندازه طعام دي برابر کړی دی، خو مايې بيان ورته وکړی، علیه الصلوة والسلام وويل کثير طيب، او ماته يې وويل چي ورسه مايني ته دي ووايه چي دېګ له اوره کښته نه کړي او پر تناره ډوډۍ ونه وهي تر څو چي زه نه يم دررسېدلی، وروسته په لوړ اواز علیه الصلوة والسلام ناره وکړه يا اهل الخندق ان جابراً قد صنع سوراً (يعني مهماني) فحي هلا، ځان آراسته کړئ او ژر کوئ، جابر رضي الله عنه وايي زه کور ته راغلم او مايني ته مي وويل ويحک (دا کلمه د ترحم ده) جاء النبي ﷺ بالمهاجرين والانصار، فقالت وبک وبک کنايه ده له ښېرا څخه ای فعلی الله بک کذا وکذا، مايني مي راته وويل آيا ستا څخه يې د طعام پوښتنه وکړه؟ ما ورته وويل نعم، مايني مي راته وويل الله ورسوله اعلم، نو علیه الصلوة والسلام اول سړی ؤ چي کور ته راغلی او ورسره کسانو ته يې وويل چي ازدحام مه کوئ دا وايي چي ما د خميرو ورو کاسه ورته رواخستل، آنحضرت ﷺ پکښې توه کړه او بيا دېګ ته ورغلی او په هغه کي يې هم توه کړه او دعاء د برکت يې وکړه، بيا جابر رضي الله عنه وايي ماته علیه الصلوة والسلام وويل چي ته يوه بله ښځه د همسايه ګانو پيدا کړه چي ستا د مايني سره ډوډۍ پر تناره ووهي، او ماته يې وويل چي لسو کسو ته اجازه ورکړه چي راسي، جابر رضي الله عنه وايي چي علیه الصلوة والسلام ډوډۍ ميدوله چي ددې لسو کسو ښېدله او په مړيدل به، او لس برخي د غوښي به يې پر اېښوولي، دا برخي او ډوډۍ به يې ځني را ايستلې او د دېګ او تناره سر به يې پټ کړی، جابر رضي الله عنه وايي چي دا موضوع او تقسيم د ډوډۍ او د غوښو د علیه الصلوة والسلام په مبارک لاس شروع ؤ چي لسو کسو به ډوډۍ وخوړل هغه به بيرته خندق ته رهي کېدل ثم وثم حتی چي زرو (۱۰۰۰) کسانو دا ډوډۍ او غوښې وخوړلې او ولاړه خندق ته، جابر رضي الله عنه وايي چي زما دي قسم په الله وي چي هم ډوډۍ او هم غوښې پاته سوې او زموږ دېګ د غوښو ډک ؤ او تنور د ډوډۍ ډک ؤ، بيا په اخير کي علیه الصلوة والسلام، ما او زما مايني ډوډۍ او غوښې وخوړلې، بيا علیه الصلوة والسلام زما کور والا ته وويل: کلي واهدی، ته يې وخوره

او د همسایه ګانو کورو ته یې واستوه، فان الناس اصابتهم مجاعة.

**درویش وایي:** چې دا قصه چې تاسي واورېدل معجزه باهره وه د رسول اللهﷺ او زه د رسول اللهﷺ دغه کارنامې داسي بیانوم:

بر فلک برتر بود اسرار او ...... فقر و جوع سنګ بستن کار او

**درویش وایي:** چې یوه میاشت چې پر پوره کېدلو سوه د نصرت الهي نېټه ورسېدل، کما قال الله تعالی:

## فَأَرْسَلْنَا عَلَيْهِمْ رِيحًا

ای علی جنود احزاب الکفرة من الطوائف المختلفة کمامر تفصیله "ریحًا" یعنی شرقي باد چې باد صبا یې بولي، قال علیه الصلوة والسلام نصرت بالصبا واهلکت عاد بالدبور یعني د کښې غربي باد، راویان د قصې وایي چې دا باد صبا ډېر یخ وُ په شپه کي ذات شتاء اود کفارو پر عسکرو وُ فقط خاوري د خندق یې پر یاشلې، موږي د خېمو یې ورو کښېل او تناوونه د خېمو ددوی یې پرې کړه اوروڼه یې مړه سوه او کټوي یې چپه سوې او د کفارو په زړو کي خدایﷻ رعب پیدا کړی.

## وَجُنُودًا لَّمْ تَرَوْهَا

او لښکرونه چې تاسي نه لیدل چې ملکي وې چې تعداد یې (۱۰۰۰) وُ چې هغو ملکو خو جنګ نه کاوه صرف د الله اکبر نارې یې وهلې چې د کفارو خیال دا سو چې مسلمانان راګډ سوه لا یې رعب ډېر سو او د هر قوم سردار او رئیس خپل قوم ته نارې وهلې یا بني هلموا الي (ای زامنو زما ماته راسئ) چې هغه به راجمع سوه د قوم رئیس به ورته وویل: النجاء النجاء الاسراع الاسراع (ځانونه ساتئ ځانونه ساتئ چابک کوئ چابک کوئ) فانهزموا من غیر قتال وارتحلوا لیلاً، او درانه شیان یې تو له پرېښوول، او طلحة بن خویلد الاسدي علیه اللعنة وویل اما محمد فقد بدئکم بالسحر فالنجاء النجاء.

او الشیخ عماد الدین وایي په خپل تفسیر کي چې که علیه الصلوة والسلام رحمة للعالمین نه وای ما ترکت الریح احد من الکفار الا جعله کالرمیم کما جعلت عاد الریح العقیم، وفي روایة من حدیث حذیفةؓ چې زه چې د کفارو د عسکرو

راجع سوم او د دوی وار خطایي او تېښته مي وليدل الی رسول الله ﷺ په لار کي شل نفره پر آسانو سپاره وه سپيني لنګوټې يې وې ماته يې وويل: قل لصاحبک ان الله سبحانه دفع شر اعدائک حتی چي ابو سفيان چي عمومي سپه سالار وو خلګو ته وويل ارتحلوا فاني مرتحل اوښ ته ورولاړ سو چي د هغه يوه پښه تړلې وه پر سپور سو په غمچنه يې وواهه هغه پر درو پښو ولاړ سو حتی په ولاړي بند زنګون ور خلاص کړی يعني دونه وارخطاؤ.

وَكَانَ اللَّهُ بِمَا تَعْمَلُونَ بَصِيرًا ۝

او وو خدای په هغه عمل چي تاسي کاوه (ايها المؤمنون من حفر الخندق والتهئ للقتال ليدونکی دی)

إِذْ جَاءُوكُمْ مِنْ فَوْقِكُمْ وَمِنْ أَسْفَلَ مِنْكُمْ وَإِذْ زَاغَتِ الْأَبْصَارُ

(اذ جاؤکم) بدل دی د من اذ جائتکم: من فوقکم يعني د اعلی څخه د شېلې من قبل المشرق وهم بنو اسد وغطفان چي د بنو اسد مشر مالک بن عوف ؤ او د غطفان د قبيلې مشر عيينة بن حصن الفزاري ؤ (من اسفل منکم) او د کښتې د خوا څخه ستاسي يعني من بطن الوادي من المغرب وهم کنانة وقريش چي قوماندان يې ابو سفيان بن حرب ؤ في قريش ومن تبعهم وابو اعور عمرو بن سفيان السلمي من قبل الخندق.

**بوه سه:** چي (اذ زاغت الابصار) عطف دی پر ما قبل داخل يې حکم کي تذکير يعني دا هم دروېش وايي: چي ياد کړئ چي د ډېره خوف او دهشته څخه مو سترګي د خپل حال څخه واوښتې چي مستوي کاته دي په پښتو کي وايې چي د پلاني د ډېري بېري څخه سترګي رډي وډرېدلې.

وَبَلَغَتِ الْقُلُوبُ الْحَنَاجِرَ

**بوه سه:** چي حناجر جمع د حنجرة ده چي منتهی د سږي غاړي دي چي طعام او شراب پکښې ځي.

**بوه سه:** چي روح المعاني وايي چي دا کلام محمول دی پر مبالغه له ډېره خوفه څخه ای خافت القلوب خوفا شديدا وفزعت فزعا عظيما لا انها تحرکت عن مواضعها وتوجهت الی الحناجر لتخرج، اخرج ابن ابی شيبة عن عکرمة رح انه قال

في الآية ان القلوب لو تحركت وزالت عن واضعها خرجت نفسه لكن انما هو الفزع فالكلام محمول على المبالغة.

**درویش وایي**: چي ورته خبره ښېښتانه په وخت کي د شدت غضب هم کوي دوی وايي زړه دي خولې ته راوستی زما په نېز حمل پر مبالغه په شدت خوف کي اولی او انسب دی من حمله على الحقيقة. او روح البيان پر حقيقت حمل کړی دی. وایي چي "رئة" چي په فارسي يې شش بولي او په پښتو يې سږی بولي وپرسېږي له ډېره غمه او یا له ډېري بېري. نو دده په پړسېدلو سره زړه راپورته سي وه حنجره ته وهو مشاهد في مرض الخفقان. انتهى او دا احتمال روح المعاني په قيل سره راوړی دی او حقيقت ته يې قتادة‌رح ته تللی دی، او مظهري‌رح هم پر حقيقت حمل کړی دی. والله اعلم بمراده في كتابه.

وَتَظُنُّونَ بِاللَّهِ الظُّنُونَا ⑩

او تاسي گمان کوئ پر خدای ﷻ رقم رقم گمانونه. چي په دې غزاء کي به د محمد (ﷺ) او د اصحابو بېخ کندن وسي يعني ټول به قتل سي، او د مؤمنانو یقین ؤ د نصر او ظفر ؤ پر احزابو، ولي چي نبي ﷺ ته وعده د اعلاء د دین دده پر ټولو ادیانو ورکړل سوې وه، او ضعيف القلب مؤمنان د تزلزل په دریاب کي غرق وه، گاهي چنين گاهي چنان.

**يوه سه**: چي ابوبکر‌رض او اهل مدينه په اثبات د الف وایي وصلاً ووقفاً. ولي د الف په مصاحفو کي مثبت دی، او نور قراء يې په الف وایي په وقف کي، لموافقة رؤس الآيات واتباع الخط او بغير الف يې وایي په وصل کي.

هُنَالِكَ ابْتُلِيَ الْمُؤْمِنُونَ وَزُلْزِلُوا زِلْزَالًا شَدِيدًا ⑪

په دغه غزاء کي د احزابو امتحان وکړل سو د مؤمنانو چي مخلص له منافق څخه جلا سي او ثابت على الدين د متزلزل څخه جلا سي.

او دوی وښورول سوه په سخت ښورېدلو سره. هم د مذکوره امتحان لپاره لکه يو درخته چي سرې سخته وښوروي چي ربنيي محکمه دي او که سستي.

## وَإِذْ يَقُولُ الْمُنَافِقُونَ وَالَّذِينَ فِي قُلُوبِهِم مَّرَضٌ

په ياد کړه چي ويل به منافقانو (لکه معقب بن قشير او عبد الله بن ابی و اصحابه چي تعداد يې درې سوه ته بالغ ؤ) او هغه کسانو چي په زړو کي يې مرض ؤ يعني ضعف اعتقاد ؤ که څه هم منافق خو به نه ؤ لکن ايمان راسخ يې نه درلودی.

## مَّا وَعَدَنَا اللَّهُ وَرَسُولُهُ إِلَّا غُرُورًا ﴿۱۲﴾

زموږ سره نه کول خدای او رسول د خدای وعده چي تاسي ته به قصور د شام او فارس فتح سي. او سره د دې چي يو زموږ له خپله کوره نسي وتلای د بيرې، وهذا والله الغرور يعني غولېده وه زموږ. دا قول د منافقانو ؤ.

## وَإِذْ قَالَت طَّائِفَةٌ مِّنْهُمْ يَا أَهْلَ يَثْرِبَ

او په ياد کړه هغه وخت چي وويل يوې ډلي د منافقانو (چي اوس بن قبطي واصحابه وه) ای د يثرب او سېدونکو (يثرب د مديني منورې پخوانی نوم ؤ د جاهليت په وخت کي، او ابو عبيده وايي چي يثرب د نهو (۹) ځځکو نوم دی چي مدينة رسول الله ﷺ يې په يوه ناحيه کي د هغې ځکي واقع ده، بغوي رح وايي چي رسول الله ﷺ نهي کړي دي چي مديني ته څوک يثرب ووايي لشوم هذا اللفظ لانه مشتق من ثربه يثربه، ملامت يې کړی او پېغور يې ورکړی په ګناه د هغه، او الثرب قليل العطاء يعني بخيل ته هم وايي كذا في القاموس.

## لَا مُقَامَ لَكُمْ فَارْجِعُوا

نسته ځای ستاسي لپاره (پر صيغه د ظرف ځای د او سېدو) او نسته تاسي لره په جنګ کي د احزابو، نو خپلو کورو ته ولاړ سئ د جنګ له ځای څخه او رفاقت د محمد (ﷺ) پرېږدئ، او يا معنی داده لامقام لكم على دين محمد ﷺ فارجعوا الى الشرك، يعني ځانونه و اهل شرک ته تسليم کړئ. فتسلموا. نو به تاسي سالم پاته سئ، او ابو سفيان او د هغه ډله په تاسي کار نه لري.

## وَيَسْتَأْذِنُ فَرِيقٌ مِّنْهُمُ النَّبِيَّ يَقُولُونَ إِنَّ بُيُوتَنَا عَوْرَةٌ

او اجازت غوا ړي يوه ډله د دوی د نبي ﷺ څخه (چي بنو حارثه او بنو سلمه

وه) او دوی وايي (يقولون حال ده له فاعل څخه د يستأذنون) زموږ کورونه محکم نه دي هم دښمن ورتلای سي او هم سارق، خدای ﷻ يې تکذيب وکړی.

**وَمَا هِيَ بِعَوْرَةٍ ۖ إِن يُرِيدُونَ إِلَّا فِرَارًا ﴿١٣﴾**

ددوی کورونه نه دي لکه دوی چي وايي بلکي محکمي کلاوي لري، دوی اراده نه لري په دې قول کاذب کي مگر تېښته له جنگ څخه.

**وَلَوْ دُخِلَتْ عَلَيْهِم مِّنْ أَقْطَارِهَا ثُمَّ سُئِلُوا الْفِتْنَةَ**

او که داخل کړل سي يعني مديني ته دغه احزاب، پر دوی يا په مدينه او يا ددوی په کورو کي، له اطرافو څخه د مدينه يا ددوی د کورو، بيا ددوی څخه غوښتنه وسي يعني د احزابو له خوا څخه د فتنة يعني الشرک يا د مسلمانانو سره د جنگ.

**لَآتَوْهَا وَمَا تَلَبَّثُوا بِهَا إِلَّا يَسِيرًا ﴿١٤﴾**

دوی به دا فتنه قبوله کړي له احزابو څخه دوی به درنگ ونه کړي په ورکړه کي د فتني و قبولها، مگر لږ زمانه چي زمانه د سوال او ځواب ده يعني خدای ﷻ به يې هلاک کړي وهذا رأی اکثر المفسرين، وقيل معناه ما اقاموا بالمدينة بعد اعطاء الکفر الا زمانًا قليلاً، ولې چي خدای ﷻ خو عليه الصلوة والسلام او مؤمنانو غلبه پر احزابو ورکوي کمامر، نو دوی بيرته مديني ته راسي دغه کسان چي شرک قبول کړي تو له به قتل کړي.

**تنبيه:** راويان وايي چي دمخه تر غزوة الاحزاب چي بني النضير من اليهود بغاوت اليهود وکړی او عليه الصلوة والسلام حمله پر وکړه او ددوی په زړو کي رعب واچاوه، نو عليه الصلوة والسلام ته يې دا پيش نهاد وکړی چي زموږ تر وينه تېر سه يعني وژنه مو مه، موږ به جلا وطنه سو او کورونه او باغونه او ټولي شتمنی به تاسي ته پرېږدو. نو عليه الصلوة والسلام ددوی دا خبره ومنله. او ددوی مشر حيی بن اخطب ؤ، نو څرنگه چي د احزاب د جنگ تياري کېدل، نو د بني نضير ستر مشران لکه سلام بن ابی الحقيق وحيی بن اخطب وکنانه بن الربيع وهوذه بن قبيس او ابو عامر الوالبی کمامر، ټول له مکي ته دتللي وه او د قريشو سره يې معاهده د جنگ د مسلمانانو

کړي وه، وقد مر لکن بني قريضه چي هم يهود وه د عليه الصلوة والسلام سره چي يې
معاهده کړې وه يعني چي زمونږ د دما او اموال به محفوظ وي، نه مونږ ستا د دښمنانو
سره په وخت کي جنګ ستاسي او د دوی تر منځ شامليږو چي ستا سره به جنګ وکړو.
او نه ستا په فوج کي داخليږو چي ستا د دښمن سره به جنګ کوو، پر هغه معاهده ولاړ
وه يعني د احزابو په لښکر کي نه سوه داخل. لکن حيي ابن اخطب چي د بني النضير د
قوم مشري يې پر غاړه درلوده، دا خنزير حيي بن اخطب ورغلی و کعب بن الاسد ته
چي د قريضه وو مشرؤ او د عليه الصلوة والسلام سره يې معاهده د امن لاس ليک
کړې وه. کعب بن الاسد چي واورېده چي بن اخطب ستا سره د ملاقات لپاره راغلی، د
قلا دروازه يې پر مخ بنده کړه حيي اجازه د دخول وغوښتله کعب بن الاسد منع وکړه نو
حيي له دباندي څخه ورناري کړې يا کعب افتح لي. کعب ورته وويل يا حيي امرًا شوم.
يعني تا په مخه راخستی دی يو کار چي شوم دی يعني چي په مخالفت کي د محمد
(ﷺ) مو دروې او په احزابو کي مو داخلوې، کعب ورته وويل ما معاهده کړې ده د
محمد سره زه هغه عهد هرګز نه ماتوم، او ما تر او سه په محمد کي نه دي ليدي الا
الصدق والوفا. چي رشتيا وايي او د عهد وفادار دی، حيي وويل ويحک افتح
اکلمک، کعب ورته وويل چي زه ستا سره خبري نه کوم او نه هم دروازه درخلاصوم.
حيي خبيث ورته وويل چي ته چي دروازه نه خلاصوې له دې څخه بېرېږې چي زه ستا
څخه مهماني غواړم، نو کعب ته پر دې پېغور د ورکړ، درد ورغلی دروازه يې
ورخلاصه کړه، نو حيي ورته وويل يا کعب زه تا ته راغلی يم لپاره د عزت ساتلو تېولنه
زمانه، جئتک بقريش علی قادتها وسادتها يعني قوماندان او سرداران ورسره دي
چي په مجتمع الاسيال د اومه نازل دي، او قوم غطفان علی سادتها وقادتها چي
وطرف ته د احد نازل دي وهکذا نور احزاب مي راوستلي دي، نو تاسي زما سره
معاهده اوترون وکړئ چي تر هغه وخته به جنګېږو چي د محمد ومن معه استيصال مو
نه وي کړی. کعب بن اسد ورته وويل چي تا ماته راتګ کړی په ذلت سره تېولنه زمانه
فدعني ومحمدًا وما انا عليه فاني لم ار من محمد الاصدقا ووفاء، نو حيي بن اخطب
خپلي شيطاني خبري ورته وکړې او دا وعده حيي ورسره وکړه چي که چېري قريش
ماته وخوري او په محمد هيڅ ونه کړي زه به راځم ستا سره به ستا په قلا کي يم حتی زه

به‌ستا سره ځان وو‌ژنم، يعني كه محمد حمله‌را باندي وكړي، اخير الامر كعب بن الاسد اعلان د نقض العهد وكړی او بېزاره‌سو د هغه عهد څخه چي په‌منځ كي دده او د محمد ﷺ ؤ، نو عليه الصلوة والسلام په‌موضوع د نقض العهد د قريضه ؤ خبر سو. نو عليه الصلوة والسلام د معلومات لپاره دغه كسان ورواستول، سعد بن معاذ چي د بني الاشهل د قبيلې ؤ او په‌موجوده‌وخت كي سيد د اوس د قبيلې ؤ، او سعد بن عباده چي د بني ساعده د قبيلې ؤ لكن په‌موجوده‌وخت كي سيد د خزرج د قبيلې ؤ او ددې دوو كسانو سره عبد الله بن رواحة چي د بني الحارث بن الخزرج د قبيلې، او خوات بن جبير چي د بني عمرو بن عوف د قبيلې ؤ هم واستول او دوی ته‌يې وويل چي تاسې ورسئ وګورئ چي نقض د قريضه حق دی كه چېري حق ؤ ماته‌به كنايي الفاظو خبر راكړئ چي بل څوك نسي په‌پوه، او كه قريضه پر خپل عهد باقي وه بيننا وبينهم. نو په رسوا راته‌وواياست چي ټول خلک يې واوري. نو دا لېږلي كسان چي ورغله، نو بنو قريضه پر اخبث د مابلغهم يې وليدل او قريضه‌ودوی ته‌وويل لاعهد بيننا وبين محمد. نو دوی چي بيرته‌عليه الصلوة والسلام په‌كنايه‌يې عليه الصلوة والسلام ته وويل عضل چي معنی يې منع او شدة ده، خير خو بېره نوره ډېره سوه، راوي وايي چي كعب چي د نقض العهد اعلان وكړی. بعض د قوم د كعب چي زبيري بن بلطا ؤ او نباء بن قيس ؤ او عقبه بن قيس ؤ او عقبه بن زيد ؤ وغيرهم. نو كعب ته‌يې ډېره‌په‌كلكه ملامتيا وركړه او كعب هم پښېمانه‌سو پر دغه‌نقض عهد لكن فائده‌يې ونه كړه چي واګي د اختيار د كعب د لاسه‌وتلي وې.

**درويش وايي:** چي وكان ذالک ما اراد الله من اهلاک قريضة كما سياتي مفصلا، راويان د قصې وايي چي ام سلمه رضي الله عنها په‌غزوة د خندق د عليه الصلوة والسلام سره ملګرې وه، دا وايي چي عليه الصلوة والسلام په‌خپل ذات پاک سره د شپې له خوا د خندق پهيره كوله چي څوک د كفارو يرغل ونه كړي، د شپې يوه شپه عليه الصلوة والسلام په‌خپل خېمه كي لمونځ كاوه بيا د خېمې څخه‌ووتی د پهرې لپاره د اسانو اوازيې تر غوږ سو، د ځان سره يې وويل چي دا آس سپاره د مشركانو دي چي تر خندق راتېر سي او نابېره حمله‌وكړي، نو عباده‌ته‌يې ناره‌وكړه، عباده ورته‌وويل لبيک يا رسول الله، عليه الصلوة والسلام ورته‌وويل چي نور څوک در سره سته، عباده ورته

وويل نعم رجال من قومي چي پر تا پهيره كوي عليه الصلوة والسلام ورته وويل اذهب برجال قومك فان رجالا من المشركين حول الخندق يريدون ان يبتوا (چي د شپې حمله وكړي) نو عباد بن بشر رضي الله عنه خپل قومي ملګري ورسره راهي كړه، كه څه ګوري ابوسفيان او نور ملګري پر تنګ ځاى د خندق اراده د تېرېدو ولري، نور مسلمانان چي موږ وه هغه يې په ډبرو او غشو ولي. عباد رضي الله عنه وايي چي زه هم سره د ملګرو وروړسېدم فرميتهم مع المؤمنين حتى انهزموا اى المشركين فرجعت الى رسول الله ﷺ وهو يصلي فلما فرغ من الصلوة اخبرته الخبر ام سلمة رضي الله عنها وايي چي عليه الصلوة والسلام سملاسه بيده ؤ حتى چي ما يې خركى واورېدى او تر هغو بيده ؤ چي بلال د سهار اذان كاوه، ام سلمه رضي الله عنها به ويل اللهم ارحم عباد بن بشير رضي الله عنه. اخيري زيرى خداى ﷻ چي په خپل قدرت احزاب ته شكست وركړى او وه تبتبدل، عليه الصلوة والسلام داسي وويل: الآن نغزوهم ولا يغزوننا نحن نسير اليهم يعنى موږ ددوى يعني د كافرانو په غزا پسي روان يو، دوى بيا وروسته تر دې زموږ په جنګ پسي نسي روانېدلاى.

**وَلَقَدْ كَانُوا۟ عَاهَدُوا۟ ٱللَّهَ مِن قَبْلُ لَا يُوَلُّونَ ٱلْأَدْبَٰرَ ۚ**

(من قبل، اى قبل غزوة الخندق) كلمه د لام جواب د قسم محذوف دى. او په تحقيق وعده كړې ده خداى سره.

**پوه سه:** چي عهد متضمن معنى لره د قسم دى، ځكه لايؤتون الادبار پر صيغه غائب راوړي. نظر و معنى ته د قسم كما في قول القائل اقسم فلان لايفعل كذا، ولي كه مراد حكايت د قول ددوى وايي، نو تركيب بايد داسي واى، لا نولي الادبار فافهم.

**درويش وايي:** چي په مرجع كي د ضمير د عاهدوا اختلاف دى. بعض مفسرين وايي چي مرجع د ضمير هغه كسان دي چي د عليه الصلوة والسلام څخه يې اجازه غوښتل چي موږ به خپلو قوموته ولاړ سو چي په مدينه كي دي چي هغه بنو حارثه او بنو سلمه وه. او بعض مفسرين وايي چي په ورځ د احد يې شكست كړى ؤ او بيا يې توبه وكښل چي په بله غزاء كي موږ داسي نه كوو. او بعض مفسرين وايي چي دا هغه كسان دي چي په غزاء كي د بدر غائب وه، بيا چي دوى وليدى ما اعطاه الله من الكرامة لاهل بدر، نو دوى وويل كه چېري بل قتال او غزا پېښه سي فلقاتلن قتالاً شديداً.

**پوه سه:** چي تولى الادبار كنايه د انهزام او شكست څخه ده.

وَكَانَ عَهْدُ اللّٰهِ مَسْـُٔوْلًا ۝١٥

او ده وعده د خدای ﷻ سره چي سوال يې كيږي په ورځ د قيامت ويجازی عليه، حافظ شيرازي رح وايي:

وفا وعهد نکو باشد اربيا موزی ...... وگرنه هرکه توبيني ستمگری داند

وقال في حق وفاء العشاق:

ازدم صبح ازل تا اخير شام ابد ...... ومهر بريک عهد ويک ميثاق بود

قُلْ لَّنْ يَّنْفَعَكُمُ الْفِرَارُ اِنْ فَرَرْتُمْ مِّنَ الْمَوْتِ اَوِ الْقَتْلِ

ته ودوی ته ووايه ای محمد (ﷺ) هرګز فائده نه کوي تاسي ته تېښته که تاسي وتښتېدلاست له قتل څخه يا له خدايي مرګ څخه، ولي د چا چي اجل معلوم او مقدر عند الله وي لابد له من ان يموت سواء کان بالقتل او حتف انفه و متى لم يحضرا الاجل لايموت قطعًا که څه اسباب د قتل يا د موت يې تول له مهيا.

وَاِذًا لَّا تُمَتَّعُوْنَ اِلَّا قَلِيْلًا ۝١٦

که تاسي هم وتښتېدلاست تاسي تمتع د دنيا د ژوند نسي اخستلای مګر لږ وخت، زمانًا قليلًا که ظرف وي او تمتيعًا قليلًا که مفعول مطلق وي، او بعض مفسرين وايي چي که تاسي فرار نفع وه هم کړي فرضًا فمتعتم بالتاخير لايكون ذالک التمتيع الا قليلًا لكون الدنيا بمجموعها فانية لا محالة.... بيت:

الموت كأس وكل الناس شاربه .... والموت باب وكل الناس داخله

قُلْ مَنْ ذَا الَّذِيْ يَعْصِمُكُمْ مِّنَ اللّٰهِ

ته ورته ووايه څوک دی هغه سړی چي تاسي دي وساتي له خدای ج څخه يعني من عذابه.

اِنْ اَرَادَ بِكُمْ سُوْٓءًا اَوْ اَرَادَ بِكُمْ رَحْمَةً ؕ

که خدای اراده وکړي ستاسي د عذاب اذ لامرد لقضائه، يا اراده وکړي د احسان او نعمت او صحت د عافيت يعني څوک چي تاسي ته سوء ورسوي چي د خدای ﷻ اراده د رحمت وي، نو په دوهم شق کي يې اختصار في الكلام وکړی، فتدبر.

وَلَا يَجِدُونَ لَهُم مِّن دُونِ اللَّهِ وَلِيًّا وَلَا نَصِيرًا ﴿۱۷﴾

او دوی نه سي پیدا کولای د ځان لپاره ولي يعني قریب چي دوی ته نفع ورسوي، او نه کومکي چي له دوی څخه ضرر دفع کړي.

اشاره: له موت څخه چاره نسته، ولي عمر که هر څو درازوي، چون مرگ روی نمود ازآن درازی چه سود، نوح علیه السلام هزار سال درجهان بسر برد امروز پنج هزار سال سیری شده که زیر خاک است، نو عاقل سړی باید دوه واره ونه ژاړي، یک شاعر گفته:

یاد داری زروز زادن تو ..... خلق خندان بودند وتو گریان
همچنان زی که روز مردن تو خلق گریان باشند وتو خندان.

چي پیدا سوې تا ژړل خلکو خندا کړه
هسي مړ سې چي ته خاندې خلک ژاړي

د بیت ترجمه: ستا په یاد دي چي هغه ورځ چي ته له موره پیدا سوې، خلکو یا قریبانو مور او پلار دي خندل له خوشحالی څخه چي خدای ج زوی راکړی، او تا ژړل چي د مور د رحم څخه دي علاقه قطع سوه، نو باید داسي ژوند وکړې چي په ورځ د مرگ خلک ژاړي چي زوی مي مړ سو یا نور قریبان، او ته خاندې یعني خوشحاله یې، چي د دار الهموم څخه وتلم ځم دار السرور ته..... مثنوي:

بس رجال از نقل عالم شادمان .... از بقائش شادمان این کودکان (یعني جاهلان)

قَدْ يَعْلَمُ اللَّهُ الْمُعَوِّقِينَ مِنكُمْ

په تحقیق خدای ج خبر دی او علم لري (کلمه د قد لپاره د تحقیق او تاکید د علم ده) په هغو کسانو چي خلک منع کوي له ملازمت څخه د نبي علیه السلام.

**بوه سه:** چي تعویق پر وزن د تصریف دی چي معنی یې منع ده، وهم المنافقون.

وَالْقَائِلِينَ لِإِخْوَانِهِمْ هَلُمَّ إِلَيْنَا ۖ

او دوی وایي خپلو ورڼو ته، یعني په نسب کي ای اهل المدینة، راسئ ځان ته نژدې کړئ موږ ته، یعني محمد صلی الله علیه وسلم پریږدئ. او په جنګو کي د ده سره مه ورځئ. ولي موږ ستاسي پر هلاک بیریږو، قتاده رح وایي هؤلاء وناس من المنافقین چي انصار د رسول الله صلی الله علیه وسلم او دوی خپل اخوان ته ویل چي محمد واصحابه اکلة رأس،

دوی به وخوري ابو سفيان و اصحابه، فدعوا لرجل يعني محمداً فانه هالک.

وَلَا يَأْتُونَ الْبَأْسَ إِلَّا قَلِيلًا ﴿١٨﴾

او نه ورځي منافقين و جنګ ته ای اتیاناً قليلاً، نو مفعول مطلق دی، او يا زماناً قليلاً نو ظرف دی، ولې چې اکثرو عذرونه ویل او نور مسلمانان یې هم له جنګه منع کول، او یا معنی د آیت دا ده چې دوی به د مسلمانانو سره جنګ ته وتل لکن جنګ یې نه کاوه مګر لږ، ریاءً وسمعةً تاچې د مسلمانانو بد ګماني له ځانه دفع کړي او که دغه قليل جنګ خاصةً لله وای هم به ډېر وای.

أَشِحَّةً عَلَيْكُمْ ۚ فَإِذَا جَاءَ الْخَوْفُ رَأَيْتَهُمْ يَنظُرُونَ إِلَيْكَ

(اشحة) جمیع د شحیح ده، حال دی له ضمير څخه د يأتون چې په معنی د بخيل دی) "عليكم" پر تاسي مسلمانانو (یعني پر تاسي مسلمانانو یې بخل کاوه بالمعاونة يا په نفقه في سبيل الله يا په ظفر او غنیمت سره) هغه چې دوی یعني منافقينو ته راغلی یو خبر د بېرې یعني د خروج في سبيل الله للغزو دوی به کتل وتاته.

تَدُورُ أَعْيُنُهُمْ كَالَّذِي يُغْشَىٰ عَلَيْهِ مِنَ الْمَوْتِ ۖ

سترګي به یې په خپلو ځایو کې سره ګرځېدې د بېرې له سببه، لکه پر هغه سړي چې بېهوشي راغله د مرګ له سببه، نو سترګو به یې حرکت کاوه په خپلو ځایو کې.

فَإِذَا ذَهَبَ الْخَوْفُ سَلَقُوكُم بِأَلْسِنَةٍ حِدَادٍ أَشِحَّةً عَلَى الْخَيْرِ ۚ

نو چې د بېرې وخت به تېر سو او غنیمت به پیدا سو، دوی به ستاسي سره خبري کولې په ژبو چې تېزي به وې یعني په وخت کې د قسمت د غنیمت به ډېري تېرې خبري کولې، یقولون اعطونا قد شهدنا معکم القتال، راکړئ موږ ته یعني غنیمت پوره برخه، ولې چې موږ ستاسي سره په جنګ کې حاضر وو، نو تاسي احق بالغنيمة نه یاست تر موږ.

**فائده:** په قاموس کې وایي سلقه بالكلام آذاه، او په تاج المصادر کې وایي السلق بزبان آزردن ومنه سلقلوكم انتهى، یعنی تاسي ته درشت او سختي خبري کوي چې تاسي په ازاروي، او ابن عباس رض په معنی کې د سلقوكم وایي یعني نقصوكم وتناولوكم بالنقص والغيبة، او اول قول تفسير د قتاده رح وو.

**بوه سه:** چي راغب رح وايي چي شح په معنى د حرص هم راځي آه، نو دلته يې معنى داده چي دوى حريص دى پر خير يعنى مال، نو دا اشحة تكرار د اول نه دى، ولې هريو په جلا قيد سره مقيد دى د مخه اشحة عليكم ؤ چي معنى يې بخل وه، او دلته اشحة على الخير چي معنى يې حرص على المال ده، فافهم هداک الله تعالى.

أُولَٰئِكَ لَمْ يُؤْمِنُوا فَأَحْبَطَ اللَّهُ أَعْمَالَهُمْ ۚ وَكَانَ ذَٰلِكَ عَلَى اللَّهِ يَسِيرًا ﴿١٩﴾

دغه كسان چي صفات او احوال يې ذكر سول ايمان يې نه دى راوړى (يعني بقلوبهم بلكې ايمان يې صرف په ژبه سره دى لحفظ دمائهم واموالهم من المؤمنين) نو خداى ﷻ باطل كړه عملونه ددوى كه يې لمونځونه د عليه الصلوة والسلام سره كړي وي او كه شمول په بعض غزواتو كي (يعني ددوى د اعمالو د خير ثواب نسته عند الله لعدم الاخلاص وقد جاء في الحديث المشهور الذي رواه البخاري وغيره، انما الاعمال بالنيات، الى اخير الحديث) او دغه احباط د عمل ددوى و خداى ﷻ ته اسانه ده لانه لاراد لما اراد.

يَحْسَبُونَ الْأَحْزَابَ لَمْ يَذْهَبُوا ۖ

ددوى دا خيال دى له جهته د نهايتي بذدلي ددوى چي احزاب نه دي تللي، نو خكه دوى داخل ته د مديني ولاړه.

وَإِن يَأْتِ الْأَحْزَابُ يَوَدُّوا لَوْ أَنَّهُم بَادُونَ فِي الْأَعْرَابِ

او كه چېري راسي دغه احزاب مرة ثانية "يودوا" ددوى خوښ ده او تمنى يې ده، چي دوى په باديه او صحراء كي اوسېدلاى.

**بوه سه:** چي في الاعراب خبر بعد الخبر دى د ان اى كائنون په صحراء نشينانو كي.

يَسْأَلُونَ عَنْ أَنبَائِكُمْ ۖ وَلَوْ كَانُوا فِيكُم مَّا قَاتَلُوا إِلَّا قَلِيلًا ﴿٢٠﴾

چي دوى پوښتنه كولاى له هر سړي څخه چي له مديني څخه به راتلاى، ستاسي د خبرو، يعني احزاب او مسلمانانو څه سره وكړه (جمله د يسئلون خبر بعد الخبر ده) او كه واى (هؤلاء المنافقون) په تاسي كي، يعني په دوهمه كرة د احزابو نه واى ستاسي څخه تښتېدلي او جنګ جوړ سوى واى، نو جنګونه به نه واى كړي دوى مګر

لږ جنګ، يعنی يا د رياء لپاره يا د خلکو د پيغور لپاره كذا قال مقاتل رح.

لَقَدْ كَانَ لَكُمْ فِي رَسُولِ اللَّهِ أُسْوَةٌ حَسَنَةٌ

په تحقيق تاسي لره ايها المؤمنون (لام موطئه د قسم محذوفی دی).

**پوه سه:** چي اسوة معنی قدوة ای ما يقتدی به، والمراد ههنا ان لكم في شان رسول الله ﷺ خصلة حسنة من حقها ان يوسى بها كالثبات في الحرب ومقاسات الشدائد، ابن عباس رض وايي چي حضرت عمر فاروق رض حجر اسود په مينه مينه مچ كړی، او داسي يې وويل چي زه پوهېږم چي ته يوه ډبره يې، او كه ما نه وای ليدلی زما حبيب ﷺ چي ته يې مسح كړې او مچ يې كړې، ما به نه وای مسح كړې او نه به مي هم مچ كړې وای، ثم قرء عمر رض لقد كان لكم في رسول الله اسوة حسنة.

وحاصل الآية: چي تاسي بايد اقتداء وكړئ په رسول الله ﷺ پسي، يعني د خدای ج د دين مرسته وكړئ لكه ده چي كول، او صبر وكړئ على ما اصيبكم لكه ده چي صبر كړی وُ چي د احد په غزاء كي د مخ د غاښو مباركو څخه يو مات سو او مخ مبارك يې ټپي سو او اكا يې حمزة بن عبد المطلب په ناوړه قتل شهيد كړل سو او ډول ډول ازار د كفارو د لاسه په مكه كي ده مبارك ته رسېدی، او ده مبارك ستاسي څخه په غزواتو كي ځان نه دی سپمولی، نو تاسي بايد داغسي وكړئ، واستنوا بسنته.

لِّمَن كَانَ يَرْجُوا اللَّهَ وَالْيَوْمَ الْآخِرَ وَذَكَرَ اللَّهَ كَثِيرًا ﴿۲۱﴾

هغه چا لره چي اميد لري و ثواب ته د خدای ج ولقائه، او د نعمتو د ورځي د آخرت او د جنت (قال مقاتل رح په تفسير كي د دې آيت ای يخشى الله ويخشى يوم البعث الذي فيه جزاء الاعمال يعني رجاء په دې آيت كي په معنى د ېرې ده) او ذكر كوي د خدای ج ډېر، يعني في السراء والضراء.

**پوه سه:** چي لمن كان آه صله د حسنة ده او يا صفت دی د حسنة.

**فائده:** د رجاء سره يې كثرة الذكر هم راوړی تاچي مفضی و دوام ته د طاعت سي، ولي اقتداء كونكی په رسول سره بايد دائم الطاعة وي، والله الموفق.

سعدي شيرازي قدس سره وايي:

درين بحر جز مرد ساعی نرفت ..... گم آن شد كه دنبال راعی نرفت

کسانيکه کزين راه پر گشته اند ..... برفتند بسيار و سر گشته اند
خلاف پيمبر کسی راه گزيد ..... که هرگز بمنزل نخواهد رسيد
مپندار سعدی که راه صفا ..... توان رفت جز در پی مصطفیٰ ﴿

وَلَمَّا رَاَ الْمُؤْمِنُوْنَ الْاَحْزَابَ ۙ قَالُوْا هٰذَا مَا وَعَدَنَا اللّٰهُ وَرَسُوْلُهٗ

او هغه چي وليدل مؤمنانو احزاب د کافرانو دوی وويل چي دا هغه احزاب دي چي وعده يې کړې زمونږ سره خدای ﷻ او رسول د خدای، اشارة الى قوله تعالى في سورة البقرة: اَمْ حَسِبْتُمْ اَنْ تَدْخُلُوا الْجَنَّةَ وَلَمَّا يَاْتِكُمْ مَّثَلُ الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِكُمْ الى قوله تعالى: اَلَآ اِنَّ نَصْرَ اللّٰهِ قَرِيْبٌ. ولي چي له دې آيت څخه داسې فهمېږي چي مؤمنانو ته به مثل د بلا د احزابو متوجه کېږي. مظهري وايي چي شايد رسول الله ﷺ دي دوی په واقعه د احزابو خبر کړي وه، او روح البيان صريح حديث را نقل کړی دی وهو هذا: سيشتد الامر باجتماع الاحزاب عليكم والعاقبة لكم عليهم.

وَصَدَقَ اللّٰهُ وَرَسُوْلُهٗ ۫ وَمَا زَادَهُمْ اِلَّآ اِيْمَانًا وَّتَسْلِيْمًا ﴿۲۲﴾

او رښتيا وايي خدای او رسول د خدای په ما اخبروا به او نه کوي زيات والی د احزابو دوی ته، مګر ايمان ای تصديقا بما جاء به رسول الله ﷺ. وتسليما لامره وقدره.

مِنَ الْمُؤْمِنِيْنَ رِجَالٌ صَدَقُوْا مَا عَاهَدُوا اللّٰهَ عَلَيْهِ ۚ

ځيني له مؤمنانو څخه (رجال مبتداء ده متاخر په سبب د تنکير او من المؤمنين يې خبر دی) هغه رجال دي چي رښتيا کړي يې ده خبره چي دوی وعده کړې وه د خدای سره پر هغه خبره، يعني ثبات پر قتال چي دوی يې وعده کړې وه د رسول الله ﷺ سره يعني چي ميدان د جنګ د کفارو سره به نه پرېږدم.

**محاوره:** صدقني فلان چي تا ته به يې رښتيا وويل، ولي معاهده چي وفاء په عهد سره وکړي فقد صدق في العهد.

فَمِنْهُمْ مَّنْ قَضٰى نَحْبَهٗ وَمِنْهُمْ مَّنْ يَّنْتَظِرُ ۖ وَمَا بَدَّلُوْا تَبْدِيْلًا ﴿۲۳﴾

بعض د دوی هغه کسان وه چي خپل نذر يې پر ځای کړی و في عهده فلم يبق في ذمته شيئ (والنحب في اللغة الموت يعني مات على الوفاء يعني مثل حمزة بن

عبد المطلب واشباهه في غزوة احد حيث قتلوا ولم يفروا) او بعض ددوى منتظر دي چي خان له نذره فارغه کړي (ويرجوا ان يموت على الوفاء) او عهد يې نه بدل کړي (شيئًا مفعول مطلق د بدلوا دی يعني شيئًا من التبديل) بخاري، مسلم، ترمذي، ابن ابی شيبة، طيالسي، ابن سعد او البغوي رح روايت کړی دی چي انس بن النضر چي د انس بن مالک اکا ؤ د بدر په غزاء کي غائب ؤ، نو دا پر ده ډېره درنه پرېوته او داسي يې وويل چي په اول مشهد کي يعني په غزاء کي د رسول الله ﷺ زه غائبوم. که خدای ج زه حاضر کړم په بل قتال کي د مشرکانو خدای ج به وويني چي زه به څه وکړم، نو غزوة احد چي منځ ته راغله او مسلمانانو شکست وکړی. انس بن نضر داسي وويل: اللهم اني اعتذر بما صنع هؤلاء (زه عذر درته کوم له فعل څخه چي دې کسانو وکړی يعني مسلمانانو چي د جنګ ميدان يې خالي کړی) وابرء اليک مما صنع هؤلاء يعني المشركين (يعني چي مسلمانان يې يو په بل پر له پسي په شهادت ورسول له دې فعل څخه زه بېزاره يم) نو انس بن النضر چي پر ډله د مهاجرينو او انصارو ورغلی چي سلاح يې پر مځکه ايښې وه او ورته ناست وه داسي يې ورته وويل، ما يجلسکم؟ پر څه سبب دلته ناست ياست، دوی راته وويل قتل رسول الله ﷺ.

**درويش وايي**: چي يوه غلطه او زه چي څه وخت چي عبد الله بن قميه عليه الصلوة والسلام له نژدې څخه وليدی په ډبره يې وويشتی چي سر مبارک يې ټپي سو او يو د رباعي غابنو څخه يې مات سو او پر مخ مبارک يې سېلاب د وينو راروان سو. عبد الله بن قميه لويه ناره وکړه الا ان محمد قد قتل. او بعض راويان وايي چي شيطان دا ناره وکړه، او مسلمانان چي په حادثه کي نه وه حاضر او تيک وپرک وه په ډګر کي د جنګ هغو دا ناره واورېدل او اسلحه يې پر مځکه ايښې وه او ورته ناست وه، هغه ؤ چي انس بن نضر پر ورغلی او ورته وه يې ويل ما تصنعون بعده چي تاسي نو ژوند څه کوئ وروسته تر دې يعني تر شهادت د عليه الصلوة والسلام درولاړ سئ موتوا على ما مات رسول الله ﷺ، بيا انس بن النضر پر خلګو مخ راواړاوه، نو د ده سره سعد بن معاذ يو ځای سو نژدې و احد ته، سعد وده ته وويل چي زه هم ستا ملګری يم، انس بن النضر د کفارو پر يوه سر حمله وکړه سعد بن معاذ وايي چي زما دومره د طاقته نه وه پوره يعني لکه دا انس رض، انس ږغ پر وکړی ها (دا کلمه اسم فعل ده معنی يې دا ده راسه) لريح الجنة ورب النضر انی لاجد) زما تر پزه کېږي بوی د جنت نژدې د احد و غره ته)

يقاتل جنګ يې شروع کړی د کفارو په دننه صفو کې حتی قتل. نو مسلمانانو چې دی مقتول پیدا کړی د ده پر جسد اتيا (۸۰) څه بالا ټپونه وه یا د تورو یا د نېزو وهل یا په غشي ويشتل، لکن مشرکانو نامردانو مثلت وده ته ورکړی یعني ستر ګي يې ځنی کښلي غوږونه يې ځنی پرې کول مذاکریې هم ځنی پرې کړه، نس يې هم ور څیرلی ؤ زړه يې ځنی کښلی ؤ الی غير ذالک چې دا مړی هيڅ چا نه پېژندی چې څوک دی، حتی خور دده د ګوتو پر سرو وپېژندی، مفسرين وايي چې غالب ګمان دادی چې دغه آيت ومنهم من ينتظروا آه په دغه انس بن النضر رضوان الله تعالی علیه واشباهه کې نازل سوی دی، او ترمذي له جابر بن عبد الله څخه روايت کړی دی چې رسول الله ﷺ و طلحة بن عبيد الله رضي الله عنه ته وکتل نو يې وويل: من احب ان ينظر الی رجل علی وجه الارض وقد قضی نحبه فلينظر الی هذا يعنی طلحة بن عبيد الله رضي الله عنه.

بخاري له قيس بن حازم څخه روايت کړی دی چې ما وليدی لاس د طلحه رضي الله عنه چې شل ؤ چې ده به وارونه د تورو چې پر علیه الصلوة والسلام به کفارو کول طلحه رضي الله عنه د تورو مخ ته خپل لاس سپر کاوه، نو علیه الصلوة والسلام دده په باره کې داسې وويل: اوجب طلحة (يعني طلحه ځان ته جنت واجب کړی) رواه الترمذي وابن حبان والحاکم وغيرهم مرفوعًا.

وسماه عليه الصلوة والسلام يومئذ طلحة الخير ويوم حنين طلحة الجود ويوم غزوة ذات العشيرة طلحة الفياض وقتل شهيدًا يوم الجمل... يو شاعر وايي:

عاقلان از مرګ مهلت خواستند .... عاشقان ګفتند نی نی زود باد

لِّيَجْزِيَ اللَّهُ الصَّٰدِقِينَ بِصِدْقِهِمْ

چې خدای جل جلاله جزاء او ثواب ورکړي و هغو کسانو ته چې صادق و ختل په خپلو وعدو کې يا معنی داده بسبب صدقهم چې وفاء بالعهد يې وکړه يا معنی داده چې جزاء د صدق و کړي.

وَيُعَذِّبَ الْمُنَٰفِقِينَ إِن شَآءَ أَوْ يَتُوبَ عَلَيْهِمْ

او په عذاب کړي منافقان که د خدای جل جلاله اراده وي يعني چې پر کفر او نفاق يې مړه کړي نو به عذاب ورکړي، او يا به يې توبه قبوله کړي که دوی له نفاقه توبه وکښل، وخلصوا دينهم لله.

**فائده:** جزاء د صادقانو هم په دنيا کي ورکوي چي کومک دی پر دښمنانو او اعلاء د بيرغ د دوی ده، او هم په آخرت کي بجميل الثواب والخلود في النعيم المقيم کي چي جنت دی، او تعظيم او تکريم دی پر امثال د دوی کذا في کشف الاسرار.

إِنَّ اللَّهَ كَانَ غَفُورًا رَّحِيمًا ﴿٢٤﴾

په تحقيق خدای ﷻ بخښونکی د ګناه او مهربان دی پر من تاب من معصية کانت حتی من النفاق.

وَرَدَّ اللَّهُ الَّذِينَ كَفَرُوا بِغَيْظِهِمْ لَمْ يَنَالُوا خَيْرًا ۚ

خدای رد کړه يعني شکست يې ورکړی هغه کسانو ته چي کافران وه من قريش وغطفان وغيرهم، د رد معنی داده چي د کومي خوا چي راغلي وه پر هغه خوا ستانه سوه "بغيظهم" ای کائنين بغيظهم يعنی د غصې او د غمه ډک ولاړه، ولي چي مراد د دوی چي استيصال د رسول الله ﷺ او د اصحابو ؓ نصيب نه سوه.

**پوه سه:** چي "خيرًا" چي نکره دی په سياق کي د نفي چي لم دی لپاره د استغراق ده. يعني هيڅ خير په لاس نه ورغلی نه بري پر مؤمنانو او نه اموال د مؤمنانو او نه ښځي او زراري د مؤمنانو. لم ينالوا حال بعد حال دی.

وَكَفَى اللَّهُ الْمُؤْمِنِينَ الْقِتَالَ ۚ وَكَانَ اللَّهُ قَوِيًّا عَزِيزًا ﴿٢٥﴾

او کفايت وکړی خدای د مؤمنانو له خوا د جنګ چي باد يې پر مسلط کړی او ملائکه د تکبير ويلو لپاره په لښکر کي د کافرانو، او دی خدای ﷻ قوي يعني درلوونکی د لوی قدرت په خپل ما يشاء کي يحدث ما شاء واراد، او غالب دی په انتقام کي له دښمنه چي هيڅ مانع يې څوک نسي کېدای.

وَأَنزَلَ الَّذِينَ ظَاهَرُوهُم مِّنْ أَهْلِ الْكِتَابِ مِن صَيَاصِيهِمْ

او راکښته کړه هغه کسان چي د احزابو سره يې مرسته کړې د اهل کتابو څخه چي بنو قريضة د يهودانو وه کما مر قصتهم باغواء حيی بن اخطب، د خپلو محکمو کلاوو څخه.

**پوه سه:** چي صياصي جمع د صيصة ده، هغه شي ته وايي چي سرې يا حيوان ځان په ساتي له دښمن څخه که محکمه کلا وي، او که د غوايي ښکر وي او که د

چرګ د ښپې خار وي چې لکه تیره میخ داسي شی دی چې چرګ جنګ په کوي.

وَقَذَفَ فِي قُلُوبِهِمُ الرُّعْبَ فَرِيقًا تَقْتُلُونَ وَتَأْسِرُونَ فَرِيقًا ﴿٢٦﴾

او واچول خدای پاک د دوی په زړو کي بیره، چي یوه ډله یې مو یږ وو وژل چي لوی نروه، نه ښځي او نه نابالغه هلکان. (ابن اسحاق وایي چي دغه نران شپږسوه (۶۰۰) کسه وه، بعض مفسرین وایي اووه سوه او بعض وایي څلور سوه کسه وه، ابن اسحاق رح وایي چي بعض رواة وایي چي نهه سوه (۹۰۰) کسه وه، والله اعلم)

او بندیانول مو بله ډله چي ښځي او ذراری وه، بعض مفسرین وایي چي بندیان اووه نیم سوه (۷۵۰) کسه وه او بعض وایي نهه سوه (۹۰۰)، او په سبیل الرشاد کي وایي چي سبایا زر (۱۰۰۰) کسه وه، من النساء والصبیان.

وَأَوْرَثَكُمْ أَرْضَهُمْ وَدِيَارَهُمْ وَأَمْوَالَهُمْ وَأَرْضًا لَّمْ تَطَئُوهَا ط

او تاسي ته په میراث پاته سوه کښتونه د دوی او کورونه او کلاوي د دوی، او مالونه یعني مواشي د دوی لکه پسونه، غوایي، اوښان او نور، او داغه رنګه نقود د دوی من الذهب والفضة، او نوره مځکه چي تاسي تر اوسه تر پښو نه ده لاندي کړې. مقاتل او ابن زید رح وایي چي مراد ځني خیبر دی وهو المناسب لهذا المقام، او قتاده رح وایي چي مراد ځنی مکه ده، او الحسن رح وایي چي فارس او روم دی، او عکرمه رح وایي چي مراد ټولي مځکي دي چي مفتوحه د اسلام و کړځي الی یوم القیامة.

وَكَانَ اللَّهُ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرًا ﴿٢٧﴾

او دی خدای ج پر هر شي تام القدرة چي اراده یې وکړي لامانع لحکمه ولاراد لقضائه.

**درویش وایي**: چي اوس نوبت دی د بیان د بني قریضه وو د غزاء چي نقض العهد یې کړی ؤ او په احزابو کي داخل سوي وه چي حیی بن اخطب د وی غولولي وه کما مر بیانه، راویان د قصې وایي په صحیح اسناد و سره چي مشرکان یعني ابوسفیان او ملګري د د ه او غطفان او ملګري د ده او نور ناکامه سوه په قدرت د خدای جل جلاله کما مر بیانه، نو بنو قریضه د بیري بیري واخستل، د بیرو راویانو داسي روایت کړی دی چي رسول الله ﷺ او ملګري چي له خندق څخه د پر ستړي ستومانه راو ګرځېدل او سلاح یې کښېښوول، او علیه الصلوة والسلام حجرې ته د عائشې رضي الله عنها ننوتی او غوښتل

يې چې سر مبارک له ګرد او غبار څخه د خندق پرېږ منځي، او بغوي رح وايي چې په حجره کې د زينب بنت جحش يې سر مبارک پرېولی، والاول اشهر، نيم سر د عليه الصلوة والسلام عائشې ﷺ پرېولی ؤ، نو يو سړي سلام وواييه او داسې يې وويل: غديرک (منصوب علی الاغراء) يعني ور ځه جنګ ته د هغه چا چې ستا سره غدر کړی ؤ يعني نقض العهد يې کړی ؤ چې عبارت له بني قريضه څخه دی، فقام رسول الله ﷺ فزعًا (په ډېر خوف) نو داسې چټک وروالړ سو، عائشه رض وايي چې ما تر چوله د دروازې ورته کتل. زما په خيال هغه سړی د حية الکلبي راغلی، او هغه سړي له سره ګرد و غبار څنډی او لنګوټه يې مول کړې وه، او داسې يې ويل: ما اسرع ما حللتم غديرک من محارب عفا الله عنک؟ تاسې سلاح بيا کښېښول وما وضعت الملائکة منذ نزل بک العدو (ای الاحزاب) او دې سړي وويل چې موږ ملکي تر هغه پوري په احزابو پسې ؤ حتی چې حمراء الاسد ته مو ورسول (چې د يو ځای نوم دی چې له مدينې څخه ډېر لېرې دی) ان الله يأمرک بقتال بني قريضة، او زه اوس سره د ملګرو ملکو روان يم بنو قريضه ته چې د دوی کلاوې ور وښوورم، دې سړي وويل چې فاخرج بالناس، عليه الصلوة والسلام ورته وويل چې زما اصحاب د خندق په غزاء ډېر ستړي ستومانه سوي دي چې يو څو ورځې مو دې جنګ ته د بني قريضه مهلت ورکړی وای. هغه سړي ورته وويل درراهي سه سره د اصحابو بني قريضه ور ته فوالله بني قريضه به داسې وټکول سي لکه هګۍ پر ډبره. عائشه رض وايي عليه الصلوة والسلام چې کور ته راغلی، ما ورته وويل چې دا سړی څوک ؤ چې ستا سره يې خبرې کولې؟ عليه الصلوة والسلام راته وويل تا وليدی؟ ما ورته وويل نعم، ده راته وويل چې د چا سره مشابه ؤ؟ ما ورته وويل د دحية الکلبي سره، عليه الصلوة والسلام راته وويل چې دا سړی جبرئيل ؑ ؤ او زه يې امر کړم چې د بني قريضه غزاء ته ووځه. راوي وايي چې جبرئيل ومن معه من الملائکة د قريضه پر خوا راهي سوه چې په کوڅو کې د بني غنم د انصارو دوړې پورته کېدلې. نو عليه الصلوة والسلام يو سړی امر کړی چې داسې نعره وکړه يا خيل الله ارکبي (ای لښکره د خدای سپاره سئ) او بلال رض ته يې وويل چې اعلان وکړه چې من کان سامعًا مطيعًا فلا يصلين العصر الا في بني قريضة، په روايت کې د مسلم صلوة الظهر راغلی دی.

**درویش وایي:** چي شاید دا به سهوه د کاتب وي، د بخاري په روایت کي او د مسلم په بل روایت کي او د نورو ګڼ شمېر په روایاتو صلوة العصر راغلی دی، بلکې ظاهره داده چي صلوة الظهر علیه الصلوة والسلام په اذان د بلال لمونځ په جماعت کړی دی، لکه روح البیان چي وایي صلی الظهر آه، په هر صورت علیه الصلوة والسلام خو د څو کسانو سره پر طرف د بني قریضه وو راهي سو، پر وروسته کسانو د صلوة العصر وخت داخل، نو ځیني کسانو وویل چي صلوة العصر نه ګذارو چي بني قریضه ته ونه رسېږو، ولي د علیه الصلوة والسلام له خوا پر تاکیدًا او عزمًا دا حکم ؤ چي صلوة العصر به په قریضه کي ګزارئ، خیر هغه کسان خو راهي سوه، او بعد غروب الشمس یې لمونځ د عصر قضاءً په بنو قریضة کي اداء کړی، او بعض کسانو د مازدیګر لمونځ پر خپل وخت پر لاري وکړی، او د علیه الصلوة والسلام د قول توجیه یې دا وکړه چي دده مقصد دا ؤ چي پر لاري وقفه مه کوئ بلکې په تلوار ځانونه و بني قریضه ته ورسوئ دا یې مقصد نه ؤ چي صلوة العصر که څه هم وخت په لار کي درباندي راسي مه یې کوئ.

**درویش وایي:** چي مظهري یوه وجه د جمعي راوړې ده یعني د حدیث د ظهر او د عصر چي سرې په تعجب کي اچوي، والله اعلم.

**تفریع:** دا موضع چي علیه الصلوة والسلام یعني په بعض کسانو صلوة العصر په خپل وخت کي، او بعض کسانو چي بني قریضه ؤ ته د مغرب د لمانځه سره وکړی، ته پیش سوه پر یوې ډلې یې منت نه وکړی، دا حدیث پر دې دلالت کوي چي مجتهد لا اثم علیه ان اخطاء، ولي علیه الصلوة والسلام لم یصنف احدًا من الفریقین یعنی من صلی في الطریق ومن لم یصل، په زاد المعاد کي وایي چي حاصل یې دادی چي دواړو فریقینو ته خدای ﷻ اجر ورکوي په اعتبار د نیت د هغه هو من صلی في الطریق دوه ثوابه یې حاصل کړه امتثال الامر النبوي في الاسراع في المشي الی بني قریضة، ولي چي دا ظاهره خبره ده چي د علیه الصلوة والسلام مقصود د لایصلوا الا في بني قریضة، مبالغه وه په اسراع کي مجازًا، او بل فضیلت دې ډلې دا حاصل کړی چي لمونځ د عصر یې په خپل وخت کي وکړی بخلاف الفریق الاخر چي د مازدیګر لمونځ یې په خپل وخت کي نه وکړی بلکې او د مغرب سره یې چي بني قریضه ته

ورسېدل وه يې کړې هغه که څه هم فضيلت د اسراع في المشي حاصل کړې لکن فضيلت د صلوة العصر في الوقت يې د لاسه ورکړې، خير وروسته عليه الصلوة والسلام علي بن ابي طالب ؓ راوغوښتې او بيرغ يې په لاس ورکړې.

**فائده:** بيرغ اسلامي پر هغه حال باقي ؤ چي په خندق کي ؤ خلاص کړې يې نه ؤ، نو خلک ټوله په علي ؓ پسي روان سوه او پر مدينه منوره يې ابن ام مکتوم ؓ مقرر کړې چي په ستر ګو هم ړوند ؤ.

**درويش وايي:** چي دا موضوع د غزوة بني قريضه ؤ داسي وخت منځ ته راغله چي اووه ورځي د ذو القعدة الحرام پاته وې، بغوي ؒ وايي چي غزوة د قريضه په سنه پينځه (۵) کي د هجرت رونما سوه، نو عليه الصلوة والسلام خپل سلاح واغوستل او زغره يې هم واغوستل او مغفريې پر سر کښېښو يعني جنګي خولی او پر خپل آس چي لحيف يې باله سپور سو، او اصحاب کرام ؓ چار چاپېره پر راوګرځېدل او هغو هم سلاح په غاړه کي واچول، او شپږ دېرش (۳۶) آسان وه چي عليه الصلوة والسلام يې په منځ کي روان ؤ، او ابن سعد ؒ وايي چي دده سره ورسره کسان درې زره (۳۰۰۰) کسه وه.

**پوښتنه:** ذو القعدة خو د اشهر حروم څخه وه او شرعًا په قول د عليه الصلوة والسلام ابتداء د قتال په اشهر حرم کي ناجائز ده؟

**ځواب:** روح المعاني، مظهري او نورو مفسرينو ددې سوال ځواب داسي ورکړې دی، اول حرمت د ابتداء د قتال په اشهر حرم کي عليه الصلوة والسلام په کال د حجة الوداع اعلان کړې او غزوة د بني قريضه تر حجة الوداع د مخه وه، دويم لکه چي خدای پاک په فتح د مکې يو ساعت د ورځي اجازه د جنګ ورکړه په کال کي د فتح د مکې او سره ددې قتال د حرم محترم حرام وه او داغه رنګه دې اجازه عليه الصلوة والسلام ته د جنګ په شهر حرام کي ورکړې وي لمنفعة قطع عداوة اليهود بالمرة، درېيم دا خو بدايه د قتال د رسول الله ﷺ له خوا نه وه بلکې بدايه د قتال خو بني قريضه وو وکړه چي په احزابو کي داخل سوي وه، او د عليه الصلوة والسلام سره يې جنګ کاوه، له ابن عباس ؓ څخه روايت دی چي عليه الصلوة والسلام چي بني قريضه ته ورسېدی پر خره سپور ؤ پر لڅه شا چي دا خره يې يعفور باله، او په صحيح حديث کي راغلي دي چي

عليه الصلوة والسلام په لار کي د بني النجار د صوريين په مقام کي چي په هغو نفرو کي حارثه بن النعمان هم موجود ؤ او هغو ټولو سلاح اغوستي وه عليه الصلوة والسلام ورته وويل چي دلته څوک تېر؟ دوی ورته وويل چي دحية بن خليفة الكلبي تېر سو پر غاطره سپور ؤ او پر ځين استبرق (چي يو وريښمين ټوکر دی) دده سامان ؤ، او موږ ته يې وويل چي خپل سلاح راواخلئ موږ هم خپله سلاح راواخستل صف زده ولاړ يو، او دحية الكلبي رضي الله عنه راته وويل چي اوس به عليه الصلوة والسلام هم راورسېږي، حارثة بن النعمان وايي چي دوه صفه ولاړ ؤ، عليه الصلوة والسلام ورته وويل چي دحية الكلبي نه ؤ جبرئيل ؑ ؤ چي بني قريضه ته راهي ؤ چي ددوی کلاوي پر زلزله راولي او ددوی په زړو کي رعب واچوي، راوي وايي چي علي بن ابی طالب رضي الله عنه سره د څو نفرو د مهاجرينو او انصارو رضي الله عنهم روان ؤ، بني قريضه وو چي علي او مهاجرين او انصار رضي الله عنهم وليدل، نو د شر يعني د جنګ يقين يې سو، او علي رضي الله عنه د اسلام بيرغ ورپاوه په نېز د بني قريضه وو د کلا د بيخ، نو بني قريضه د کلا د خوا ناري وهلې او ښکنځل يې و عليه الصلوة والسلام او ازواج مطهراتو ته کول، ابو قتاده رضي الله عنه وايي چي موږ ساکت ؤ يعني ښکنځل مو نه کول او دا قدر مو ويل السيف بيننا وبينکم، يعني توره به زموږ او ستاسي تر منځ فيصله وکړي، په دې دوران کي رسول الله ﷺ راورسېدی او قريب ددوی وحصن کلا ته د بني قريضه وو نازل سو په حره کي د بني قريضه (يعني په شګلنه ځمکه کي ددوی) علي رضي الله عنه چي عليه الصلوة والسلام ته ور روان سو، ابو قتاده رضي الله عنه وايي چي علي رضي الله عنه ماته وويل چي ته بيرغ سنبال کړه، نو عليه الصلوة والسلام ته يې وويل چي ددې خبيثانو کلا ته نژدې مه ورځه، د علي رضي الله عنه غرض دا ؤ چي عليه الصلوة والسلام د دغو خبيثانو پوچ فحش وانه وري، عليه الصلوة والسلام ورته وويل ته ما امر کوې په رجوع، ای علي تا لکه چي ددوی څخه ښکنځل و ماته اورېدلي دي؟ علي رضي الله عنه ورته وويل نعم، عليه الصلوة والسلام وويل دوی چي ما ووينې هيڅ ښکنځل نسي کولای، نو عليه الصلوة والسلام د کلا و خواته راهي سو او د عليه الصلوة والسلام د مخه اسيد بن حضير ؤ هغه ناره پر وکړه يا اعداء الله موږ ستاسي د حصونو څخه نه ځو تر څو چي تاسي له لوږې څخه مړه نسئ تاسي اوس لکه ګيدړ چي غاربندی سي، دوی ورته وويل يا ابن الحفير موږ خو ستاسي معاهدين يو دون

الخزرج، اسيد بن حفير ورته وويل لاعهد بيننا وبينكم او نه قرابت او عليه الصلوة والسلام بنه ورقريب سو، ابن الحفير وايي چي موږ د عليه الصلوة والسلام پر سر سپرونه نيولي وه، نو عليه الصلوة والسلام په بلند اواز ورناري کړې ددوی و اشرافو ته حتى چي ناره يې په دوی واورېدل، هغو ږغ نه کاوه، عليه الصلوة والسلام ورته وويل خواب راکړئ يا اخوة القردة والخنازير وعبدة الطاغوت هل اخزاکم الله (کلمه د هل په معنی د قد ده نحو هل اتى على الانسان آه) يعني په تحقيق خدای تاسي رسوا کړلاست، او نازل کړی خدای عذاب پر تاسي، تاسي زما په غياب کي ماته بښکنځل کول، دوی په قسم ورته وويل چي موږ بښکنځل نه دي کړي او دا يې ورته وويل ما کنت فاحشًا؟ يعني تا ولي موږ ته وويل: يا اخوة القردة والخنازير، دا خو فحش وه او تا خو فحش نه ويل؟ چي ماخستن سو مسلمانان راجمع سوه و رسول الله ﷺ ته او سعد بن عباده رضي الله عنه څو باره د خورما راوړه و رسول الله ﷺ ته نو دغه يې خوراکه سوه، او عليه الصلوة والسلام وويل نعم الطعام التمر، نو چي سهار سو رسول الله ﷺ او غشي ويشتونکي مسلمانان سره راغونډ سوه، د بني قريضه پر کلا شاوخوا يې احاطه وکړه، نو مسلمانانو په غشو او ډبرو دوی ويشتل او يهودانو له حصون څخه ډبري او غشي راغورځول حتى تر ماښامه پوري او مسلمانان په نوبت سره راتله تېر اندازي يې کول، نو عليه الصلوة والسلام وتېر اندازی ته دوام ورکړی حتى چي يهودان پر هلاک وبېرېدل، نو يهودانو خپله تير اندازي بنده کړه او عليه الصلوة والسلام ته يې د خبرو کولو پيشنهاد وکړی، عليه الصلوة والسلام د دوی دي پيشنهاد ته نعم ووايه، نو دوی نباش بن قيس راواستاوه، نو هغه عليه الصلوة والسلام ته وويل چي زموږ سره هغه معامله وکړه چي تا د بني نضير سره کړې وه يعني موږ خپل ټولي کلاوي او اموال دربرېږدو او موږ له خپل وطن څخه وځو، ښځي او اولادونه چي ذريه يې بولي او يو اوښ بار چي زموږ زره غواړي راسره وړو يې الا الحلقة، فابى رسول الله ﷺ ذالک، يا نباش ورته وويل چي زموږ وينه دي محفوظه وي او زموږ ښځي او ذريه او د اوښ تر بار د تېر يو، عليه الصلوة والسلام ورته وويل: لاحرف قلا بندي به خلاصوي او حکم ته به غاړه ايږدئ، نباش چي قوم ته ورغلی او د عليه الصلوة والسلام اخيري خبره يې ورته وکړه، نو کعب بن اسد چي د قريضه رئيس ؤ کماسر وويل يا معشر بني قريضه

والله قد نزل بکم ما ترون، او کعب بن اسد وویل چي زه تاسي ته دري پیشنهاده کوم هر
یو چي ستاسي خوښ وي زه به هغسي وکړم قالوا وماهي؟ کعب وویل اول پیشنهاد
داد ی چي راځي ټول ددغسي سړي بیعت وکړو او تصدیق یې وکړو او ایمان پر
راوړو، ده وویل والله قد تبین لکم (تاسي ته دا ښکاره سوې ده چي دا رجل نبي مرسل
دی او دا هغه سړی دی چي ستاسي په کتاب تورات کي یې نعت موجود دی) نو که
داسي موږ وکړو هم زموږ وینه او ښځي او ذریه او مالونه او قلاوي ټول له محفوظ موږ
ته پاته سي، کعب ورته زیاته کړه والله انکم تعلمون ان محمداً نبي وما منعنا من
الایمان به الا الحسد للعرب، ولي چي دی نبي د بني اسرائیلو د قوم نه دی، او کعب
ورته زیاته کړه چي ما خو عهد د امن د علیه الصلوة والسلام نه ماتاوه پر موږ بلا او
شوم ددغسي سړي د لاسه نازل سو اشاره یې وحیی بن اخطب ته وکړه چي هغه په
مجلس کي موجود ؤ، ولي حیی چي بني قریضه وغولول داسي یې ورته ویلي وه چي
که څه هم قریش او غطفان ولاړ سي زه به ستاسي سره یم، نو د کعب بن اسد سره یې هغه
وینا وفا کړه، نو یهودانو د بني قریضه و کعب بن اسد ته وویل لانفارق حکم التورات
ابداً ولانستبدل به غیره، کعب بن اسد ورته وویل (۲) زما پیشنهاد دادی راسئ چي
خپلي ښځي او عیالونه ټول له قتلی کړو ثم نخرج الی محمد بالسیوف، نو موږ که هلاک
او قتل سو داسي به ارمان نه وي چي ښځي او کوچنیان به مو څرنګه سوي وي، او که
موږ غالب سوو پر محمد باندي قلعمري نوري ښځي او زامن به پیدا کړو، دوی په
ځواب کي کعب بن اسد ته وویل لانقتل هؤلاء المساکین، نو څه خیر په ژوند کي سته،
وروسته تر قتل ددوی، (۳) پیشنهاد که دا هم نه کوئ، نو نن شپه د سبت ده یعني د
شنبې شپه شاید محمد (ﷺ) او اصحاب دده به غافل وي په دې سبب چي د یهودانو
د سبت د ورځي احترام کوي، حمله به پر وکړو، نو په دې غفلت کي ددوی چي موږ
حمله پر وکړو نو موږ به بریالي سو، دوی ورته وویل چي موږ د سبت احترام د لاسه نه
ورکوو، ولي که موږ داغسي وکړو موږ ته به هغه عذاب راسي لکه تاته چي معلوم دی
مسخ به سو یعني سرکوزان او بیزوګان به را څخه جوړ سي.

**درویش وایي**: چي په دې کي ددوی اشاره و هغه مسخ ته وه چي په زمانه کي د
داؤد علیه السلام په ایله کي پېښه سوه چي د دریاب پر غاړه پراته وه او د شنبې په ورځ یې



Scanned by CamScanner

د ماهيانو ښکار کاوه، کما بيناه في موضع آخر من القرآن مفصلاً)

او کعب بن اسد ورته وويل چي آيا ستاسي پياد ده هغه خبره چي جواس چي ستاسي امير ؤ کړې وه، دوی ورته وويل چي هغه کومه خبره وه؟ کعب بن اسد ورته وويل چي هغه دا خبره کړې وه چي په دې قريه يعني مدينه کي به يو نبي راسي، نو جواس وويل که دا نبي پيدا سو او زه ژوندی وم زه ايمان پر راوړم او کومک ورسره کوم، او که زما تر مرګ وروسته پيدا سو تاسي به يې متابعت کوئ او انصار او اولياء دده به ګرځئ او ستاسي به نصيب سي ايمان پر دواړو کتابو الاول يعني تورات والآخر يعني القرآن النازل على ذالک النبي، او هغه نبي ته زما د خوا خبر ورکړئ چي زه مصدق يم.

**درويش وايي:** چي کعب بن اسد هغه اول پيشنهاد ورته تکرار کړی، خو دوی بيا ورته وويل لانفارق حکم التورات ولانستبدل به غيره، وروسته ثعلبه او اسيد ابنا سعية او اسد بن عبيد چي هغه د هذيل د قبيلې وه چي نه بني قريضه وه او نه بني نضير وه بلکې د دوی نسب تر دوی لوړ ؤ په دوی ګډ يدی، ګويا د قريضه او د نضير اکاګان وه، هغو ورته وويل يا معشر بنو قريضه! والله انکم لتعلمون انه رسول الله وان صفته عندنا حدثنا بها علمائنا وعلماء بني النضير او موړ ته خير بن الهيان چي اصدق الناس ؤ عندنا هو اخبر بصفته عند موته. قالوا لانفاق حکم التوراة نو نامور کسانو چي اباء د قريضه د ايمان څخه ورته معلوم سوه، نو دد غې شپې په سهار کي ورغله عليه الصلوة والسلام ته، نو بيعت يې ورسره وکړی او ايمان يې راوړی، نو عليه الصلوة والسلام د دوی ځانونه او د دوی اهل او اموالو ته امان ورکړی، او يو بل ناصح عمرو بن سعد وويل چي تاسي ای بنو قريضه وو هغه عهد چي ستاسي او محمد تر منځ ؤ مات کړی، او ما ستاسي سره شراکت نه دی کړی په غدر کي ستاسي، نو پر يهوديت ثابت وسئ و محمد (ﷺ) ته د جزيه پيشنهاد وکړی زه پوهېږم چي دی به يې ستاسي څخه قبول کړي او که نه، قريضه ورته وويل چي موږ خبر يو چي خراج يې بولي، دا و عربو ته نسو ورکولای هذا عار لنا ابدًا والقتل خير من ذالک.

اهل تاريخ المغازي وايي: چي بني قريضه څوک ورو استول و عليه الصلوة

والسلام ته چي ابو لبابه چي د عمر بن عوف د قبيلې ؤ چي حلفاء د اوس بن الخزرج وه موږ ته را واستوه چي موږ د هغه سره مشوره وکړو خپل په کار کي، عليه الصلوة والسلام ابو لبابه بن عبد المنذر ته وويل ورسه، ابو لبابه چي راغلی قريضه تولـه ورته ولاړ سوه، او ښځو او کوچنيانو يې دده په مخ کي بغاري کړې، د ابو لبابه زړه پر وسو، نو دوی يعني بني قريضه ورته وويل چي ستا دا خوښه ده چي موږ پر حکم د محمد ځانونه تسليم کړو؟ هغه په خوله ورته وويل نعم او په لاس يې اشاره و حلق ته وکړه يعني محمد ﷺ مو ذبح کوي، ابو لبابه وايي چي زه د ځايه نه وم ولاړ سوی چي په ځان پوه سوم چي دا خو دي خيانت وکړی راوي وايي چي ابو لبابه پر خپل مخ ولاړی عليه الصلوة والسلام ته نه ورغلی حتی چي ځان يې په ستنبه پوري د مسجد نبوي ﷺ و تاړه.

**درويش وايي:** چي د ستنبه پر لوړه غاړه تر اوسه پوري نوشته دي عمود التوبة، او ابو لبابه زايي چي زه به د غه ستنبه پوري تړلی يم چي يا مرم او يا يتوب الله علی يعني علی خيانتي مع رسول الله ﷺ او دا مي د خدای سره وعده وکړه چي زه به پر ځمکه د بني قريضه وو پل کښېنږدم ابدًا او زه به نه ولېدل سم په هغه ځای کي چي ما خيانت د خدای او رسول سره وکړی يعني بلد بني قريضه، ابو لبابه وايي زما ټوله احوال و عليه السلام ته چا بيان کړي وه نو عليه الصلوة والسلام دعوه حتی يحدث الله فيه ما شاء، او که دی اولاً ماته راغلی وای او حال د خپل خيانت يې بيان کړی وای ما بخښه ورته کول وانزل الله تعالی هذه الاية في ابي لبابه وان کان حکمه عامًا :يا ايها الذين آمنوا لا تخونوا الله والرسول: الی آخير الآية، ابو لبابه وايي چي توبه زما پر رسول الله ﷺ نازل سوه چي دی په کور کي وو ام سلمة ؓ دا وايي چي ما عليه الصلوة والسلام وليدی چي وي خندل ما پوښتنه خندي وکړه چي پر څه شي دي وخندل اضحک الله سنک.

**درويش وايي :** چي دا د عربو يو رواجي دعاء ده، عليه الصلوة والسلام ورته وويل چي د ابو لبابه توبه قبوله سوه ام سلمة ؓ وايي چي ما عليه الصلوة والسلام ته وويل چي زېری پر ونه کړم عليه الصلوة والسلام وويل بلی يعني پر وي کړه ان شئت نو زه د حجري په دروازه کي ودرېدم (دا د مخه تر حجاب وه) فقلت يا ابا لبابة ابشر (زېری مي درباندي) فقد تاب الله عليک د مسجد حاضر خلک را

وغوړخیده چې ما خلاص کړی ابو لبابه ما ورته وویل لا حتی یکون رسول اللهﷺ
هو الذي یطلقني بیده نو علیه الصلوة والسلام چې د سهار ولمانځه ته راووتی
ابو لبابه یې له قید څخه خلاص کړی ابو لبابه رض وایې چې زما یو خوب په یاد سو
چې موږ مسلمانان بني قریضه محاصره کړي وي او زه په یو تورو خټو کي چې
د ېري بد بوېه هم دي پښې مي بندي دي چې په خوب کي زما دا خیال سو چې له
بد بویي څخه د خټو به زه مړ سم، بیا مي یوه جاري ویاله ولیدل چې په هغې ویالې
کي مي ځان پاک پرېولی او تنده مي هم ماته سوه او ډېره خوشبویي تر پزې پوري
راغله، نو ما دا خوب ابو بکر رض ته ووایه. نو هغه یې تعبیر داسي راته وکړی چې ته
به په لوی غم اخته سې او بیرته به فرج ځندي پیدا کړې (یعني له هغه غمه به
خلاص سې) حتی ما ځان تړلی ؤ هغه خوب به مي را پیاد سو امید به مي پیدا سو
چې خدای ج به زما توبه نازله کړي، ابن هشام وایي چې ابو لبابه شپږ ورځي ځان
تړلی ؤ، او ابن عقبه وایي چې راویان وایي چې قریب شل ورځي یې ځان تړلی ؤ،
په بدایه کي وایي چې دا قول اشبه د قولو دی، راوي وایي چې د لمانځه، یا د قضا
حاجت یا د اوداسه وخت به سو په یوه روایت کي ماینه به یې راغله خلاص به یې
کړی او په بل روایت لور به یې راغله خلاص به یې کړی، ددې دوو روایتو منافات
نسته، ولي ګاهي به یې ماینه راغله او ګاهي به یې لور راغله، او چې ابو لبابه به د
خپلو کارو څخه فارغه سو بیرته به ماینې یا لور وتاړه، وانزل الله تعالی في توبة
ابو لبابة رض هذه الآیة: وَءَاخَرُونَ اعْتَرَفُوا بِذُنُوبِهِمْ خَلَطُوا عَمَلًا صَالِحًا وَءَاخَرَ سَيِّئًا
عَسَى اللَّهُ أَنْ يَتُوبَ عَلَيْهِمْ إِنَّ اللَّهَ غَفُورٌ رَّحِيمٌ (۱۰۲) (التوبة) بیا علیه الصلوة
والسلام وبني قریضه ته وویل چې زما پر حکم راکښته کېږئ؟ دوی ورته وویل
یا، ولي چې ابو لبابه ابن المنذر دوی ته په اشاره ویلي وه چې علیه الصلوة
والسلام مو قتل کوي کما مر. فقال علیه الصلوة والسلام چې پر حکم د سعد بن
معاذ سید الاوس تسلمېږئ، دوی ورته وویل نعم، او دا یې ځینګه معاهده وکړه
چې د سعد بن معاذ له حکمه سر غړونه نه کوو، نو علیه الصلوة والسلام په سعد
بن معاذ پسي یو نفر راهي کړی چې هغه په مدینه کي ؤ او د خندق په غزا کي پر
لاس سخت ټپي سوی ؤ یعني د لاس پر لوی رګ ویشتل سوی ؤ، او ده خدای ج ته

خواست کړی ؤ چي تر هغو ما مه وژنئ چي په بني قریضه وو مي زړه سوړ سوی نه وي. نو سعد بن معاذ پر خره سپور راغلی و کان رجلاً جسیمًا. فقال علیه الصلوة والسلام قوموا الی سیدکم. فقام الانصار فانزلوه.

ویو محترم سړي ته د احترام په توګه ولاړېدل روا دي په حکم د دغه حدیث، ددې حکم څخه مخالف یعني غیر مقلدین وایي چي دا حکم نبوي دده د احترام لپاره نه ؤ بلکې ددې لپاره ؤ چي دی جسیم سړی ؤ چي له خره څخه یې راکښته کړی. نو موږ اهل سنت وایو چي لفظ د سیدکم دلالت پر دې کوي چي ولاړه ددوی د احترام د سعد بن معاذ لپاره وه، او بل داده چي دده د راکښته کولو لپاره یو نفر کافي ؤ نو عمومي حکم ته د قوموا څه ضرورت ؤ.

**فائده:** رسول الله ﷺ چي سعد بن معاذ په خېمه کي د یوې ښځي چي رفیده خلکو بلل او د اسلم د قبیلې وه چي په مسجد نبوي کي وه او ددې ښځي وظیفه دا وه چي د ټپیانو تداوي به یې کوله، او دې د ثواب لپاره د یو ضائع کښتني او مریض خدمت هم کاوه ساتلی ؤ او د هغې څخه یې راوستی سعد بن معاذ وویل چي زما حکم دا دی چي د جنګ نران یعني چي بالغ وي ټول ه دي ووژل سي او اموال دې تقسیم سي او ښځي او ذراري دې سبي سي یعني مریان منځیاني علیه الصلوة والسلام الله اکبر ووایه وقال لقد حکمت فیهم بحکم الله فوق ارقعة یعني السموات، نو علیه الصلوة والسلام دوی نران ټول ه بندیان کړه په سرای کي د اسامة بن زید رض چي تعداد یې (٦٠٠) مقاتل وو. او ذریة او ښځي چي تعداد یې (٧٠٠) وو په سرای کي د ابنة الحارث النجار لان تلک الدار کانت سروة لنزول الوفود من العرب د بني قریضه اموال د غنیمت د کورو څخه د دوی (١٥٠٠) توري (٣٠٠) زغري او (٢٠٠٠) نېزې او (٥٠٠) سپرونه او ډېر لوښي او اوښان او نور بې حسابه مواشي او د دوی مځکي او کورونه یې مهاجرینو ته ورکړه انصارو ته یې نه کړه ور، ولي هغو باغونه او سرایونه درلوده په دې تقسیم انصار ټول ه وه قال الله تعالی في حق الانصار ﴿ویؤثرون علی انفسهم ولو کان بهم خصاصة﴾ بیا علیه الصلوة والسلام بازار ته د مدینې راغلی او امر یې وکړی چي خندقان په مځکه کي جوړ کړي نو بندیان یې را وایستل د خندق پر غاړه بې دراوه سر بې په توره څندي بې کاوه خندق ته بې ټېله کوی چي ګرده یې مړه کړه خندقانو ته یې وغورځول نو یې

خاوري پر را واړولې فاعل د قتل د دوی علي ﷺ او الزبير ﷺ وُ، او د ښځو څخه يې څوک نه دی وژلی مگر بنانة قصاصًا چې دغې ښځې پر خلاد بن سويد ﷺ باندې چې تحت الحصن ناست وُ د ميچني چې رجی يې بولي پر را وغورځاوه د کلا څخه هغه شهيد سو، او بېله خلاده بل څوک نه دی شهيد سوی عليه الصلوة والسلام په حق کې دده وويل (له اجر شهيدين) راويان د غزة القريضة وايي چې رسول اللهﷺ سعد بن زيد الانصاري امر کړی چې سبايا د قريضه بوزه نجد ته نو هغه هورې خرڅ کړه، نو د مسلمانانو لپاره آسان او سلاح په رانيسه.

**فائده**: رسول اللهﷺ امر وکړی چې مور او ولد به نه سره جلا کوي يعني چې مور يې يو ځای خرڅه کړي او ولد يې بل ځای تر څو چې غلام بلوغ ته نه وي رسېدلی يا مينځه حيض ته نه وي رسېدلې، او عليه الصلوة والسلام د ځان لپاره ريحانه بنت نويد بن عمر بن حذافة د بني نضير له قومه څخه وه او په قريضه وو کې واده وه مختاره کړه او هغې اسلام قبول کړی او عليه الصلوة والسلام ازاده کړه او په نکاح يې کړه، او دده مبارک سره وه چې عليه الصلوة والسلام د حجة الوداع څخه راغلی په (۱۰) کې ريحانه وفات سوه فدفنها بالبقيع.

**درويش وايي**: چې د مخه مو ووېل چې سعد بن معاذ چې لاس يې د ېر سخت ټپي وُ دا دعاء کړې وه چې خدای ﷻ دې تر هغو ما نه وژني چې زړه مې په بني قريضه وو سوړ نه سي، نو چون دده په حکم د قريضه خاتمه وسوه کمامر، هغه زخم د لاس د سعد بن معاذ ﷺ وينه ايله کړه حتی مات شهيدًا وقد استبشرت الملائکة بروحه واهتز (حرکت وکړی) عرش د خدای ﷻ په موت د سعد بن معاذ ﷺ، يو سړي د انصارو دده په باره کې دا شعر ويلی دی:

وما اهتز عرش الله من موت هالک ...... سمعنا به الا لسعد ابی عمرو

**درويش وايي**: چې دا قصه چې فقير وکړه د دغو تفاسيرو څخه مأخوذ ده: (۱) التفسير الکبير (۲) التفسير الخازن (۳) تفسير روح المعاني (۴) تفسير روح البيان (۵) تفسير المظهري، يعني بعض ځايونه له يوه تفسير څخه بعض له بل تفسير څخه وهکذا، لکن روح المعاني نورې زائدې خبرې کړې دي، او مظهري پر مسائلو د فقهه زور اچولی، نو که زه فقير ددې دوو تفسيرو ټوله بيانات راوړم د ېرې صفحې به

نوري په بركي ونسي او مطالعه كونكي به ډېر خوابدي سي .... بيت:
تاطبع نازكت نه پزيرد ملالتى ....... آن به كه تفسير را دوام دهم

يٰٓاَيُّهَا النَّبِيُّ قُلْ لِّاَزْوَاجِكَ اِنْ كُنْتُنَّ تُرِدْنَ الْحَيٰوةَ الدُّنْيَا وَزِيْنَتَهَا

اى نبي ووايه و زوجاتو ته خپل كه تاسي ياست چي اراده لرئ د ژوند ناقص او د زينت د دې ژوند، او فراخي د رزق.

فَتَعَالَيْنَ اُمَتِّعْكُنَّ وَاُسَرِّحْكُنَّ سَرَاحًا جَمِيْلًا ﴿۲۸﴾

**بوه سه:** چي اصل معنى د تعالين داده چي يو سړى په لوړ مكان كي وي او كښته مكان والا ته ووايي چي تعالي يعني لوړ ځاى ته راسه، وروسته بې استعمال ډېر سو حتى استوت في استعماله الامكنة كلها، فالمعنى اقبل الي.

**ترجمه:** راسئ په خپل اختيار سره لپاره د طلب د طلاق، زه به متعه د طلاق دركړم يعني يو جوت كالي، زه به تاسي طلاقي كړم په ښه طلاق سره يعني چي بيرته قصد د رجوع نه لرم چي پر تاسي عده اوږده كړم كما كان يفعله اهل الجاهلية ولي چي ددوى به د مابيني څخه بدرالله طلاق رجعي به يې وركړى چي د هغې عده به تېرېدو ته نژدې سوه په قول به يې رجوع ورته وكړه او دستي به يې بيرته طلاقه كړه ثم وثم حتى تطول عليها العدة.

وَاِنْ كُنْتُنَّ تُرِدْنَ اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗ وَالدَّارَ الْاٰخِرَةَ

او كه چيري ياست تاسي اراده لرئ يعني مراتب د قرب و خداى ؒ ته او رضى د خداى ؒ او قرب او رضى د رسول د خداى ؒ او نعمتونه د آخرت د ورځي يعني الجنة.

فَاِنَّ اللّٰهَ اَعَدَّ لِلْمُحْسِنٰتِ مِنْكُنَّ اَجْرًا عَظِيْمًا ﴿۲۹﴾

نو په تحقيق خداى اراسته كړي د محسناتو لپاره ستاسي يعني چي طالبات د رضوان الله او د رسول د خداى او د دار الآخرة يعني دوى مخلصات وي لان الاحسان ان تعبدوا الله كانك تراه الى اخير الحديث الطويل الذي رواه الشيخان "اجرا عظيما" ثوابونه ډېر تر نورو ښځو مؤمناتو په سبب د ازدواج د رسول الله ﷺ.

**بوه سه:** چي احمد، مسلم، نسائي او ابن مردوية من طريق له جابر ؓ څخه

روايت کړی دی چي رسول الله ﷺ په کور کي ؤ او خلک يعني صحابه کرام رض به په مسجد کي وه فلم يؤذن لاحد ثم اذن لابي بکر و عمر رضي الله عنهما او رسول الله ﷺ ناست ؤ ساکت ؤ او زوجات مطهرات پر را تاولي وې، چونکه عليه الصلوة والسلام ډېر مهموم ؤ نو عمر رض فکر وکړی چي يو داسي خبره دي کړم وای شايد رسول الله ﷺ به خندلي وای، نو عمر رض وويل يا رسول الله لو رئيت ابنت زيد يعني خپله مينه يې يادول ﷺ زما ښځه يې د بنې نفقې غوښتنه وکړه زه ورو غور ځېدم تر غاړه مي ونيول يعني خپه مي کړه فضحک النبي ﷺ قال هن حولي سألتني النفقة، فقام ابوبکر رض الى عائشة رض ليضربها وقام عمر الى حفصة رض چي د عمر رض لور وه، دواړو وويل تسئلان رسول الله ﷺ ماليس عنده، نو عليه الصلوة والسلام دوی منع کړه، نو ازواجو مطهراتو وويل والله لانسئل رسول الله ﷺ بعد هذا المجلس ماليس عنده. روح المعاني وايي: وانزل الله الخيار.

**درويش وايي:** چي دا موضوع د مخه نه وه آيت په دې کي نه دی نازل هغه بله موضوع ده، بلکې موضوع د نزول د آيت هغه ده چي بغوي رح بيان کړې ده: ان ازواج النبي ﷺ سئالته من عرض الدنيا وزيادة في النفقة او عليه الصلوة والسلام به دوی زهير اوه چي فلانی درباني ګرانه ده او زه نه يم درباندي ګرانه الى غير ذالک، نو عليه الصلوة والسلام د دوی ځخه هجرت وکړی او په يوه بالا خانه کي چي مشربه يې بلل چي د لرګي پر زينه به ورختی، او يوه مياشت يې قسم اخستی ؤ چي زه به زوجاتو ته نه ورځم، او صرف لمانځه ته به راکښته کېدی د چا سره يې خبري نه کولې، نو خلکو دا شائع کړه چي عليه الصلوة والسلام خپل زوجاتي طلاقي کړي دي، نو عمر رض وويل چي زه به دا دې خبري تحقيق وکړم، نو زه مشربې ته ورغلم او عليه الصلوة والسلام ته مي وويل اطلقت نسائک؟ قال لا لکن آليت منهن شهراً لا ادخل عليهن، عمر رض وايي ما ورته وويل يا رسول الله ﷺ زه چي مسجد ته ورغلم مسلمانانو ټولو دا ويل چي عليه الصلوة والسلام طلق نسائه، نو زه به دوی ته خبر ورکړم چي رسول الله ﷺ خپلي ښځي نه دي طلاقي کړي، قال: نعم ان شئت فقمت على باب المسجد، نو مي لوړه ناره وکړه لم يطلق رسول الله ﷺ نسائه، ونزلت هذه الآية: وَإِذَا جَاءَهُمْ أَمْرٌ مِّنَ الْأَمْنِ أَوِ الْخَوْفِ أَذَاعُوا بِهِ وَلَوْ رَدُّوهُ إِلَى الرَّسُولِ وَإِلَىٰ أُولِي

الْأَمْرِ مِنْهُمْ لَعَلِمَهُ الَّذِينَ يَسْتَنْبِطُونَهُ مِنْهُمْ ، عمر رض وايي فكنت استنبط ذالک الامر، وروسته چي يوه مياشت ايلاء د قسم د عليه الصلوة والسلام پوره سوه دا آيت مذکوره نازل سو چي د آيت التخيير په نامه مشهور دی.

**درويش وايي:** چي شان نزول د آيت التخيير په بخاري کي ډېر طويل راغلی دی ان شئت فارجع اليه، بغوي رح وايي چي په دغه وخت کي د نزول د آية التخيير د عليه الصلوة والسلام نهه زوجاتي وې، پنځه د قريشو ښځه (۱) عائشه بنت ابی بکر رض (۲) حفصة بنت عمر رض (۳) ام حبيبة بن ابی سفيان رض (۴) ام سلمة بنت امية رض (۵) سودة بنت زمعة رض، او څلور د غير قريشو ښځه وي (۱) زينب بنت جحش الاسدية رض (۲) ميمونة بن الحارث الهلالية رض (۳) صفية بنت حيی بن اخطب الخيبرية (۴) جويرية بنت الحارث المصطلقيه، ولما نزلت آية التخيير، نو عليه الصلوة والسلام ابتداء له عائشي رض ښځه وکړه، او داسي ورته وويل: چي يو شی وتاته وايم او دا مي خوښه ده چي ته په تلوار جواب رانه کړې تر هغو چي مشوره دي د مور او پلار سره نه وي کړې (د عليه الصلوة والسلام غرض دا ؤ چي دا خو ښځه ده يو وار ونه وايي چي زه طلاق غواړم او مور او پلار خو دا نه امر کوي په فراق د رسول الله ﷺ)، نو عائشه رض وايي چي عليه الصلوة والسلام آية التخيير راته ووايه، نو عائشي رض ورته وويل: افيک استشير ابوی بل اختار الله ورسوله والدار الآخرة، عائشي رض ورته وويل چي زه ستا ښځه سوال کوم چي زما حال به نورو ازواجو ته نه وايه، تعني که نورو زوجاتو درته وويل چي عائشي ښځه ځواب درکړی، زما حال مه ورته وايه (ددې غرض دا ؤ چي ګوندې بعضې ضرات (بنې) ځان مختاره کړي نو زوجات به لږ سي) عليه الصلوة والسلام ورته وويل چي هري ښځي چي زما ښځه سوال وکړی ستا د حال، زه حتمًا ورته وايم چي عائشي رض زه مختاره کړم طلب د طلاق يې نه وکړی، لم يبعثني الله جحودًا (چي حق به نه وايم) ولا مفتنًا (او يا څوک په فتنه کي اچونکی) بل بعثني الله مبشرًا معلمًا. خير اخيرًا ټولو زوجاتو رض عليه الصلوة والسلام مختاره کړی، او يوې هم طلب د طلاق نه وکړی، راوي وايي دوی ټولو چي خدای او رسول د خدای او دار الآخرة مختاره کړی، د عليه الصلوة والسلام په مبارکه چهره کي اثار د خوشحالی ويرېښېدل، قتاده رض وايي دوی چي خدای او رسول او دار

الآخرة مختاره کړی، نو خدای ﷻ د دوی د خوشحالی لپاره نوري نکاح پر علیه الصلوة والسلام بندي کړې، فقال عزوجل: لایحل لک النساء من بعد، ولا ان تبدل بن من ازواج یعني چي یوه طلاقه کړې په عوض کي بله و کړې.

يٰنِسَآءَ النَّبِيِّ مَنْ يَّاْتِ مِنْكُنَّ بِفَاحِشَةٍ مُّبَيِّنَةٍ

ای زوجاتو د نبي که څوک له تاسي څخه راتګ و کړي په فاحشه سره.

**یوه سه:** چي له فاحشه مراد زنی ده، بلکي ابن عباس رض وایي چي مراد ځني نشوز نافرماني ده چي ښکاره وي د علیه الصلوة والسلام سره او سوء الخلق دی.

يُّضٰعَفْ لَهَا الْعَذَابُ ضِعْفَيْنِ

خدای ﷻ به مضاعف یعني دوه چنده عذاب ورکړي یعني لکه د بل چا ماینه چي نشوز او سوء الخلق د مېړه سره وکړي لان النقمة بقدر النعمة، یعني زوجیت د علیه الصلوة والسلام یو لوی نعمت نو پر نشوز او سوء الخلق لوی عذاب هم مرتب کېږي ''ضعفین'' دوه مثله د عذاب د نورو ښځو چي فاحشه وکړي.

**سوال:** له یضاعف څخه خو دوچندي وفهمېده، نو ضعفین ته څه ضرورت ؤ؟

**ځواب:** مضاعفه حد معین نه لري، نو په ضعف سره یې عدد معلوم سو، یعني دوه مثله.

وَكَانَ ذٰلِكَ عَلَى اللّٰهِ يَسِيْرًا ۝

او دی دا مضاعفت د عذاب و خدای ﷻ ته اسانه.

**سوال:** تا دمخه وویل چي په سبایا وو کي د بني قریضه علیه الصلوة والسلام د ځان لپاره ریحانه بنت زید بن عمرو بن حذافه مختاره کړه او هغې اسلام قبول کړی، او علیه الصلوة والسلام ازاده کړه او په نکاح یې کړه، او په تعداد کي د زوجاتو د علیه الصلوة والسلام نه راوړل سوه، نو د دې سره خو لس کېدلې؟

**ځواب:** هغه روایت د تزوج د علیه الصلوة والسلام د ریحانه، سره روایت ؤ د روح البیان په صفحه (۱۶۳) کي لکن مظهري هغه روایت رد کړی دی، او مظهري وایي چي علیه الصلوة والسلام ډېر حریص ؤ چي په نکاح یې کړي او لکه پر نورو

ازواجو چي حجاب لازم دی دا به هم په حجاب کي کړځي، فقالت يا رسول الله هل تترکني في ملکک، يعني زه به دي مينځه يم فهو اخف علي يعني له دې سببه چي حجاب به پر ما لازم نه وي، و عليک او پر تا به هم سپک وي، ولي چي د زوجيت په صورت کي پر تا قسم او نوبت لازم کرځي او په صورت کي د ملک هر وخت چي دي زړه وغواړي زما سره ملاقات کولای سې، او زما څخه نفع اخستلای سې، فترکها على ملک اليمين، مظهري جزء اتل ما اوحي اليک سورة الاحزاب ص۳۲۹.

**درويش وايي:** چي لله الحمد والمنة والصلوة والسلام على سيد البرية، وعلى آله وصحبه البررة، تفسير د جزء ۲۱ پر څلور بجې د ماپښين په ورځ د يک شنبې پنځلس د رجب الخير سنه (۱۴۳۱) هـ ق فارغ سوم، وروسته ان شاء الله تعالى تفسير د ۲۲ جزء شروع کېږي، او په خير او عافيت او صحت تامه خدای ﷻ دي توفيق راکړي چي دوه ويشتمه پاره هم پايه تکميل ته ورسېږي، وما ذالک على الله المتعال بعزيز...... ع:

باکريمان کارها دشوار نيست.

تفسير ايوبى حنفى د نصيراحمد احمدى لخوا سکين سو.



بسم الله الرحمن الرحيم

# الجزء الثاني والعشرون

## ومن يقنت ٢٢

# تفسير اليوبي حنفي

حضرت مولانا مفتي عبيد الله الأيوبي

الحنفي النقشبندي القندهاري

مكتبة القراءة والتجويد

كاسي روڈ كوئته بلوچستان

بسم الله الرحمن الرحیم

رَبِّ سَهِّلْ وَلَا تُعَسِّرْ وَمِنْكَ التَّوْفِيْق

## وَمَنْ يَّقْنُتْ مِنْكُنَّ لِلّٰهِ وَرَسُوْلِهٖ وَتَعْمَلْ صَالِحًا

**پوهه:** چي قنوت طاعت ته وايي والمراد من يدم على الطاعة بقرينة ان الخطاب مع الازواج المطهرات رضي الله عنهن.

ترجمه: او هغه څوک چي طاعت کوي له تاسي څخه ايها الازواج (للنبي الكريم ﷺ) يعني دوام وکړي پر طاعت د خدای جل جلاله او پر فرمانبرداری د رسول د خدای او عمل وکړي صالح من الفرائض والواجبات وغيرها.

**فائده:** صالحًا يا منصوب دی چي مفعول مطلق د تعمل دی ای عملاً صالحًا يا مفعول به دی.

## نُّؤْتِهَآ اَجْرَهَا مَرَّتَيْنِ

موږ به ورکړو ثواب دوی ته دوه مثله د ثواب د نورو ښځو چي هغه هم ورته کارونه وکړي مرة على نفس الطاعة چي هغه د دوی او نورو ښځو سره شريک دی ومرة على طلبهن رضى الله تعالى والنبي ﷺ وحسن المعاشرة معه ؑ چي په دې کي نوري ښځي د دوی سره نه دي شريکي.

## وَاَعْتَدْنَا لَهَا رِزْقًا كَرِيْمًا ۝

او اراسته کړی دی موږ د دوی لپاره ښه رزق وهو مراتب الضرب الى الله تعالى والدرجات العلى في الجنة لان المرء مع من احب حديث صحيح.

**درويش وايي:** چي ابن ابی حاتم د ربيع بع انس څخه روايت کړی دی په حاصل د معنی د دغو دوو آيتو چي څوک چي عصيان وکړي له تاسي څخه، نو پر هغي باندي ضعف دی د عذاب د نورو ښځو د منافقانو نساء، او که څوک عمل صالح له تاسي څخه وکړي هغې ته ضعف د ثواب د نساء المؤمنين ورکول کېږي، مثلاً که د مسلمانانو د نساء حسنه په لس مثله سره وه، د ازواج مطهراتو حسنه به په شل مثله سره وي، او که د نورو ښځو حسنه په شل مثله وه، د ازواج مطهراتو

حسنه به په څلوېښت مثله سره وي وعلى هذا فقس.

**نکته**: خدای ج داسي وويل "نؤتها اجرها مرتين" داسي يې نه وويل "يضاعف لها الاجر" لکه په مقابل کي د يضاعف لها العذاب ضعفين. لدې سببه چي اصل تضعيف الاجر له خواصو څخه د زوجاتو مبارکاتو نه دی. بلکې هر څوک چي عمل صالح وکړي من الرجال والنساء لهذه الامة المرحومة يضاعف له اجره کما ورد الحسنة بعشر امثالها، نو خدای ج عبارت د اجر ددوی په نؤتها اجرها مرتين سره وکړی چي تفسير يې د مخه آنفًا تېر سو، يعني مرةً على نفس الطاعة ومرةً طلب آه، او دا په نورو ښځو کي د مسلمانانو نسته کما لايخفى بخلاف يضاعف لها العذاب آه، ولي په هغه کي نوري ښځي د مسلمانانو نه دي ورسره شريکي کما هو الظاهر لمن تأمل.

يٰنِسَآءَ النَّبِيِّ لَسْتُنَّ كَاَحَدٍ مِّنَ النِّسَآءِ

ای ازواجو (مطهراتو) د نبي ﷺ نه ده له تاسي څخه هره يوه، لکه د نورو عامو مؤمنانو د ښځو، قال ابن عباس رض معنى الآية ليس قدركن عندي مثل قدر غيركم من النساء الصالحات انتن اکرم علي وثوابکن اعظم لدي.

**درويش وايي**: وذالک ببرکة صحبتهن مع الرسول الله ﷺ ليلاً ونهارًا.

**فائده**: اصل د احد وحد ؤ په معنى د واحد دی، بيا لفظ د احد په نفي عام کي مستعملېږي چي مذکر او مؤنث او واحد او کثير پکښي برابر دي.

**درويش وايي**: چي په تفضيل کي د يوې ښځي پر نورو ټولو ښځو مختلف آيتونه او حديثونه راغلي دي، کهذه الآية تدل على تفضيل نساء النبي ﷺ على سائر النساء المؤمنات، وقوله تعالى في حق ابنة عمران ان الله اصطفاک وطهرک واصطفاک على نساء العالمين، تدل على افضليتها من جميع النساء، وروى الترمذي عن انس رض ان النبي ﷺ قال حسبک من النساء العالمين مريم بنت عمران وخديجة بنت خويلد وفاطمة بنت محمد ﷺ، وآسية امرئة فرعون، او په بخاري او مسلم کي په روايت د عائشة رض له فاطمه رض څخه قالت قال رسول الله ﷺ يا فاطمة الاترضين ان تکوني سيدة نساء اهل الجنة او نساء المؤمنين، وفي رواية اخرى چي ماته ملکه راغله او زېری يې راباندي وکړی بان فاطمة سيدة نساء اهل الجنة وان الحسن

والحسين سيدا شباب اهل الجنة، و ورد في حديث صحيح فضل عائشة على النساء كفضل الثريد على سائر الاطعمة، والجمع بينها باعتبار الاعتبارات، مثلاً اعتبار الجزئية لرسول الله ﷺ في فاطمة واعتبار الزوجية لرسول الله ﷺ في مجموع نساء النبي ﷺ واعتبار غاية حب رسول الله ﷺ اياها في عائشة رضي الله عنها واعتبار كونها امًا للبني بنفخ جبرئيل في جيبها لكه مريم بنت عمران ام عيسى ؑ وغيرها من الاعتبارات رضى الله تعالى عنهن جميعًا، هذا ما عندي في الجمع فتامل هداك الله تعالى.

## إِنِ اتَّقَيْتُنَّ فَلَا تَخْضَعْنَ بِالْقَوْلِ

هذا شرط لنفي المثلية و فضلهن.

**پوهـ سه:** چي ځواب د شرط محذوف دي دل عليه المذكور يعني لستن كاحد من النساء، او مفعول د اتقيتن محذوف دى اى ان تقيتن مخالفة حكم الله تعالى ورضاء رسول الله ﷺ، والمراد ان دمتن على اتقاء ذالک، مثال يې دادى لكه يو سړى چي بل متقي سړي ته ووايي اتق الله اى دم على التقوىٰ، والحاصل چي تاسي نساء الرسول ﷺ ميل و زينت ته د دنيا مه كوئ لكه نوري ښځي چي يې كوي لبعده من مقامكن.

**پوهـ سه:** چي كلمه د فا لپاره د سببيت ده يعني اذا ثبت فضلكن على سائر النساء مع شرط التقوىٰ، نو بايد ستاسي څخه خو داسي كار صادر نسي چي منافي د تقوىٰ سره وي چي په نرمي او په پسته خوله د نرو سره خبري كوي، دليل د نهي دادى چي يوه ښځه د بيگانه نر سره ليني خبري كوي د نر په زړه كي طمعه د زنى پيدا كېږي.

**پوهـ سه:** چي الجزري رحمه الله په نهايه كي وايي چي عليه الصلوٰة والسلام نهي كړي دي چي نر دي د غير سره د ماينې نرمي خبري نه كوي چي بيا د هغې په زړه كي طمع پيدا كېږي، او پ نهايه كي داسي راغلي دي چي يو سړى ؤ په زمانه كي د عمر رضي الله عنه تېرېدى چي يوه نر او يوې ښځي نرمي نرمي خبري سره كولې، نو دې سړي د هغه نر سره چي نرمي نرمي خبري يې د ښځي سره كولې په يو شى يې پر سر وواهه چي سر يې مات سو، نو هغه سر ماتي سړي عمر رضي الله عنه ته شكايت وكړى، عمر رضي الله عنه يې د سر ماتېدو شكايت نه واورېدى په سبب د هغه سر گوشي خبرو دده د بيگانه ښځي سره.

فَيَطۡمَعَ ٱلَّذِي فِي قَلۡبِهِۦ مَرَضٞ وَقُلۡنَ قَوۡلٗا مَّعۡرُوفٗا ۝٣٢

**پوهه سه:** چي ''فيطمع'' منصوب دى په ځواب كي د نهي په ان مقدره بعد الفاء، والتقدير فان يطمع. ترجمه: نو طمع د حرام پيدا كيږي و هغه چاته چي په زړه كي يې مرض وي يعني النفاق يا حب الفجور وان كان مؤمنًا.

**فائده:** طمع يې مقيد كړه په الذي آه سره، ولي چي مؤمن كامل چي زړه يې مطمئن بالايمان وي لا يطمع فيما حرم الله تعالى يعني زنٰى، والذي في قلبه شائبة النفاق يطمع فيما حرمه الله، په فقهه شريفه كي وايي چي ښځي ته مستحب ده چي د بيګانه سړي سره چي خبري كوي په دلاورى او په غلظت دي خبري ورسره كوي لقطع الاطماع.

''وَقُلۡنَ قَوۡلٗا مَّعۡرُوفٗا'' او دوى دي د نرو سره داسي خبري كوي چي حسن وي او د ريب او شك او طمع څخه خلاصي وي، يو نابغه شاعر په مدح كي د يوې پاكي ښځي وايي:

سقط الضيف ولم ترد اسقاطه ..... فتناولته واتقتنا باليد

ترجمه: ولوېدى پوړنى يعني د يوې ښځي له سر څخه، او د دې اراده د اسقاط نه وه چي په قصد يې مخ ښكاره كاوه، بلكي باد ځني ايله كړى. نو دې پوړني ته ورحمله كړه او زموږ څخه يې مخ په لاس پټ كړى يعني له ډېري حياء څخه يې مخ په لاس پټ كړى.

وَقَرۡنَ فِي بُيُوتِكُنَّ

**پوهه سه:** چي اصل د قرن اقررن وُ، حركت د اولي راء يې قاف ته نقل كړى بيا التقاء د دوو ساكنينو راغله يعني الرائين، نو راء اولى يې حذف كړه او همزه د وصل يې هم حذف كړى للاستغناء بفتح القاف فصار قرن، فونه الموجود فلن بالفارسية آرام گيريد درخانهاى خود، په يو صحيح روايت كي راغلي دي چي سودة بنت زمعةؓ من الازواج المطهرة دې ګام ته دى اړولى له دروازي څخه د خپلي حجرې لا لصلوة ولا لحج ولا عمرة، نو چا چي ورته وويل چي ته ولي حج يا عمرې ته نه ځې يا لمانځه ته ولي نه ورځې؟ دې به ورته وويل چي موږ ته داسي خطاب سوى دى ''وقرن في بيوتكن'' حتى چي جنازه د دې يې



Scanned by CamScanner

راوه ايستل له حجري ځخه په زمانه کي د خلافت د عمر بن الخطاب ﷺ، ولذا ورد في الحديث النبوي "خير مساجد النساء قعر بيوتهن.... شاعر وايي:

زبيگانه گان چشم زن كور باد ...... چو بيرون شد از خانه در گور باد

**درويش وايي:** چي مراد له قرار ځخه في البيوت عدم الخروج لقصد المعصية او يا اظهار زينتها الخفية للرجال، كما يدل عليه قوله تعالى، يعني مطلق خروج د يو كار لپاره ورته روا دى.

## وَلَا تَبَرَّجْنَ

دا عطف تفسيري دى د قرن او تاكيد معنوي دى.

**فائده:** په دې آيت کي نهي له خروج ځخه مطلقاً مراد نه دى وان كان للصلوة والحج والعمرة او للحاجة الانسانية او للتعليم في الحجاب لكه چي ددې گمان كړى دى الذين في قلوبهم مرض اى الروافض، چي ددوى د دغه په سبب طعن وايي پر صديقة الكبرٰى ام المؤمنين عائشة ﷺ بنت الصديق الاكبر ابى بكر ﷺ حبيبة رسول الله ﷺ من حيث انها خرجت من المدينة المنورة الى مكة وكان خروجها الى مكة للحج وغير هذا من القبائح التي نسبوها اى هذه الفرقة الملعونة الى عائشة ﷺ، وروى عن انس ﷺ دى وايي چي مؤمنات ښځي و عليه الصلوة والسلام ته راغلي او داسي يې وويل: يا رسول الله ذهب الرجال بالفضل والجهاد في سبيل الله فهل لنا عمل ندرك به فضل المجاهدين في سبيل الله؟ فقال عليه الصلوة والسلام من قعدت في بيتها (يعني له كوره نه ووتل، پرته له تېر وو كارو ځخه) فانها تدرك عمل المجاهدين في سبيل الله، بلكې په روح المعاني کي وايي چي گاهي حرام گرځي خروج ددې بل قد يكون كبيرة كخروجهن لزيارة القبور اذا عظمت مفسدته وخروجهن ولو الى المسجد، په داسي حال کي چي عطرې لګولي وي او سرخې او سفېدې يې کي وي، كه فتنه ځني پېښه سوه واما اذا ظنت ولم يقع الفتنة فهو حرام غير كبيرة، روح المعاني وايي: ومايجوز لهن من الخروج للحج وزيارة الوالدين وعيادة المرضى من اقاربهن وتعزية الاموات من الاقارب ونحوها فانها مشروطة بشرط مذكورة في محلها.

**فائده:** اضافت د بيوت چي يې و ضمير ته د ازواجو مطهراتو وكړى في قوله



Scanned by CamScanner

تعالى في بيوتكن، دلالت پر دې کوي چې دغه بيوت ملک د دوی دی، وقد صرح بذالک الحافظ غلام محمد الاسلمي نور الله مرقده في التحفة الاثنى عشرية. او ده ذکر کړي دي په دغه کتاب کي انه عليه الصلوة والسلام نبي کل حجرة لمن اسکن فيها من ازواج، او دی وايي چې هري يوې به د ازواجو تصرف کاوه په خپله حجره کي لکه تصرف د مالک په خپل ملک کي په حضور کي د عليه الصلوة والسلام او فقهاء وايي ان من نبي لزوجته بيتًا واقبضه اياها کان کمن وهب زوجته بيتًا وسلمه اليها، والدليل على ذالک چې هغه حجره د سيدتنا عائشة وه چې په هغه کي د آنحضرت ﷺ جسد مبارک مدفون دی، او د دې د پلار ابوبکر الصديق ﷺ جسد هم مدفون دی، څه وخت چې ابو لؤلؤ المجوسي د سهار په لمانځه کي عمر ﷺ په خنجر وواهه چې قصه يې په طول سره په کتابو کي د احاديث صحاح او په کتابو کي د تواريخو اسلاميه هم مذکوره ده، نو عمر ﷺ چې له ژوند نا اميده سو، نو خپل زوی عبدالله يې و عائشې ته ورواستاوه چې که ته ما ته اجازه کوې چې د خپلو خليلينو سره ښخ سم دې پر به ستا احسان وي، نو که دا حجرات د نساء النبي ﷺ د بيت المال حق وای، نو عمر ولي د سيدتنا عائشة څخه اجازه غوښتل، او دا اجازه د عمر ﷺ په داسي وخت کي وه چې صحابه کرام ټول له حاضر وه او چا انکار هم نه پر وکړی حتى چې علي کرم الله هم موجود ؤ، خير عائشې ﷺ اجازه ورکړه او عمر و خپل زوی ته وويل چې زه وفات سم ما پر سرير ورواخلئ، بيا عائشه ﷺ ته ووايه چې عمر چې ستا په حجره کي د دفن اجازه غواړي که بيا هم دې منع وکړه نو زما مړی په بقيع کي دفن کړئ، عبدالله بن عمر ﷺ هم همداسي وکړه او عائشې ﷺ بيا هم په خلوص قلب سره اجازه ورکړه حتى دفن مع خليله.

**درويش وايي:** چې دا ټوله عبارت د روح المعاني د هغه عربي عبارت ژباړه ده چې ده ذکر کړی دی او نور تفصيل يې هم کړی دی والله اعلم.

## تَبَرُّجَ الْجَاهِلِيَّةِ الْأُولَىٰ

دا عبارت مفعول مطلق دی، ای تبرجًا مثل تبرج الجاهلية الاولى (موږ تقدير د لفظ د مثل وکړی له دې سببه چې عين تفرج د جاهلية الاولى وروسته تر اسلام ممکن نه دی لمرور زمان الجاهلية الاولى فافهم)

**پوه سه:** چې جاهليت اولى كفر او شرک دی قبل الاسلام، والجاهلية الثانية فسق دی بعد الاسلام، او شعبي رحمه الله وايي چې جاهليت ثانيه مابين عيسى ومحمد عليهما السلام چې هغه دا ؤ چې ښځو به فقط د ملغلرو قميص جوړ كړى ؤ او دواړه جانبه به يې هم نه ګنډى چې هر شى به يې تر ښكاره كيدى.

**درويش وايي:** چې د تبرج الجاهلية الاولى قسم قسم تفسيرونه علماء كرامو د تفسير القرآن نقل كړي دي منها مامر ومنها ما روى عن مجاهد وقتادة وابن ابى نجيح رحمهم الله چې د جاهلية اولى تګ د ښځې په خيال سره، او ستر ګي مړې مړې اړول او نرو ته په اشاره د ستر ګو كتل، او مقاتل رحمه الله وايي چې جاهلية الاولى دا ؤ چې ښځې به پورنى پر سر واچاوه او پرځان به يې نه راپيچى، نو د غاړي غاړګى، غوږوالي او غاړه به يې ټوله ښكاره وه، او مبرد رحمه الله وايي چې ښځو به هغه ځايونه چې ستر به يې پر دې لازم ؤ لڅ يې ساتى من وجهها وجسدها او سره د هغه تر ستر ګو به يې په نرو پسي كتل، او ابو عبيده رحمه الله وايي چې هغه ځايونه به يې لڅول چې د نرو شهوت را جلبوي، او بعض وايي چې د بروج معنى قصر ده يعني د خپل قصر څخه نرو ته ګوري.

**تنبيه:** د جاهلية اولى زمانه كوم وخت وه؟ ابن جرير، ابن ابى حاتم، الحاكم او بيهقي رحمهم الله له ابن عباس رضي الله عنهما څخه روايت كړى دى چې په منځ كي د نوح او ادريس عليهما السلام وه، وكان ذالک الزمان الف سنة، او ابن جرير له حكم بن عيينة رحمه الله څخه روايت كړى دى چې په منځ كي د آدم او نوح عليهما السلام اته سوه (٨٠٠) كاله وه، او ښځې د دغې زمانې ډېرې بدرنګې وې او نرينه ډېر ښائسته وه، او دې ښځو به نرو ته دعوت وركاوه چې زما سره جماع وكړه، او مبرد وايي چې د هغې زمانې ښځو به مېړه هم درلودى او معشوق هم، نو نصف اسفل يعني فرج يې د مېړه ؤ او نصف اعلى يې د معشوق ؤ يعني مچې به يې ځني اخستلې او پر ځيګر او تيو به يې لاس ورتېراوه.

**درويش وايي:** چې عجب عجب تفاسير روح المعاني او مظهري او روح البيان رانقل كړي دي، زما په نېز جاهليت اولى بېحايي، سپين ستر ګي، بې ستري، په ستر ګو اشارې او دعوت ؤ و زنى ته والله اعلم.

وَاَقِمْنَ الصَّلٰوةَ وَاٰتِيْنَ الزَّكٰوةَ وَاَطِعْنَ اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗ ط

او تاسي په ښه تعديل الاركان (كما هو معنى اقامة الصلوة) لمونځونه كوئ او زكوة وركوي، يعني كه مو د زكوة مال درلودى او فرمانبرداري كوئ د خداى ج يعني فيما امر به ونهى عنه او د رسول د خداى په حسن معاشرت كي او په امر ورلو كي، وذالك هو التقوىٰ الذي هو سبب وشرط لافضليتهن على نساء العالمين.

اِنَّمَا يُرِيْدُ اللّٰهُ لِيُذْهِبَ عَنْكُمُ الرِّجْسَ اَهْلَ الْبَيْتِ

**پوه سه:** چي دا كلام مستأنف عام دى لنساء النبي ﷺ وغيرهن من اولاده ﷺ كفاطمة و اولادها الحسن والحسين ﷺ، ولذالك اورد الضمير المذكر تغليبًا.

**پوه سه:** چي دا جمله تعليل ده د ماسبق يعني انما يريد الله سبحانه فيما امركن به ونهاكن عنه چي ستاسي څخه لېري كړي رجس يعني عمل د شيطان من الاثم والقبائح الشرعية والطبعية التي ليس فيها مرضات الله تعالى.

"اهل البيت" منصوب على النداء يعني يا اهل البيت.

**درويش وايي:** چي روح البيان وايي چي مراد له اهل البيت څخه هغه كسان دي چي جمع كړي يې وي بيت النبوة رجالاً ونساءً، وروسته يې ويلي دي چي: اهل البيت متعارف في آل النبي ﷺ من بني هاشم. نو دده پر تفسير په اهل البيت كي علي والحسن والحسين وامهما فاطمة ﷺ ونساء النبي ﷺ ټول داخل دي.

او اهل تشيع وايي چي اهل البيت خاص دى په فاطمة، وعلي وابنيه الحسن والحسين ﷺ پوري، او روح المعاني وايي چي الف ولام په البيت كي لپاره د عهد دي يا عوض د مضاف اليه څخه دى اى بيت النبي ﷺ، دى وايي چي مراد له بيت څخه بيت الطين والخشب لا بيت القرابة والنسب وهو بيت السكنى لا المسجد النبوي كما قيل، دى وايي: والظاهر ان المراد به نسائه ﷺ المطهرات ﷺ، دى وايي للقرائن الدالة عليه من الآيات السابقة واللاحقة، دى وايي چي عليه الصلوة والسلام له ليس بيت يسكنه فيه سوىٰ سكناهن، دى وايي وروى ذالك غير واحد اخرج ابن ابى حاتم وابن عساكر من طريق عكرمة عن ابن عباس ﷺ نزلت انما يريد الله الخ في نساء النبي ﷺ خاصة، او عكرمه ﷺ وايي كه څوك غواړي زه مباهله ورسره

کوم چي دا آيت په ازواجو کي د عليه الصلوة والسلام نازل سوی دی.
او ابن جرير او ابن مردويه له عكرمة رح چي ده وويل دا دي آيت په متعلق کي ليس بالذي تذهبون اليه (چي اذهان و هغه تک کوي كما مر من روح البيان) انما المراد بها نساء النبي ﷺ، وروى ابن جرير ايضًا ان عكرمة رض كان ينادي في السوق ان قوله تعالى انما يريد الله الآية نزل في نساء النبي ﷺ.

**سوال:** د ازواجو مطهراتو بيوت خو ډېر وه، نو بيت يې په آيت کي ولي مفرد راوړی؟

**ځواب:** بيوت د ازواجو مطهراتو په اعتبار د اضافت د عليه الصلوة والسلام بيت واحد.

**سوال:** په دمخه آيت کي يعني وقرن في بيوتكن خو بيوت جمع راغلی ؤ، نو د هغه سبب څه دی؟

**ځواب:** جمع په اعتبار د ازواجو مطهراتو ده يعني دوی پکښې او سېدې او دوی خو نهه وې.

**سوال:** ضمير د جمع مذكر يعنې عنكم ويطهركم د اراده سره د ازواج مطهراتو رض سره فقط ځرنګه سمون خوري؟

**ځواب:** روح المعاني وايي چي تذكير يې په اعتبار د لفظ د اهل دی، والعرب كثيرًا ما يستعملون صيغ المذكر في مثل ذالك نظرًا الى اللفظ كما في قوله تعالى خطابًا للسارة امرأة الخليل عليه السلام اتعجبين من امر الله (يعني قضاء الله چي جبرئيل او دده سره چي نوري ملكي وې ودې ته يې زېری د زوی وكړی، او دې ورته وويل چي زه خو د ځوانۍ راهسي وچه يم چي اوس مي عمر نيوي (۹۰) كاله دی، وهذا بعلي شيخًا، او دا مي مېړه دی يعني ابراهيم ؑ چي سال خورده سپين ږيری دی چي عمر يې يو سل ؤ شل (۱۲۰) كاله دی) رحمة الله وبركاته عليكم اهل البيت انه حميد مجيد، او بعض مفسران وايي چي مراد په آيت کي له اهل البيت څخه عليه الصلوة والسلام او ازواج مطهرات رض دواړه دي، او تذكير د ضمير يې اعتبار د تغليب د عليه الصلوة والسلام دی پر ازواجو مطهراتو رض.

**درويش وايي:** چي روح المعاني حسب عادته طويل كلام نور هم كړی دی، او مظهري ډېري اوږدې خبري كړي دي.

**وَيُطَهِّرَكُمْ تَطْهِيرًا ۝**

او تاسي يې پاكي كړلاست له نجاساتو څخه د ګنهو بالحفظ في الدنيا والمغفرة في الآخرة.

**پوه سه:** چي خدای ﷻ اشاره په دې آيت كي ودې ته وكړه چي دوی چي يې امر كړې يعني په اوامرو سابقه وو سره يعني وقرن في بيوتكن واقمن الصلوة الى اخيرها، او دوی يې نهي كړې يعني ولاتبرجن وغير ذالك او دوی ته يې وعده وكړه ددې لپاره چي اهل بيت د رسول د خدای نژدې نه سي و ګناه ته وليتصفوا بالتقوی، او د ذنوب لپاره يې لفظ رجس چي اصل معنی يې نجاست ده استعاره كړی او د تقوی لپاره يې لفظ د طهارت، ولي آبروی د ګناه كونكي داسي ګرځي لكه بدن چي په نجاست ككړ سي، او تقوی داره سړی له ګنهو څخه پاک لكه ثوب طاهر له اثر څخه د نجاست ظاهري، او هم دا سبب دی چي اثام او ارجاس مناسبت سره لري، امام اعظم رح وايي چي اوبه چي مستعملي سي لپاره د رفع د حدث او يا لپاره د ثواب لكه نفلي اودس چي ګنهونه په رژېږي، دی وايي چي دا مستعملي اوبه نجسي دي يعني شی په مردارېږي، كه څه هم ياران وايي چي طاهري دي مطهري نه دي يعني بل شی كه بدن وي او كه ثوب نه په پاكېږي.

**فائده:** چونكه روافض اهل البيت حصر بولي په علي، فاطمة والحسن والحسين ؓ كي، نو دوی په دغه آيت سره دليل وايي چي دا څلور نفره معصوم له ګناه څخه دي، نه ابوبكر او نه عمر او نه عثمان ؓ، او دوی دا هم وايي چي خليفه بالحق بعد رسول الله ﷺ علي رض دی او بيا حسن رض دی او بيا حسين رض ثم وثم، او دوی وايي چي ابوبكر او عمر او عثمان ؓ غصبًا خلافت د علي ؓ څخه وګرځاوه، او دوی دا هم وايي چي اجماع ددې څلورو ثم الى اثنى عشر پوري حجت دون اجماع غيرهم من الصحابة رض والتابعين رح الى غير ذالک من خرافاتهم المذكورة في كتبهم، او دوی دا هم وايي چي د امامت يعني خلافت لپاره عصمت شرط دی، نو چونكه ابوبكر، عمر او عثمان ؓ معصوم له ګناه څخه نه وه بالاجماع، نو دوی خلفاء نه وه؟

والجواب: عن هذه الخرافات اولاً دادی چي دا آيت خو مختص په علي او فاطمة و ابينهما پوري نه دي بلکې دا آيت په حق کي د امهات المؤمنين كما يدل عليه سياق الآية لكن علي وفاطمة وابينهما ﷺ داخل دي په حکم کي د امهات المؤمنين، وثانيًا ان الطهارة لاتدل علي العصمة لا مطابقة ولا تضمنا ولا التزاما.

ولي چي په آية الوضوء کي خدای پاک وايي: مَا يُرِيدُ اللَّهُ لِيَجْعَلَ عَلَيْكُم مِّنْ حَرَجٍ وَلَٰكِن يُرِيدُ لِيُطَهِّرَكُمْ وَلِيُتِمَّ نِعْمَتَهُ عَلَيْكُمْ لَعَلَّكُمْ تَشْكُرُونَ ۝ او دا ظاهره خبره ده او روافض هم په قائل دي چي د طهارت په او داسه عصمت نه ثابتيږي.

وثالثًا: عصمت شرط د امامت او خلافت نه بلکې دا روا ده بلکې واقع ده چي خدای پاک دي امامت غير معصوم ته ورکړي مع وجود المعصوم لکه چي خدای پاک ملک او امامت و طالوت ته ورکړی سره ددې چي نبي معصوم موجود وُ چي اشموئيل او داؤد عليهما السلام وه، قال الله تعالى: وَقَالَ لَهُمْ نَبِيُّهُمْ إِنَّ اللَّهَ قَدْ بَعَثَ لَكُمْ طَالُوتَ مَلِكًا قَالُوا أَنَّىٰ يَكُونُ لَهُ الْمُلْكُ عَلَيْنَا وَنَحْنُ أَحَقُّ بِالْمُلْكِ مِنْهُ وَلَمْ يُؤْتَ سَعَةً مِّنَ الْمَالِ قَالَ إِنَّ اللَّهَ اصْطَفَاهُ عَلَيْكُمْ وَزَادَهُ بَسْطَةً فِي الْعِلْمِ وَالْجِسْمِ وَاللَّهُ يُؤْتِي مُلْكَهُ مَن يَشَاءُ وَاللَّهُ وَاسِعٌ عَلِيمٌ ۝ والله اعلم بالصواب.

**درويش وايي:** چي روح المعاني په رد کي د قول د روافضو مفصل دلائل راوړي دي وفيما ذكرنا كفاية وان شئت مزيد التفصيل فارجع الى تفسير روح المعاني.... ع:.... آن به كه نامه را بدعاء مختصر كنم.

## وَاذْكُرْنَ مَا يُتْلَىٰ فِي بُيُوتِكُنَّ مِنْ آيَاتِ اللَّهِ وَالْحِكْمَةِ

او تاسي درپياد کړئ (دا جمله عطف ده پر اطعن الله ورسوله، او د منځ جملې تولي معترضي دي لپاره د علت بيانولو) هغه شی چي ستاسي په حجرو کي تلاوت کيږي، من آيات القرآن چي دا يو نعمت عظمی دی شکر يې لازم دی "والحكمة" چي احاديث نبويه ځني مراد دي چي وحي غير متلو يې بولي، او مقاتل رحمه الله يې داسي تفسير کړی دی چي مراد له حکمت څخه احکام القرآن ومواعظه دي، او بيضاوي وايي يعني اذكرن الكتاب الجامع بين الامرين وهو تذكير النعمة عليهن، حيث

جعلهن من اهل بيت النبوة و مهبط الوحي، او تاسي په ستر گو ليدل چي كاهي چي به عليه الصلوة والسلام ته وحي راتلې د سلسلة الجرس په ډول على ما في البخاري، د عليه الصلوة والسلام صورت به په ريږديدو سو او پر مخ به يې لكه ملغلري داسي خولې جاري سوې، چي دديې په ليدلو سره قوة د ايمان او حرص پر طاعت او باعثه كول ستاسي پر عمل كولو په امر د خداى ﷻ او رسول د خداى او انتهاء مانهى الله ورسوله عنه وتاسي فائده او متيقن كرځي دى.

# إِنَّ اللَّهَ كَانَ لَطِيفًا خَبِيرًا ۝

په تحقيق خداى پاك پر تاسي مهربان دى چي تاسي ته وعظ كوي او تعليم: ماينفعكن درته كوي، او خبر دى په هر هغه شي چي مناسب وي د نبوت سره دد او په دې هم خبر دى چي كومي ښځي صالح او مناسبي دي چي دده مبارك اهل بيت وګرځي، كريمه: اَلطَّيِّبَاتُ لِلطَّيِّبِينَ وَالطَّيِّبُونَ لِلطَّيِّبَاتِ.

بغوي رح وايي چي ازواجو د نبي ﷺ ده ته وويل يا رسول الله ذكر الله الرجال في القرآن ولم النساء بخير، نو په موږ كي يو د خير كار نسته چي موږ په هغه سره ذكر سو، او موږ پر دې بېرېږو چي زموږ طاعت لكه چي خداى ﷻ نه دي قبول كړي، فانزل الله تعالى هذه الآية.

# إِنَّ الْمُسْلِمِينَ وَالْمُسْلِمَاتِ وَالْمُؤْمِنِينَ وَالْمُؤْمِنَاتِ

بې شكه هغه نران او ښځي چي د خداى ﷻ او د رسول د حكم فرمانبرداره وي او خپل د كار تفويض يې و خداى ﷻ ته كړى وي او توكل يې پر خداى ﷻ وي، او هغه مؤمن نران وي او كه مؤمني ښځي چي تصديق يې پر ماجاء به رسول الله ﷺ كړى وي او خلق ددى له شره څخه په امن كي وي كه نر وي او كه ښځي:

# وَالْقَانِتِينَ وَالْقَانِتَاتِ وَالصَّادِقِينَ وَالصَّادِقَاتِ وَالصَّابِرِينَ وَالصَّابِرَاتِ

، او چي دوام پر طاعت د خداى ﷻ كوي كه نر وي او كه ښځي، او هغه څوك چي په قول او عمل كي صادق وي يعني په قول كي دروغ نه وايي او په عمل كي نفاق نه لري كه نر وي او كه ښځي، چي صبر يې كړى وي خداى ﷻ ته په مصائبو او امراضو كي يعني جزع او فزع نه كوي (چي دې ته صبر په شي كي وايي يعني لفظ د

صبر متعدي په فاء سره سي يعني الصبر في الشئ) او عمل په طاعت د خداى ج کوي که څه هم طاعات شاقه وي (دې ته په عربي صبر على الشئ يعني چي لفظ متعدي په کلمه د على سي يعني الصبر على الشئ) او د معاصيو او اتباع الشهوات څخه يې صبر کړى وي (چي دې ته صبر عن الشئ وايي يعني کلمه د صبر متعدي په عن سره سي چي صبر عن الشئ يې بولي) که نر وي او که ښځي.

وَالْخٰشِعِيْنَ وَالْخٰشِعٰتِ وَالْمُتَصَدِّقِيْنَ وَالْمُتَصَدِّقٰتِ

او چي تواضع او کميني لري تکبر او خودبيني نه لري که نر وي او که ښځي، او صدقه کونکي وي يعني که يې مال درلودى د هغه مال څخه تصدق فرضًا ونفلاً ابتغاء مرضات الله که نر وي او که ښځي.

وَالصَّآئِمِيْنَ وَالصّٰٓئِمٰتِ وَالْحٰفِظِيْنَ فُرُوْجَهُمْ وَالْحٰفِظٰتِ

او چي روژې نسي که فرضي وي او که نفلي، که نر وي او که ښځي، او هغه څوک چي ساتي خپل اعضاء مخصوصه يعني مابين الفخذين له زنى څخه، نو که نر وي او که ښځي.

وَالذّٰكِرِيْنَ اللّٰهَ كَثِيْرًا

يعني چي ذکر د خداى جل جلاله کوي په زړو او په ژبو سره ډېر، که نران وي او که ښځي، قال البغوي رح قال مجاهد رح لايكون من الذاكرين الله كثيرًا حتى يذكر الله قائمًا وقاعدًا ومضطجعًا يعني خداى جل جلاله يې قلبًا يا لسانًا په يادوي.

**درويش وايي:** چي مظهري رح چي ځان لوى صوفي بولي وايي دا آيت په مرتبه د فناء القلب واستغراق القلب في الذكر وحصول الحضور الدائم پيدا کېږي انتهى، پر دې تفسير ډېر مسلمانان او مسلمات ښځي د ذاكرين كثيرًا والذاكرات کثيرًا خارج ګرځي، والحق ما قال البغوي رح من صلى الصلوات الخمس فهو داخل في الذاكرين الله كثيرًا والذاكرات.

وَّالذّٰكِرٰتِ اَعَدَّ اللّٰهُ لَهُمْ مَّغْفِرَةً وَّاَجْرًا عَظِيْمًا ﴿۳۵﴾

خداى ج اراسته کړې ده دوى لره بخښنه د بعض صدر منهم من الذنوب. او لوى ثواب پر طاعت د دوى.



Scanned by CamScanner

**پوښتنه:** خدای ﷻ په دې آيت کې نران او ښځې دواړه په اوصاف مذکوره وو کې ذکر کړي دي او په اعد الله لهم ضمير د مذکر راوړی فقط، يعني داسې يې نه وويل اد عد الله لهم ولهن مغفرة آه، حکمت يې څه دی؟

**ځواب:** دا آيت مبني پر تغليب د ذکور دی پر اناثو، والتغليب باب واسع في لسان العرب کما يقال للوالد ولوالدة، والدين بالتذکير، وللشمس والقمر، قمرين، وللاب والام الابوين، ولايخفى السر في التغليب في الامثلة المذکورة. اما الاول فلتضيل المذکر على الانثى، واما الثاني فلان القمر مذکر والشمس مؤنث سماعي وکذا الثالث.

**درويش وايي:** چې عليه الصلوة والسلام د جاهليت په وخت کې يعني چې دی نبي نه ؤ زيد بن حارثه يې د عکاظ په بازار کې رانيولی ؤ او بيا يې ازاد کړی ؤ او خپل زوی يې ګرځولی ؤ کمامر، دا زيد په رنګ تور ؤ او پزه يې هم پيټه وه، نو عليه الصلوة والسلام چې زينب بنت جحش بن رباب الاسدي چې د عليه الصلوة والسلام د عمه لور وه يعني اميمة بنت عبد المطلب، مرکه وکړه يعني لپاره د زيد بن حارثه اول د دې يعني د زينب خيال دا سو چې عليه الصلوة والسلام مې د ځان لپاره غواړي، نو راضي سوه، وروسته چې ور معلومه سوه چې د زيد بن حارثه لپاره يې مرکه راته کړې ده، او زينب ډېره ښائسته ښځه وه ابا يې وکړه او د دې ورور عبد الله بن جحش هم منع وکړه، او دې و عليه الصلوة والسلام ته وويل چې زه ستاد عمه لور يم او د لوړ خاندانه ښځه د قريش يم، زه په نکاح د زيد بن حارثه چې ستا ازاده شده مريی دی او په رنګ هم تور دی څرنګه راضي سم، نو دا آيت نازل سو.

**وَمَا كَانَ لِمُؤْمِنٍ وَّلَا مُؤْمِنَةٍ إِذَا قَضَى اللَّهُ وَرَسُولُهُ أَمْرًا**

نه ښايي مؤمن لره چې مراد ځني عبد الله بن جحش دی، او نه مؤمنې لره چې مراد ځني زينب بنت جحش ده، چې فيصله او حکم وکړي خدای او رسول د خدای د يو کار چې مراد ځني نکاح د زينب مع زيد بن حارثه.

**پوه سه:** چې قضى خو عليه الصلوة والسلام کړې وه او ذکر د نوم د الله تعظيم ده حکم د عليه الصلوة والسلام ده للتنبيه على ان قضائه ؐ قضاء الله ﷻ کما ان طاعة رسول الله ﷺ طاعة الله ﷻ.

اَنۡ یَّکُوۡنَ لَهُمُ الۡخِیَرَۃُ مِنۡ اَمۡرِهِمۡ ؕ

چي دوی لره دي اختيار وي په خپلو کارو کي يعني چي څرنګه چي ددوی زړه وغواړي هغسي به کوي بل يجب عليهم ما امر الله ورسوله به، بلکي پر دوی واجب ده چي خپل اختيار دي تابع د اختيار د خدای او د رسول وګرځوي.

**فائده:** جمع د ضمير د لهم اول، لوقوع المؤمن والمؤمنة چي دواړه لفظه نکره په سياق کي د نفي واقع سوی کما هو القانون من ان النکرة اذا وقعت في سياق النفي تعم، او جمع د ضمير د لهم ثاني که څه مراد ځني خدای او رسول دي بلکي يوازي رسول کمامر لپاره د تعظيم ده.

**فائده:** قراء د کوفې يکون په ياء وايي که څه هم فاعل يعني الخيرة چي مؤنث دی د جهته د فصل په لهم سره بينهما او نور قراء تکون په تاء وايي الفوقانية لاجل تانيث الخيرة.

**فائده:** خيرة او اختيار په يوه معنی دي.

**مسئله:** ددې څخه دا معلومه سوه چي امر مطلق لپاره د وجوب دي.

وَمَنۡ یَّعۡصِ اللّٰهَ وَرَسُوۡلَهٗ فَقَدۡ ضَلَّ ضَلٰلًا مُّبِیۡنًا ؕ

که څوک عصيان وکړي له امر څخه د خدای او د رسول دده ويعمل برايه، او په کشف الاسرار کي وايي ومن يعص الله يعني خالف القرآن ورسوله فخالف السنة آه.

**درويش وايي:** چي دا تفسير که څه هم صحيح في نفسه دی لکن ددې مقام سره مناسب نه دی فافهم.

"فقد ضل ضلالاً مبيناً" نو هغه ګمراه سو په ضلال ښکاره سره، نو که عصيان پر طريقه د رد او انکارو نو ضلال يې ضلال د کفر دی او که عصيان يې د فعل څخه ؤ مع قبول الامر واعتقاد الوجوب نو ضلال يې د فسق دی، بغوي رح وايي چي دا آيت چي نازل سو او زينب بنت جحش او ددې ورور عبد الله بن جحش واورېدی رضيا بذالک، نو زينب او ددې ورور اختيار و عليه الصلوة والسلام ته وسپاره، نو عليه الصلوة والسلام يې د زينب نکاح د زيد رض سره وتړل فدخل بها او عليه الصلوة والسلام مهر او نفقة (۱۰) ديناره او شپېته (۶۰) درهمه او يو لوی پوړنی او يو قميص او پای جامه او يو د کور پوړنی، او پنځوس مده غنم او دېرش کاسې

خورما ورواستول، ډېره زمانه زینب په نکاح کي د زید بن حارثه پاته وه لکن عیال نه سو ځني پیدا، او صحیح داده چي یو زوی اسامة بن زید ځني پیدا سو، یوه ورځ رسول الله ﷺ د یو کار لپاره د زید بن حارثه کورته ورغلی ؤ، نو سترګي یې پر زینب ولګېدلې چي پوړنی یې پر سر او قمیص یې اغوستی ؤ، وکانت بیضاً جمیلة من اتم نساء قریش، فوقعت في نفسه واعجب حسنها نو علی الفور علیه الصلوة والسلام داسي وویل سبحان الله مقلب القلوب، او بیرته ووتی زید چي کورته راغلی ماینې یې د علیه الصلوة والسلام د راتګ او د علیه الصلوة والسلام د قول قصه ورته وکړه، نو زید ﷺ پوه سو چي د علیه الصلوة والسلام زینب خوښه سوې ده، نو خدای ﷻ علی الفور د زید په زړه کي نفرت د زینب پیدا کړی، او زید علیه الصلوة والسلام ته دستي راغلی چي زه زینب طلاقوم، رسول الله ﷺ ورته وویل چي ولي یې طلاقوې څه عیب دي پکښې ولیدی، زید ورته وویل لا والله ما رئیت منها شیئاً الا خیراً لکن پر ما ځان کنجوي او ترفع کوي چي زه قریشه یم او ته مریی وې، او په ژبه مي هم زهیروې او په خوله مي هم ډېر نه کوي، نو علیه الصلوة والسلام ورته وویل امسک علیک زوجک واتق الله في امرها (خپله ماینه دي وساته او طلاق مه ورکوه او د خدای څخه وبېرېږه په کار د طلاق د دې) رواه ابن جریر عن ابي زید، فانزل الله في ذالک.

## وَإِذْ تَقُولُ لِلَّذِيٓ أَنْعَمَ ٱللَّهُ عَلَيْهِ

یعني واذکر هغه چي تا وویل و هغه چا ته چي خدای ﷻ احسان کړی دی د هغه سره چي هدایت یې د اسلام ورته کړی دی او ستا مصاحبت یې ورنصیب کړی دی او ستا په زړه کي محبت او رحمت دده سره پیدا کړي حتی په تبنی ستا سرشال سو "وانعمت علیه" او تا هم احسان ورسره وکړی بالانفاق والاعتاق واداء مهر زوجته ونفقتها کما مر عنقریب.

**درویش وایي:** چي حاکم ؒ د انس ﷺ څخه روایت کړی دی چي زید بن حارثه ﷺ شکایت وکړی من زینب بنت جحش، نو علیه الصلوة والسلام ورته وویل امسک علیک اهلک. فقیر وایي چي دا روایت ډېر زیبا دی تر روایت د ابن جریر د ابی زید څخه چي عنقریب تېر سو کما لایخفی علی من تأمل في شانه ﷺ فتدبر.

# وَأَنْعَمْتَ عَلَيْهِ أَمْسِكْ عَلَيْكَ زَوْجَكَ وَاتَّقِ اللَّهَ

او تا هم احسان ورسره کړی دی بالانفاق والاعتاق، واداء مهر زوجته ونفقتها کما مر عنقریب ''امسک علیک زوجک'' یعني زینب بنت جحش، او د خدای ﷺ څخه ویرېږئ في امرها یعني مه یې طلاقوه فان الطلاق من ابغض المباحات.

# وَتُخْفِي فِي نَفْسِكَ مَا اللَّهُ مُبْدِيهِ وَتَخْشَى النَّاسَ

**پوهه:** چي امسک علیک آه مقولة ده تقول وجملة تخفي في نفسک آه معطوف دی پر تقول باندي، والمعنی تا پټ ساتلی دی په زړه کي هغه شی چي خدای ﷻ به یې ښکاره کړي یعني که زینب زید بن حارثه رض طلاقه کړي زه به یې نکاح کړم.

او ته ېرېږې له خلکو څخه چي دوی به پر ما ملامتیا وایي (او یا په دا وایي چي محمد د زوی مایڼه په نکاح کړه، او یا به دا وایي چي ده زید بن حارثه امر کړی چي مایڼه دي طلاقه کړه ''وتخش الناس'' عطف دی علی تخفی)

**درویش وایي:** چي هغه تفسیر چي قتاده رح کړی دی چي د علیه الصلوة والسلام دا خوښه وه چي زید یې طلاقه کړي انتهی د شان عالي سره د علیه الصلوة والسلام مناسب نه دی یعني چي په خوله دي ورته وایي مه یې طلاقوه او په زړه کي یې دا خوښه وي چي طلاقه یې کړي کما لایخفی علی المتأمل.

بغوي رح وایي چي سفیان بن عیینة د علي بن زید بن جدعان څخه روایت کړی دی چي زما څخه سوال وکړي علي بن الحسین زین العابدین رض چي الحسن څرنګه بیان کوي په تفسیر کي د دې آیت وتخفی في نفسک الخ. ده راته وویل چي الحسن وایي چي زید بن الحارثة رض و علیه الصلوة والسلام ته راغلی، فقال یا نبي الله اني ارید ان افارق زینب، نو علیه الصلوة والسلام ته دې خبري خوند ورکړی او داسي یې ورته وویل امسک علیک زوجک واتق الله، علي بن الحسین رض ورته وویل چي داغسي نه ده لکه الحسن چي وایي بلکي خدای پاک علیه الصلوة والسلام د مخه خبر کړی ؤ چي زینب بنت جحش ستا د ازواجو څخه ګرځي او دا هم خدای پاک ورته وایي چي زید به یې ژر طلاقه کړي، نو علیه الصلوة والسلام چي زید ته وویل امسک آه، خدای پاک وده ته عتاب ورکړی، او دا یې ورته وویل چي

تا ولي ورته وويل امسک علیک آه، او سره ددې چي ما خوته خبر کړې چي زینب په ستا د ازواجو ګرځي، وهذا هو الاليق والاولى بحال الانبياء ﷺ او هم دا توجيه برابره د قرآن د آيت سره لان الله تعالى اعلم ان يبدي ويظهر ما اخفاه ولم يظهر الله غير تزويجها، فقال زوجناکها، نو که ما اخفى رسول الله ﷺ محبتها او نکاحها لو طلقها زيد لکان يظهر الله ذالک.

**سوال:** رسول الله ﷺ چي خدای ﷻ خبر کړی ؤ چي زینب به ستا له ازواجو څخه ګرځي، نو ده دا خبره ولي پټول؟

**ځواب:** استحياءً ان يقول يعني لزيد التي تحتک وفي نکاحک ستکون امرئتي، قال البغوي رحمه الله ذالک توجيه حسن.

**درویش وایي:** چي والیق بحال سید البشر ﷺ، نو هغه خبره چي مظهري کړې ده وان کان القول الاخر وهو انه اخفى محبتها او نکاحها لو طلقها زید لايقدح في حال الانبياء لان العبد غير ملوم على مايقع في قلبه فان مثل هذه الاشياء مالم يقصد لا اثم فيه لان الود وميل النفس الى شيئ من طبع البشر انتهى ليس بشئ، ولي دا دوه شيان که څه هم زما ؤستا لپاره اثم نه دي لکن داسي وینا په شان کي د سید نوع البشر ﷺ بې حیایي ده، قال الله تعالى: مازاغ البصر وما طغى ولقد رئى من آيات ربه الكبرى، او سره ددې چي مظهري په تفسر کي د والذاکرين كثيرًا الخ داسي عبارت راوړی دی: قلت وذالک لايتصور الا بعد فناء القلب واستغراق القلب وحصول الحضور الدائم انتهى.

**درویش وایي:** چي دا به نو څوک وي خیر البشر ﷺ په درجه اعلى کي دی او سره ددې احوالو يعني فناء القلب به څرنګه محبت او وداد د زوجة الغير يا حب د طلاق د هغې به په مبارک زړه کي چي له انوارو څخه د توحید ډک وي ور وګرځي؟.

**درویش وایي:** چي روح المعاني د غه قصه چي علیه الصلوة والسلام د زيد بن حارثه رضی الله عنه کورته ورغلی زینب رضی الله عنها یې ولیدل داسي یې وویل: سبحان خالق النور تبارک الله احسن الخالقين، نو علیه الصلوة والسلام بیرته ولاړی او زید بن حارثه چي راغلی مابني یې دا قصه ورته وکړه، زید ورته وویل لعلک وقعت في قلب رسول الله ﷺ الى اخيره کما مر. فقال صاحب روح المعاني مما لايخفى على المتتبع

يعني بطلانه، وفي شرح المواقف ان هذه القصة ممايجب صيانة النبي ﷺ عليه من مثله انتهى، وقال القاضي عياض رحمه الله في كتابه الشفا، لاتسترب (ته شک مه کوه) في تنزيه النبي ﷺ عن هذا الظاهر انه بأمر زيد بامساكها وهو يجب تطليقه اياها كما ذكره جماعة من المفسرين الى اخير ما قاله القاضي، په پای کي روح المعاني وايي ما ذكرناه عن زين العابدين رضي الله عنه، چي د مخه فقير ذكر كړه.

**درويش وايي:** چي تاريخ اسلامي خبري كوي چي زيد بن حارثه ازاد شده مريى د عليه الصلوة والسلام ؤ او دى اول سړى دى له موالي څخه چي ايمان يې راوړى دى، وكان رسول الله ﷺ يحبه ويحب ابنه اسامة بن زيد، زيد بن حارثه رضي الله عنه په غزاء كي د بدر شامل ؤ او په غزاء كي د خندق هم موجود ؤ، او په غزاء كي د حديبيه هم حاضر ؤ، او عليه الصلوة والسلام زيد بن حارثه رضي الله عنه خليفه وګرځاوه پر مدينه باندي چي عليه الصلوة والسلام غزاء ته د بني المصطلق روان سو، او زيد بن حارثه رضي الله عنه يې په اوو (۷) سرايااوو كي امير ټاكلى دى.

خپل ځان ته نصيحت: عبيده ډېر احتياط كوه چي په دې درياب كي د قصې د زيد بن حارثه رضي الله عنه او د زينب رضي الله عنها او بيا په نكاح كي د عليه الصلوة والسلام د دې راتګ ډېري كښتني د آب بازانو غرقي سوي دي، او په جناب كي د خير البشر ﷺ ډېر له ادبه او احترام څخه كار اخله.... بيت:

از خدا خواهم توفيق ادب..... بى ادب محروم گشت از فضل رب
دا تفسير دى چي پاتېږي وه دنيا ته..... د ادب لاريه معلومه سي هر چاته

## وَاللّٰهُ اَحَقُّ اَنْ تَخْشٰىهُ ؕ

دا جمله حال ده له فاعل څخه د تخشى يعني والحال چي خداى ډېر حق دار دى ددې چي ته ځني وېرېږې.

**پوه سه:** چي عمر، او ابن مسعود او عائشه رضي الله عنها وايي ما نزلت على رسول الله ﷺ آية هي اشد من هذه الآية، او مسروق وايي چي عائشه رضي الله عنها وويل كه يو شى د وحي څخه عليه الصلوة والسلام پټولاى دا آيت به يې پټ كړى واى، وتخفى في نفسك الى اخيرها، بغوي رحمه الله وايي چي د دې آيت مراد دا نه دى چي عليه الصلوة والسلام نو د مخه د خداى ﷻ څخه نه ېرېدى، ولي چي په صحيح حديث كي راغلي دي چي

عليه الصلوة والسلام وويل "اني اخشاكم واتقاكم" بلکې ټوله انبياء کرام عليهم السلام
په شان کې د دوی خدای جل جلاله يخشونه ولا يخشون احدًا الا الله. لكن لما ذكر الخشية
من الناس ذكر ان الله احق بالخشية في عموم الاحوال وفي جميع الاشياء وفي جميع
الازمان، بعض مفسرين وايي چې ظاهره داده چې اهل جاهليت تزويج د ماينې د
متبنٰى حرام ګاڼه. نو خدای جل جلاله وحي وکړې و عليه الصلوة والسلام ته چې زيد چې
ستا متبنٰى دی ماينه زينب په نکاح کړه، چې زيد طلاقه کړه، لكن عليه الصلوة
والسلام و دې کار ته تلوار ونه کړی، يعني چې زيد ورته وويل چې زينب پر ما ترفع
کوي په سبب د دې چې دا قريشه ده او زه ازاد شده مريی يم، نو زه يې طلاقوم کديې
مبادرة کولای ورته ويلي به يې وای چې ستا خوښه ده لکن دې کار ته ځنډ ورکړه.
امسک عليک زوجک واتق الله مخافة طعن الاعداء، نو خدای جل جلاله عتاب په دغه
ورته وکړی، وتخشى الناس، وهذا توجيه وجيه فافهم.

فَلَمَّا قَضٰى زَيْدٌ مِّنْهَا وَطَرًا
قال قتاده رضي الله عنه اى طلقها.

**پوهه**: چې اصل د وطر حاجت د وقضى الحاجة كناية عن الطلاق كما قال
الفقهاء، اذا قال الرجل لزوجته لاحاجة لي فيک فهو طلاق كناية، او مبرد وايي
چې وطر محبت او شهوت ته وايي، او ابن عباس رضي الله عنه وايي چې تفسير د حاجت په
دې جماع ده فالمعنى انه (يعني زيد) لم يبق له بها (اى زينب) حاجة الجماع
فطلقها، او په بحر کې وايي نقلاً عن البعض انه رضي الله عنه لم يمكن من الاستمتاع بها،
وروى ابو عصمة نوح بن ابى مريم رفعه اليها (اى الى زينب رضي الله عنها) دا وايي چې ما
زيد له ځانه نه منع کاوه يعني عن الجماع غير ان الله جل جلاله منعني منه (يعني خدای
زه منع کړم د ده څخه يعني د ده له وطي څخه) نو پر دې تقدير د پر ژبا تفسير د
قضاء الوطر په طلاق سره يعني بالكناية، لكن په آيت کې تقدير سته. فلما قضى
زيد منها وطرًا اى طلقها كمامر وانقضت عدتها وهذا هو المقدر، زيد رضي الله عنه وايي
چې د زينب عده چې تېره سوه، قال رسول الله صلى الله عليه وسلم لزيد رضي الله عنه اذهب فاذكرها علي
(يعني ورو سته په طور د مرکې زما د خوا) زيد رضي الله عنه راهي سو حتى چې زينب رضي الله عنها ته
ورغلی په داسې حال کې چې دې اوړه خميرول، زيد رضي الله عنه وايي چې ما چې زينب

وليدل حين علمت ان رسول الله ﷺ ذكرها عظمت اى زينب في صدري زما په زړه كي نو ما شاورو وه كرخول او شا ته روان سوم او دې ته مي وويل يا زينب ارسلني رسول الله ﷺ تا غواړي، زينب راته وويل چي زه نه ورځم تر څو چي د خداى امر نه وي سوى، نو دا پر لمانځه ودرېدل نو دا آيت نازل سو: فلما قضٰى زيد منها وطرًا الى اخير الآية، هذا ماذكره البغوي رحمه الله، نو زينب د عليه الصلوة والسلام كورته ورغله.

وفي التفسير الحسيني: سيد عالم بعد از نزول آيت بخانه زينب آمد بى دستورى يعنى عادت مردم كه خطبهٔ باشد وعقد نكاح زينب گفت بى خطبه بى گواه، آنحضرت فرمود الله المزوج و جبرئيل الشاهد كما يدل عليه قوله.

## زَوَّجْنٰكَهَا لِكَيْ لَا يَكُوْنَ عَلَى الْمُؤْمِنِيْنَ حَرَجٌ

موږ په نكاح دركړه تاته دا يعني زينب رضي الله عنها، يعني ددې لپاره ماتاته تزويج د زينب دروكړى چي دا په دمخه كي ماينه د زيد بن حارثه رضي الله عنه وه چي ستا متبنّٰى ؤ، چي پر مؤمنانو تنگي رانسي.

تاريخ د نكاح د زينب رضي الله عنها د ذوالقعدة مياشت وه، څلورم كال د هجرت ؤ پر صحيح روايت او د زينب عمر پنځه دېرش (۳۵) كاله ؤ، له دې كبله له حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دى چي زينب به فخر كاوه پر نورو ازواجو مطهراتو د عليه الصلوة والسلام او دې به ويل چي ستاسي تزويج كونكي ستاسي اقارب وه وزوجني الله من فوق سبع سمٰوات، انس رضي الله عنه وايي چي رسول كريم ﷺ دومره مهماني د خلكو جوړه كړه چي خپل په مخنيو نكاحو كي يې هيڅ كله دومره مهماني نه وه جوړه كړې په طول كي د ورځي، خلك يې په ډوډى او غوښو ماړه كړه او خلكو چي به ډوډى وخوړل وتل به له حجرې څخه چي زينب هم په داغه حجره كي وه وذالك قبل نزول الحجاب، دوه كسه ناست وه وروسته تر ډوډى مجلس يې سره كاوه، نو عليه الصلوة والسلام د خوني څخه ووتى تاچي دا دوه خلك به هم پوه سي او ولاړ به سي، نو پر حجراتو د نورو ازواجو مطهراتو رضي الله عنهن به گرځېدى عليه الصلوة والسلام به دوى ته سلام وايه دوى به هم سلام وايه، ازواجو به ورته ويل كيف وجدت اهلك، انس رضي الله عنه وايي چي زما نه دي په ياد چي ما

عليه الصلوة و السلام ته وويل چي هغه دوه کسه و وتل که بل چا عليه الصلوة و السلام خبر کړی، نو عليه الصلوة و السلام راهي سو د حجرې پر خوا. انس ﷺ چي د عليه الصلوة و السلام د لسو کالو خادم وُ وايي چي زه هم په پسې وم چي حجرې ته ورسم لکن عليه الصلوة و السلام پرده واچول بيني وبينه ونزل آية الحجاب. راوي وايي چي زينب به عليه الصلوة و السلام ته وويل چي په ما کي درې خاصيته موجود دي چي ستا په هيڅ زوجه کي نه دي موجود (١) جدي وجدک واحد يعني عبد المطلب (٢) انکحينک الله (٣) وان السفير و الشاهد جبرئيل[٣].

**پوه سه:** چي مراد له سفارت څخه د جبرئيل[۴] سفارت د ده دی بين الله وبين رسولهﷺ والا فالسفير بين زينبﷺ وبين رسولهﷺ هو زيد زوجها السابق کما مر في القصة فافهم.

## فِيٓ أَزْوَٰجِ أَدْعِيَآئِهِمْ

، په ماينو کي د متبٰنی (اعياء جمع د دعی ده ای المتبٰنی) يعني چي د متبٰنی ماينه روا ده نکاح يې و مالک ته د متبنٰی که څه هم متبنٰی دخول په کړی وي، يعني وطي يې ورسره کړي وي. لکن ماينه د زوی و پلار ته نه ده روا. له دې آيت څخه دا معلومه سوه چي حکم د رسول او د امت دده سره يو دی مالم يقم دليل على تخصيص الحکم بالنبي لکه تزويج د فوق الاربعة ماينو فانه مختص برسول اللهﷺ بدليل خارجي ولايکون ولايجوز للامة ذالک.

## إِذَا قَضَوْا۟ مِنْهُنَّ وَطَرًا ۚ وَكَانَ أَمْرُ ٱللَّهِ مَفْعُولًا ۝

''اذا قضوا'' ای الادعياء ''منهن'' د دې زوجاتو خپل حاجت يعني طلاق يې کړئ، او دی امر د خدای ﷻ او قضاء دده کېدونکې لامحالة لکه تزويج د زينب ﷺ زوجة متبنٰی النبيﷺ مع رسول اللهﷺ.

## مَّا كَانَ عَلَى ٱلنَّبِيِّ مِنْ حَرَجٍ فِيمَا فَرَضَ ٱللَّهُ لَهُۥ ۖ

نسته پر نبي باندي تنګي په هغه شي کي چي خدای ﷻ تقسيم کړي وي او اندازه کړي يې وي من عدد النساء، وقيل معناه فيما احل الله له.

**پوه سه:** چي حرج اسم د کان او کلمة د من زائده ده لاستغراق النفي.

سُنَّةَ اللّٰهِ فِي الَّذِيْنَ خَلَوْا مِنْ قَبْلُ ؕ

طريقه د خداى جل جلاله ده (دا لفظ مصدر يعني مفعول مطلق د فعل محذوف دى اى سن الله سنة او يا منصوب په نزع د خافض يعني حرف كاف دى اى كسنة الله) په هغو كسانو كي چي د مخه تېر سوي دي يعني من الانبياء الماضيين، او كلبي رح وايي چي مراد ځني داؤد ع دى حيث جمع بين زوجاته وبين المرئة التي هواها وقصة مشهورة فكذالك جمع بين محمد ﷺ وزينب رض انتهى۔

**درويش وايي:** چي له دي توجيه ځخه اباء كوي لفظ د الذين خلوا بصيغة الجمع، ولي چي داؤد عليه السلام خو يو نبي ؤ چي جمع يې وكړه، او بعض مفسرين وايي چي مراد كثرت د ازواجو دى لكه د داؤد او سليمان عليهما السلام.

وَكَانَ اَمْرُ اللّٰهِ قَدَرًا مَّقْدُوْرَا ۨ ﴿۳۸﴾ ۙ

او ده قضاء الهي كېدونكي لامحالة.

**فائده:** مقدورا صفت دى د قدرًا للتاكيد والمبالغة ولهذا قلت في الترجمة لامحالة او دا توصيف لپاره د مبالغې دى په عربي ژبه كي مشهور دى نحو ظل ظليل وداهية دهيا وليل الليل، قانون هذه المبالغة، له يو لفظ ځخه چي مشتق جوړ سي او بيرته هغه لفظ په موصوف سي فائده يې مبالغه ده. ومن هذا القبيل قولهم في شدة المعركة حجرًا محجورًا فليكتب هذه الفائدة بمداد الذهب على قرطاس الاذهان۔

الَّذِيْنَ يُبَلِّغُوْنَ رِسٰلٰتِ اللّٰهِ وَيَخْشَوْنَهٗ وَلَا يَخْشَوْنَ اَحَدًا اِلَّا اللّٰهَ ؕ

هغه كسان چي رسوي يعني تر خلكو پوري رسالات د خداى ج (يعني لكه ته يا رسول الله ﷺ چي له خدايه بېرېږې فيما امرك الله به ونهاك عنه)

**بوه سه:** چي دا موصول صفت دى د "للذين خلوا من قبل" يا اصح منصوب دى په حذف د اعني، يا مرفوع دى يعني هم الذين۔

وَكَفٰى بِاللّٰهِ حَسِيْبًا ﴿۳۹﴾

با زائده ده لان كفى متعدي بنفسه او فائده يې تاكيد دى او حسيبًا فعيل دى په معنى د فاعل اى محاسبًا فينبغي ان لايخشى الا منه.

**درویش وايي:** چي په اسئله مقحمة کي (چي نوم د يو تفسير دی) دا سوال کړه سوی دی ولايخشون احدًا الا الله چي د دې صحت به څرنګه توجيه سي؟ سره د دې چي د موسٰی ﷺ لکړه چي په کوه طور کي مار سوه يعني په ابتداء کي د رسالت د ده، دی څنې وبېرېدی حتی چي خدای ﷻ ورته وويل لاتخف آه، وقال يعقوب ﷺ اني اخاف ان يأکله الذئب، کذالک خاف نبينا ﷺ حتی قيل له (والله يعصمک من الناس) والجواب عنه چي د آيت معنی داده چي دوی عقيده نه لري چي يو شی د مخلوقاتو څخه بـه استقلالاً يعني له مشيت او ارادې د خدای ﷻ استقلالاً ضرر ورسوي چي دوی چي پر دې علم لري چي کارونه ټول په قضاء د خدای ﷻ دي. نو مراد په آيت کي لـه خوف څخه خوف د عقيدې دی او د علم او يقين د لاخوف البشرية الذي من خواص البشرية ونتائج الحيوانية فافهم.

**فائده:** درويش وايي چي مسواک وهل، عطر لګول، نکاح کول وغيرها من السنن الانبياء عليهم السلام دی، او موږ داسي عبادت نه لرو چي له زمانې څخه د آدمؑ دي مشروع نه وي تر اخيره پوري د زمانې ثم تستمر في الجنة الا الايمان والنکاح.

**مسئله:** مؤمن بايد سعي وکړي چي ډېره ښائسته ماينه په نکاح کړي تاچي د نورو ښځو کتل بالشهوة والفرج بالزنی محفوظ وي ... شيخ سعديؒ وايي:

زن خـوب فـرمان بر فارسا ...... کند مـرد درويش را بادشاه
کراخانه آباد وهمخوا به دوست ...... خدا را برحمت نظر سوی اوست
چو مستور باشد زن خوب روی ...... بديدار او در بهشت است شوی

## مَا كَانَ مُحَمَّدٌ أَبَآ أَحَدٍ مِّن رِّجَالِكُمْ

يعنی ليس محمد ﷺ ابا لزيد بن حارثهؓ حتی يحرم عليه نکاح زوجته زينبؓ.

**سوال:** د رسول الله ﷺ د يوه زوی نوم قاسم د بل دا طيب او د بل دا طاهر وُ چي دا درې سره له بطن مبارک څخه د خديجة الکبريؓ وه، او بل ابراهيم وُ چي له بطن څخه د مارية قبطيه وُ؟

**ځواب:** رجل هغه چا ته وايي چي د بلوغ و سرحد ته رسېدلی وي او دا معدوده زامن خو د عليه الصلوة والسلام په زمانه کي د طفوليت وفات سوي دي، رجوليت وخت ته نه دي رسېدلي.

**پوښتنه:** امام حسن او امام حسين رض خو هم عليه الصلوة والسلام خپل زامن بللي دي، ولي عليه الصلوة والسلام د حسن رض په باره كي وويل ابني هذا سيد آه او دا دوه خو زماني ته د رجوليت رسېدلي دي؟

**ځواب:** اطلاق د زوى پر لمسي خو مجاز دى، والمراد في الآية الابن حقيقية.

## وَلٰكِنْ رَّسُوْلَ اللّٰهِ وَخَاتَمَ النَّبِيّٖنَ ؕ

او هر رسول كه څه هم اب د امت دى لكن لا من حيث النسب حتى يحرم عليه مايحرم بالنسب بل هو اب من حيث الشفقة والرحمة والشفاعة.

**فائده:** په اسلام كي د مؤمن دا شرط نه دى چي سړي ته به د عليه الصلوة والسلام اب وُ جد معلوم وي مثلاً محمد بن عبد الله بن عبد المطلب بن هاشم الخ، بل يشرط معرفة اسمه الشريف المشهور وهو محمد مصطفى ﷺ لا يشترط اسمائه الاخر، لكه حامد، احمد، محمود، بشير، نذير وغيرها حتى قيل ان لرسول الله ﷺ الف اسم كما ان له تعالى مجده الف اسم.

**فائده:** لفظ محمد څلور حرف دي لكه د لفظ الله چي څلور حرفه دي يعني چي په دواړو كي مدغم و مدغم فيه پر يوه حرف حساب سي.

**فائده:** مُحَمَّدٌ رَّسُوْلُ اللّٰهِ دوولس (۱۲) حروف دي لكه لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ چي دوولس حروف دي، او داغه رنګه ابوبكر الصديق، عمر بن الخطاب، عثمان بن عفان او علي بن ابى طالب، ټوله دوولس حرفه دي، رضى الله تعالى عن مسما تلك الاسماء الشريفة، وقد جاء في الحديث من ولد له ولدًا فسماه محمدًا حبًا لي وتبركًا باسمى كان هو و مولوده في الجنة، ومن كان امرئته حاملاً مبره يې قصد وكړي كه ماته خداى ﷺ زوى راكړى نوم به يې محمد ايږدم رزقه الله غلامًا، او داغه رنګه كه د چا عيال نه پائيدى او قصد يې وكړى كه ماته خداى زوى راكړى نوم به يې محمد ايږدم وروه به پاتېږي.

**درويش وايي:** چي په دې ټولو فوائدو كي حسن العقيدة او تبرك باسمه الشريف شرط دى ..... ع:.. تا صدف قانع نشد پر در نشد ... مصرع:...
دا باران چي پر همه وُ مځكو اوري ... مشرف يې كړى ذات د كيميا ولي

**پوهه**: چي (وخاتم النبيين) عاصم رح يې په زور د تا وايي وهو آلة الختم چي په پښتو يې مهر بولي، والمعنى كان ﷺ آخرهم الذي ختموا به، او په فارسي يې ترجمه مهر پيغمبران يعني بدو مهر كرده شد در نبوت، وپيغمبران را بدو ختم كرده اند. او نور قاريان يې په كسره د تاء وايي على صيغة اسم الفاعل اى فاعل الختم وبالفارسية مهر كننده پيغمبران است، والمآل واحد.

**درويش وايي**: چي دا حكمت د خداى ﷻ چي عليه الصلوة والسلام ته خداى ﷻ ابن بالغ وروسته تر ده نه پرېښو، ولي كه داسي خداى ﷻ كړي واى، نو زوى دده به هم نبي واى لان اولاد الرسل يرثون النبوة قبله (يعني دمخه تر عليه الصلوة والسلام) من آبائهم فلم يكن رسول الله ﷺ خاتم النبيين.

**سوال**: په اخيره زمانه كي عيسىٰ ﷺ له اسمانه راكښته كېږي، او هغه نبي دى نو د عليه الصلوة والسلام وه خاتميت ته تاوان نه دى؟

**ځواب**: يا! ولي چي معنى د آيت داده چي تر عليه الصلوة والسلام وروسته څوك نه نبي كېږي، او عيسىٰ ﷺ خو تر ده مبارك دمخه نبي وُ، او بل ځواب دادى چي عيسىٰ ﷺ چي نازل سي حكم تهوله په شريعت د عليه الصلوة والسلام كوي او لمونځ و كعبه ته كوي، فكانه بعض من امته فلايكون اليه وحي ولا نصب احكام بل يكون خليفة رسول الله ﷺ.

## وَكَانَ اللّٰهُ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيمًا ۝

او دى خداى ج په هر شي ښه خبر، يعني خداى ج علم لري چي په كوم نبي سره لائق دى ختم النبوة، په حديث كي د بخاري او مسلم راغلي دي چي په اصطلاح د محدثينو يې متفق عليه حديث بولي، قال ابو هريرة ﷺ قال رسول الله ﷺ مثلي ومثل الانبياء (زما حال او د نورو انبياؤ حال) كمثل قصر احسن بنيانه الا موضع لبنة (لكه حال د هغې بنگلې چي پر ډېر ښه ډول جوړه سوې وي مگر نه ديوې خښتي ځاى خالي پاته وي) فانا سدرت موضع اللبنة (او هغه د يوې خښتي ځاى بند كړي يعني د نبوت كوټې تكميله سوه په ما سره) ختم بي البنيان وختم بي الرسل (رسولان پر ما ختم سوه) ابن كثير په تفسير كي د دې آيت وايي هي نص في ان لانبي بعده واذا كان لانبي بعده فلا رسول بعده بالطريق الاولى لان مقام

الرسالة اخص من مقام النبوة. ولې چې هر رسول نبي دی ولاینعکس کلیة وبذالک وردت الآحادیث المتواترة المعنی، نو هر څوک چې دعوه د نبوت وکړي سواء کان في زمانه ﷺ کالاسود العنسي بالیمن الذي قتله فیروز الدیلمي رضي الله عنه في اخیر حیاته ﷺ، ومسیلمة الکذاب بالیمامة الذي قتله الوحشي قاتل حمزة رضي الله عنه (بعد ما اسلم الوحشي في زمن النبي ﷺ) او بعد زمانه لکه غلام محمد قادیاني منحوس في دیار هند ثم وثم فکلهم ضال اضل افاک کذاب ضال مضل که څه هم بعض خوارق د هغه پر لاس ښکاره سوي وي بالسحر، لکه سحره د فرعون.

**درویش وایي:** چې په بحر الکلام کي وایي، چې یو صنف د روافضو وایي چې مځکه هیڅ د نبي څخه نه ده خلاصه. دی وایي چې نبوت د علیه الصلوة والسلام میراث سو و علي رضي الله عنه و اولاده ته الی یوم القیامة. دوی وایي چې څوک چې د علي رضي الله عنه او دده اولاد اطاعت نه کوي هغه کافر دی، او اهل السنة والجماعة وایي لانبي بعد نبینا ﷺ لقوله تعالی ولکن رسول الله وخاتم النبیین. وفي الحدیث المتواتر معنی لانبي بعدي که څوک وروسته تر علیه الصلوة والسلام نبوت باقي دی او یا پکښې شک وي فقد کفر لانه انکر نص القرآن والآحادیث المتواترة معنًی.

**فائده:** په زمانه کي د امام اعظم سراج الامة ابو حنیفة رحمه الله یو چا دعوه د نبوت کړې وه، او دې مدعي النبوة وویل چې تاسي ماته مهلت راکړئ چې دلائل او علامات د خپل نبوت دروښییم، نو امام اعظم رحمه الله وویل که چا د دغه مدعي النبوة څخه طلب د علامې وکړی هغه سړی هم کافر دی، په دلیل ددې چې دده شک دی په قرآن کي او په احادیث متواتره کي، کذا في مناقب امام الاعظم رحمه الله وفي فتاوی الاشباه والنظائر في کتاب السیر که څوک په دې نه پوهیږي چې محمد علیه الصلوة والسلام اخیر الانبیاء دی فلیس بمسلم لانه من ضروریات الدین المبین والجهل له في دار الاسلام لیس له عذره.

**درویش وایي:** چې روح المعاني او روح البیان په اثبات کي د ختم النبوة پر علیه الصلوة والسلام الی یوم القیامة دېرې اوږدې خبرې کړي دي فقیر خپل حال داسي بیانه وي که څوک د ختم النبوة پر خلاف خبرې کوي زه ځندې ولا ړېږم او خبرې ته یې غوږ هم نه نیسم او دلائل هم نه ورسره وایم لانه من ضروریات الدین

مثلا که څوک د دې څخه منکر سي چي واحد نصف الاثنين نه دی، يا ثلثة تاک يا اربعة زوج نه دی و امثالها من الضروريات لاينبغي الاصغاء الی کلامه والجلوس معه فافهم هداک الله الی خيرات الامور واياي ايضا.

**يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ ٱذْكُرُوا۟ ٱللَّهَ ذِكْرًا كَثِيرًا ﴿٤١﴾**

ای هغه کسانو چي ايمان يې راوړی دی ذکر کوي د خدای جل شانه ذکر ډېر، ابن عباس رضي الله عنهما وايي چي نه دی فرض کړی خدای پر بنده ګانو يو فرض د فرائضو څخه مګر هغه ته يې حد معلوم ايښتی دی ينتهي اليه ولم يعذر احدا في ترکه کا الصلوة والصيام وغيرها، الا مغلوبا علی عقله الا الذکر فامر به في الاحوال کلها يعني قياما وقعودا وعلی جنوبهم وقال اذکروا الله ذکرا کثيرا يعني بالليل والنهار في البحر والبر والصحة والمرض والسر والعلانية وقال مجاهد رحمه الله الذکر الکثير ان لاينساه ابدا.

**پوهسه:** چي ذکر د خدای عام که په تهليل سره وي يعني لا اله الا الله که په تحميد سره وي نحو الحمد لله علی کل حال او که په تکبير سره وي نحو الله اکبر په حديث صحيح کي راغلي دي چي زړونه يعني د مؤمنانو زنګ کوي لکه او سپنه قيل يا رسول الله فما جلائها صاف ده زنګه څخه بې څه وي قال ﷺ تلاوة کتاب الله يعني القرآن وکثرة ذکره تا باين مرتبه برسد..... بيت:

در هيچ مکان نيم از فکرت خالی ......... در هيچ زمان نيم ز ذکرت خالی

**وَسَبِّحُوهُ بُكْرَةً وَأَصِيلًا ﴿٤٢﴾**

**پوهسه:** چي مراد له تسبيح څخه لمونځ دی سماها تسبيحًا لاشمالها علی التسبيح "بکرة" په اول کي د ورځي چي صلوة الصبح دی "واصيلا" يعني وروسته تر زوال الشمس چي صلوة الظهر، عصر، ماښام او ماخستن دی، دا تفسير د کلبي رحمه الله دی، او مجاهد رحمه الله وايي چي قولوا سبحان الله والحمد لله ولا اله الا الله والله اکبر ولاحول ولاقوة الا بالله العلي العظيم، يعني دغه ذکر په اول کي د ورځي او مازديګر کوي، نو د تسبيح په ذکر سره يې و نورو اخواتو ته اشاره وکړه.

**فائده:** د دې کلماتو په ويلو کي طاهر او محدث او جنب برابر دي يعني په نفس جواز کي که څه هم اول افضل دی، او بعض مفسرين وايي چي د بکرة څخه د

سهار لمونځ او د اصيلا څخه د ماز دیگر لمونځ مراد دی په دلیل د هغه حدیث چي روایت یې ابو هریره ﷺ کړی دی چي رسول الله ﷺ وویل: یتعاقبون فیکم ملائکة باللیل وملائکة بالنهار (په نوبت راځي ملکي يعني کراماً کاتبین یو د په شپه او یو د په ورځ کي) ویجتمعون في صلوة الفجر وصلوة العصر (بیا پورته کیږي هغه ملکي چي ستاسي سره یې شپه تېره کړې وه، نو خدای ﷻ پوښتنه ځني کوي (وهو اعلم بهم) کیف ترکتم عبادي فیقولون يعني ملکي د شپې او د ورځي دواړې ډلې ورته وایي، ترکناهم وهم یصلون وآتیناهم وهم یصلون.

**درویش وایي:** چي په مجمع البیان د الواحدی څخه بسنده الی الضحاک بن مزاحم عن ابن عباس ؓ، دی وایي چي جبرئیل ؑ وعلیه الصلوة والسلام ته راغلی فقال یا محمد قل سبحان الله والحمد لله ولا اله الا الله والله اکبر ولاحول ولاقوة الا بالله عدد ماعلم وزنة ما علم وملئ ماعلم، جبرئیل ؑ ورته وویل چي څوک چي دا کلمات ووایي شپږ کرامته و هغه ته ورکول کیږي (۱) کتب من الذاکرین الله کثیراً (۲) وکان افضل من ذکره باللیل والنهار (۳) دا کلمات ګرځي درختي د ده ته په جنت کي (۴) ګنهونه د هغه داسي ځني توییږي لکه د وچي درختي پلګونه (۵) وینظر الله تعالی يعني بنظر الرحمة (۶) ومن نظر الله الیه لم یعذبه.

هُوَ الَّذِي يُصَلِّي عَلَيْكُمْ وَمَلَٰئِكَتُهُ

**بوه سه:** چي اکثره مفسرین وایي چي الصلوة من الله الرحمة علی المؤمنین ومن الملائکة الاستغفار لهم ای طلب المغفرة لهم من الله، وقیل الصلوة من الله علی العبد شائع کولي دی د ذکر جمیل د ده په بندګانو کي. وقیل الثنا علیه يعني في محضر الملائکة.

**سوال:** د صلوة لفظ چي مشترک دی په منځ کي د مغفرت او رحمت د خدای ﷻ، او په منځ کي د دعاء او استغفار د ملکو د خوا او په کتابو کي د اصول الفقه وایي چي استعمال د لفظ مشترک دی په اکثر کي تر معنی واحدي ته دی روا فکیف یصح اسناد یصلی المشترک في هذه الآیة الی الله والی الملائکة؟

**ځواب:** بعض اهل اللغة عموم د مشترک روا بولي، فعلی هذا لا اعاثیة ولا اشکال في استعمال لفظ الصلوة في المعنیین يعني صلوة الله وصلوة الملائکة.

واما عند من لم يجوز عموم المشترک واستعمال لفظ الصلوة في المعنيين ههنا مبني على عموم المجاز يعني ارادة المعنى المجازي العام للمعنيين المذكورين وهو الاعتناء بما فيه خيرهم وصلاح امرهم فاعتناء الله المغفرة والرحمة، واعتناء الملائكة طلب المغفرة وطلب ما فيه خيرهم فافهم.

وعبارة القاموس هكذا، (۱) الصلوة الدعاء (۲) والرحمة (۳) والاستغفار (۴) وحسن الثناء من الله تعالى على رسوله (۵) وعبادة فيها ركوع وسجود انتهى.

لِيُخْرِجَكُمْ مِّنَ الظُّلُمٰتِ إِلَى النُّوْرِ ۚ وَكَانَ بِالْمُؤْمِنِيْنَ رَحِيْمًا ﴿۴۳﴾

چي تاسي وباسي په رحمت د خداى ج او په دعاء د ملكو، له تاريكيو څخه د كفر او ګنهو، واطلاق الظلمات على الكفر والمعاصي اطلاق مجازي.

**پوښتنه:** مؤمنان خو له ظلمات څخه د كفر و نور ته د ايمان وتلي دي فما معنى قوله ليخرجكم؟

**ځواب:** معنا د مضارع ههنا يديم اخراجكم.

"الى النور" اى نور الايمان والطاعة وهذا الاطلاق ايضًا مجازي.

**پوښتنه:** څه حكمت الهي دى چي ظلمات يې په صيغه د جمع راوړي او نور يې په صيغه د مفرد راوړى؟

**ځواب:** انواع د كفر ډېري دي من الدهرية والمجوسية والشرک واليهودية والنصرانية وغيرها او ايمان يو دى.

تَحِيَّتُهُمْ يَوْمَ يَلْقَوْنَهٗ سَلٰمٌ ۚ

او دى خداى ج پر مؤمنانو مهربان، ولي چي خداى اعلاء د قدر دوى كړي دى، او صلاح د امر د دوى يې كړې ده، او په دعاء كي يې و دوى ته ملائكة المقربين شامل كړي دي.

**پوه سه:** چي دا جمله معطوفه ده پر صله د الذي سابق چي يصلي ؤ، والتقدير الذي يصلي عليكم والذي كان بالمؤمنين رحيمًا.

"تحيتهم" من اضافة المصدر الى المفعول يعني تحيت منه تعالى "يوم يلقونه" چي دوى ملاقي كيږي د خداى جل شانه سره يعني عند الموت، او الخروج من القبور او

عند دخول الجنة (وهذا هو الاولى، كريمه: سلام قولاً من رب رحيم او عند رؤيتهم الله تعالى) "سلام" اى يسلمهم الله عليهم تحية ويسلمهم الله من جمع المكاره، او المراد تسليم الملائكة بشارة لهم بالجنة وتكرمة لهم، كريمه: والملائكة يدخلون عليهم من كل باب سلام عليكم، روى چي خداى پاک وايي سلام ياعبادي انا عنكم راض فهل انتم راضون، نو دوى ټول په يوه اواز ورته وايي يا ربنا انا راضون كل الرضا او داسي هم روايت راغلى دى ان الله تعالى يقول السلام عليكم مرحبًا بعبادي الذين ارضوني في دار الدنيا باتباع امري، واما عند الموت كما روى عن ابن مسعود رضي الله عنه قال اذا جاء ملك الموت بقبض روح المؤمن قال ربك يقرئك السلام، واما عند الخروج عن القبور فالملائكة يبشرونهم بالجنة ويسلمونهم.

## وَأَعَدَّ لَهُمْ أَجْرًا كَرِيمًا

او اراسته كړى دى خداى جل جلاله دوى لره ثواب عظيم چي جنت دى، او رضوان د خداى ج او رؤية د خداى ج دى عند اهل السنة والجماعة، دون المعتزلة لانهم كانوا في الدنيا منكرون عن هذه النعمة العظمى يعني رؤية الله فيكونون محرومون عنها في العقبى.

## يَا أَيُّهَا النَّبِيُّ إِنَّا أَرْسَلْنَاكَ شَاهِدًا وَمُبَشِّرًا وَنَذِيرًا

اى نبي (ﷺ) په تحقيق مونږ ته استولى يي شاهد لپاره د امت مصدقًا لهم په هغه وخت كي چي ستا امت شاهدي اداء كړي د رسولانو لپاره ددوى پر امتو چي هغه د تبليغ څخه منكر سي د خپلو رسولانو او ته ستاسي د تزكيه شاهد گرځم، هغه د تبليغ څخه منكر سي د خپلو رسولانو او زه ستاسي د تزكيه شاهد گرځم، ابو سعيد الخدري رضي الله عنه څخه روايت كړى دى بخاري، ترمذي، نسائي او ابن ماجه له قال رسول الله ﷺ يدعى نوح ع (راوه به بلل سي نوح ع) يوم القيامة فيقال هل بلغت تا تبليغ خپل امت ته كړى ؤ؟ فيقول نعم، بيا راوبلل سي امت دده، ورته وويل سي چي تاسي ته نوح ع تبليغ كړى ؤ، دوى ووايي ما آتانا من نذير ما آتانا احد، فيقال يعني نوح ع ته من يشهد لك بالتبليغ فيقول محمد (ﷺ) وامته الى اخير الحديث، او په باره كي د احاديث كثيره شهيره مذكوره في كتب صحاح.

**سوال:** دا شاهدي خو په ورځ د قيامت ده، نو اوس څرنګه خطاب و عليه

الصلوة والسلام ته په شاهداً صحيح دی؟

**خواب:** ودې ته حال مقدره وايي، يعني دا ستا شاهدي مقدر په دربار کي د خدای ﷻ نحو قوله تعالى لاهل الجنة فادخلوها خالدين فيها ابداً لان الخلود لايكون وقت الدخول بل بعده فالمعنى مقدرين خلودكم فيها.

"ومبشراً" زيری کونکی و مؤمنانو ته بالجنة "ونذيراً" بيرونكی لمن كذب الرسل بالنار.

**سوال:** انذار خو تر تبشير د مخه دی. نو له څه جهت او حكمت لپاره يې مبشراً د مخه كړی؟

**خواب:** لتقدم شرف اهل البشارة.

**پوښتنه:** نذيراً چي صيغه د مبالغي ده د څه حكمت لپاره راوړل سوه مع ان المناسب لعطفه على مبشراً ان يقال ههنا منذراً؟

**خواب:** انذار عام دی ټولو كافرانو ته چي تعداد يې ډېر دی بلكې بعض عصاتو ته د مؤمنانو هم متوجه دی، نو ځكه يې په انذار كي صيغه د مبالغي راوړه، او بل ځواب د تقديم د بشارت پر انذار دا دی چي مقصود اصلي خو بشارت دی لانه ﷺ رحمة للعالمين دی.

وَدَاعِيًا إِلَى اللَّهِ بِإِذْنِهِ وَسِرَاجًا مُّنِيرًا ﴿٤٦﴾

او بلونكی و خدای ﷻ ته ای الى توحيده وطاعته والى جنته ولقائه، په اجازه او توفيق د خدای ﷻ، او څراغ دی روښانه كونكی.

**فائده:** د بإذنه د قيد فائده داده چي د كفار اباً عن جد و اسلام ته امر صعب دی غاية العصوبة چي نسي كېدای بې توفيقه او كومكه د خدای ﷻ، وجه العصوبة چي دعوت و خدای ﷻ ته بالمعنى المذكور صرف الوجوه ای وجوه الكفار عن سمت الخلق الى الخلاق وادخال قلادة غير معهودة في الاعناق، او ددې عصوبت له جهته خدای پاک خپل حبيب ته داسي وايي: انک لاتهدی من احببت ولكن الله يهدي من يشاء آه.

**سوال:** د اذن معنى خو فقط اجازه ده تا ولي توثيق ورسره ذكر كړی، او بعض مفسرين د اذن معنى په تسهيل ولي كوي؟

**سوال:** د اذن معنى خو فقط اجازه ده تا ولي توفيق ورسره ذكر كړى، او بعض مفسرين د اذن معنى په تسهيل ولي كوي؟

**ځواب:** لـه دې سببه چي حقيقت د اذن چي فقط اجازه ده، هغه خو د انا ارسلناك او د داعيًا الى الله څخه وفهمېده، نو باذنه ته څه ضرورت وُ، نو لـه دې سببه فقير د اجازه سره توفيق ورزيات كړى، او له هم دې سببه بعضې مفسرينو يې په تسهيل ترجمه كړې ده فافهم.

**پوه سه:** چي اطلاق د څراغ پر ذات انور د عليه الصلوة والسلام لـه دې سببه وكړل سو چي لكه په څراغ سره چي هغه د ستركو څخه پټ شيان په ظلمة الليل كي پيدا كېږي او د نفع او د ضرر شى پېژندل كېږي. د غـه رنګـه پـه ذات انور سره د عليـه الصلوة والسلام په ظلمة الكفر مفيد شى چي توحيد دى او ضررمند شى چي شرك دى سره جلا كېږي. نو دا اطلاق تشبيه بليغ ده غاية البلاغة، والحاصل چي عليـه الصلوة والسلام په ژبه سره داعي الى اللهؐ او پـه زړه او پـه قالب لكـه څراغ وُ چي مؤمنان په انوارو سره دده منور كرځېدل كالعالم يتنور بالنور الشمس والبيت يتنور بنور السراج، هم دا سبب دى چي احتصت الصحابة ﷺ بمزيد الفضل والعلم على الناس، ولي هغه علوم چي له مشكوة څخه د ژبې مباركې دده كه څه هم صحابه وغيرهم سره برابر دي. بلكې ورد في الحديث الصحيح بلغوا عني ولو كلمة فان رب مبلغ (على صيغة اسم المفعول) اوعى من سامع، واما التنور بانواره فانه وان كان حاصلاً للناس بتوسط اصحابه واصحاب اصحابه وهلم الى يوم القيامة لكن ليس الشاهد فيه كالغائب، والله اعلم .... بيت:

چـراغ روشن از نور خدايى ..... جهـان را داده از ظلمت رهائى
ازو جانرا بدانش آشنائيست ..... وزو چشم جهانرا روشنائيست
درگنج مـعـافى بـر كشاده ..... وزان صاحب دلان را مايه داده
تو مهر منيرى همه اختراند ..... تو سلطان ملكى همه لشكراند

وفي القصيدة البردة المعروف في مدح سيد البرية:

فانه شمس فضل وهم كواكبها ..... يظهرون انوارها للناس في الظلم

له عطاء بن يسار ﷺ څخه روايت دى چي زه د عبد الله بن عمرو بن العاص ﷺ سره

ملاقي سوم (چي يو مؤمن عالم بالتورات ؤ) ما ورته وويل: اخبرني عن صفت رسول الله ﷺ في التورات؟ قال: اجل! والله انه لموصوف ببعض صفته في القرآن يعني يا ايها النبی انا ارسلناک شاهدًا و مبشرًا و نذيرًا، تر دې ځايه پوري په تورات کي هم سته چي بعض د ما في القرآن دي، او دا وروسته صفات په تورات کي زائد راغلي دي: وحرزًا للاميين (ساتونکی د اميانو چي عرب دي له شرک او ضلال څخه) انت عبدي سميتک المتوکل (ته زما مخصوص بنده يې، ما ته مسمّٰی کړی يې المتوکل يعني متوکل على الله خاصةً) ليس بفظ ولا غليظ ولا سخاب (نه يې بد اخلاقه سخت دل، نه په زوره ناري وهې په بازارو کي لکه بدوي خلک) ولا يدفع بالسيئة السيئة (او دا بنده نه دفع کوي بد د چا په بد سره دده له خوا) ولکن يغفر ويعفو (وبدي کونکي ته بخښنه کوي او عفوه ورته کوي) لن يقبضه الله (خدای ؒ دی نه وفات کوي) حتی يقيم الملة العوجا (تر هغو پوري چي پر لار برابر نه کړي هغه تهول ملت يعني شرک العرب) بان يقولوا لا اله الا الله ويفتح اعينًا عميًا (چي په لا اله الا الله سره بناء نه کړي ړندي ستر کي) واذنًا صما (او هغه غوږونه چي کاڼه وه) وقلوبًا غلفًا (او هغه زړونه چي په پوښ کي د شرک وه) رواه البخاري وکذا الدارمي عن عطاء بن سلام نحوه.

البيهقي ؒ په دلائل النبوة کي د ربيع بن انس ؓ څخه روايت کړی دی چي دا آيت نازل سو: ما ادری مايفعل بی ولا بکم، وروسته دا آيت نازل سو: ليغفرلک الله ماتقدم من ذنبک وما تأخر، قال رجال من المؤمنين، هنيئًا يا رسول الله (ستا خو دي دا آيت مبارک وي) قد علمنا ما يفعل بک فما يفعل بنا فنزلت هذه الآية.

وَبَشِّرِ الْمُؤْمِنِيْنَ بِاَنَّ لَهُمْ مِّنَ اللّٰهِ فَضْلًا كَبِيْرًا ۝٤٧

زيری وکړه و مؤمنانو ته چي په تحقيق تاسي لره ستا د خدای ﷻ له خوا لوی فضل، قال انس ؓ الفضل الکبير الجنة، وهذه الجملة معطوفة على قوله انا ارسلناک من قبيل عطف القصة على القصة فلا يرد ان المعطوف عليه جملة خبرية وهذه الآية انشائية، والنحاة يمنعون هذا العطف فافهم، روح البيان وايي چي د فضل کبير نسبت و مؤمنانو ته د نورو امتو دی په رتبه او شرف کي، کريمه: کنتم خير امة اخرجت للناس الی اخير الآية، يا ستاسي د اعمال حسنة ؤ اجر او ثواب بالا دی تر اجرت د اعمال حسنه د نورو امتو کما روی ان الحسنة الواحدة في الامم

السابقة كانت اجرها بواحدة وفي هذه الامة بعشر امثالها الى سبعمائة الى ما شاء الله، وهذا فضل من الله يؤتيه من يشاء.

**درويش وايي:** چي دا فضل دا جور ددې امت پر نورو امتو تابع دی د فضل د رسول اللهﷺ پر ټولو انبياء کرامو عليهم السلام. والله اعلم.

## وَلَا تُطِعِ الْكٰفِرِيْنَ وَالْمُنٰفِقِيْنَ وَدَعْ اَذٰىهُمْ

ته په خلوه مه کوه د کافرانو يعني من اهل مکة (يعني دوی تا ته وايي چي رجوع و دين ته د اباء وکړه) او نه په خولو د منافقانو يعني من اهل المدينة. والمعنى دم يعني همېشه توب وکړه على ذالک او په تفسير ارشاد کي وايي چي دا آيت نهي دی عليه الصلوة والسلام لره له غوړه مالی ځخه د کافرانو في امر الدعوة ولين الجانب في التبليغ والمسامحة في الانذار، نو پر دې تفسير کنايه ده عن ما ذکر بالنهي عن طاعتهم مبالغة في الزجر فافهم.

**پوه سه:** چي اضافت د اذا ودوی ته اضافت د مصدر دی و فاعل ته. کما يدل عليه تفسير ابن عباس رضي الله عنه وقتادة رحمه الله حيث قال يعني اصبر على ايذاهم اياک (ولي چي په دې صبر کي خدای ج اجر عظيم او درجات عاليات درکوي) فلا تبال بايذائهم اياک، او زجاج رحمه الله وايي: لاتجادلهم ولاتقصد الى ايذائهم. يعني لاتؤذهم فح۔ الاضافة اضافة المصدر الى المفعول.

## وَتَوَكَّلْ عَلَى اللّٰهِ ؕ وَكَفٰى بِاللّٰهِ وَكِيْلًا ﴿۳﴾

او تکيه او اعتماد پر خدای ج وکړه. ولي چي خدای ستا کافي دی. او کافي دی خدای ج اذا جعلت الله موکولاً اليه. نو خدای ج ستا کفايت کوي او ستا حاجت وغير ته خپل نه پرېږدي. له ابن مسعود رضي الله عنه ځخه روايت دی چي عليه الصلوة والسلام يو مال د غنيمت پر خلکو ووېشه، يو سړي له انصارو ځخه وويل ان هذه لقسمة ما ايد بها وجه الله (دا سړی صرف په قوم انصارؤ لکن منافقؤ. واظنه عبدالله بن ابي) يو چا دا خبره و عليه الصلوة والسلام ته ورسول. فاحمر وجهه يعني مخ مبارک يې له درده سور سو. بيا يې داسي وويل: رحمه الله اخي موسٰى لقد اوذي باکثر من هذا فصبر..... بيت:

صد هزاران کيميا حق آفريد ..... کيمياى همچو صبر آدم نديد

**درویش وایي**: چي توكل علی الله بخلوص القلب ینجو المؤمن من البلاء العظیم.

**حکایت**: راوي وايي چي حجاج بن یوسف (چي په ظلم کي په ټوله اسلامي نړۍ کي ضرب المثل دی) یوه ورځ چي دی هم د کعبة الله په طواف بخت ؤ د یو سړي څخه چي حول البیت یې تلبیه ډېر په بلند اواز ویل، حجاج بن یوسف وخپلو حاضرینو ته وویل: عَلَيَّ بِالرَّجل هغه سړی چي تلبیه یې په زوره ویل ماته یې راولئ، سړی چي راوستل سو حجاج ورته وویل: من انت؟ ته څوک یې؟ قال من المسلمین، حجاج ورته وویل ما د اسلام پوښتنه نه ده د رڅخه کړې، هغه سړي ورته وویل چي نو د څه شي پوښتنه دي کوله، حجاج ورته وویل عن بلدک، سړي ورته وویل من اهل الیمن، حجاج ورته وویل چي محمد بن یوسف (د حجاج ورور ؤ او د یمن والي ؤ) څرنګه ؤ په یمن کي، هغه سړي ورته وویل عظیمًا جسیمًا (ډېر لوی جسم یې ؤ) لباسًا (ښه فاخره کالي یې اغوستي وه) رکابًا (پر ښوو ښوو آسانو به سپرېدی) خراجًا ولاجًا (په فخر به راوتی او په کبر به کور ته داخلېدی) حجاج بن یوسف ورته وویل چي ددې پوښتنه مي هم نه ده د رڅخه کړې، بلکي د رعایتو سره په ګذاره څرنګه ؤ؟ هغه سړي ورته وویل ظلومًا (ډېر لوی ظالم ؤ) مطیعًا للمخلوق عاصیًا للخالق (د مخلوق فرمانبردار ؤ او د خالق عاصي ؤ) نو حجاج بن یوسف ورته وویل: ته دې خبرو څه شي دلاوره کړی یې او ته خبر نه یې چي محمد بن یوسف زما ورور دی، هغه سړي ورته وویل چي ستا څه خیال دی چي قرابت د محمد بن یوسف به وتاته اعز وي زما تر محبت د خدای ج سره، وانا وافد بیته ومصدق نبیه، فسکت الحجاج وانصرف الرجل، سړی ځني راهي سو بېله اجازې د حجاج، کریمه: ومن یتوکل علی الله فهو حسبه.

يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓاْ إِذَا نَكَحۡتُمُ ٱلۡمُؤۡمِنَٰتِ ثُمَّ طَلَّقۡتُمُوهُنَّ

ای هغه کسانو چي ایمان یې راوړی دی، تاسي په نکاح کړئ مؤمنات ښځي.

**پوښتنه**: په آیت کي تخصیص د مؤمناتو ولي وکړل سو، او سره ددې چي نکاح د کتابیاتو خو هم روا ده ای الیهودیات والنصرانیات، او حکم د هغو په طلاق قبل الدخول مثل حکم المؤمنات دی؟

**ځواب:** تخصیص د مؤمناتو چي یې وکړی له دې سببه چي لائق د حال سره د مؤمن ان ینکح المؤمنة ویحترز عن نکاح الکتابیة.

"ثم طلقتموهن" بغوي رح وايي چي په دې آيت دليل دی چي طلاق قبل النكاح نه واقع کېږي لان رتب في هذه الآية الطلاق على النكاح حتى اذا قال لاجنبية، يعني يو بېگانه ښځي ته يې وويل چي في الحالة دده په نكاح كي نه وه، اذا نکحتک فانت طالق، وروسته يې په نكاح كړه لايقع الطلاق، وهو قول علي و ابن عباس ومعاذ بن جبل وجابر بن عبد الله وعائشة رضي الله عنهم. وبه قال سعيد بن المسيب وعكرمة وعطاء وسليمان بن يسار ومجاهد والشعبي وقتادة رحمهم الله واكثر اهل العلم، وبه قال الشافعي رح، وروى عن ابن مسعود رض انه يقع الطلاق وهو قول ابراهيم النخعي واصحاب الراى اعني ابا حنيفة واصحابه رحمهم الله، انتهى قول البغوي رح.

**درويش وايي:** چي بغوي رح خو شافعي المذهب دی، نو دی كه امام اعظم واصحابه اصحاب الرائ بولي خو عجب نه دہ لكن مظهري رح. ته خو ځان حنفي المذهب بولي، دا څرنګه دا لفظ يعني اصحاب الرائ ووايه؟! له بغوي رح څخه دا لفظ خو د توهين دی خود دی په ځای کي فقط ويلي وای، وهو مذهب ابو حنيفة واصحابه بحذف لفظ التوهين من عبارت البغوي رح.

**پوښتنه:** دا لفظ ولي د توهين دی؟

**ځواب:** اصحاب ظواهر الحديث او وهابيان او سلفيان وايي چي ابو حنيفة رح فقط په قياس او راى سره عمل كوي، احاديثو ته نه ګوري، زه درويش وايم: وقد كذبوا دوی دروغ وايي، ولي د امام اعظم رح خبره په صحيح ثبوت رسېدلې ده: كه تاسي ته صحيح حديث ورسېدی چي زما قول څني مخالف وُ هغه حديث زما مذهب دی، زما قول په حش (يعني په کچره) کي وغورځوئ.

**درويش وايي:** چي ولله الحمد والمنة په حنفي المذهب علماؤ کي داسي کسان شته چي مذهب د امام اعظم رح يې په صحيح احاديثو سره ثابت کړی دی او مخالفينو ته يې ځواب ددوی د احاديثو په نورو احاديثو سره ورکړی دی، لكه فقيه ابو جعفر الطحاوي رح په شرح د معاني الآثار چي دا مشهور خبره ده چي فقيه ابو جعفر الطحاوي رح اعلم الناس دی بمذهب ابی حنيفة واصحابه رح، يا لكه كمال الدين ابن

الهمام شارح الهداية په فتح القدير کې چې دی په احاديثو صحيحه وو سره اسناد د خپل مذهب ثابتوي. يا ملا علي القاري رحمه الله په شرح کې د مشکوة وغيرهم عليهم الرحمة.

**درويش وايي:** چې مورږ د هيڅ امام صاحب المذهب من الائمة الاربعة توهين نه کوو، حاش لله، ورو سته مظهري هغه احاديث راوړي دي چې دال پر مذهب د امام شافعي رحمه الله دي بقوله احدها آه، وثانيها آه، وثالثها آه، ورابعها آه، وخامسها آه، وسادسها آه، په اخير کې يې په ډېرو مختصرو الفاظو توجيه د مذهب د ابو حنيفه رحمه الله کړې ده، بقوله وجه قول ابی حنيفة رحمه الله الی اخيره.

## مِنْ قَبْلِ أَنْ تَمَسُّوهُنَّ

**پوهه:** چې مساس دلته کنايه ده له جماع څخه.

**فائده:** حکم د خلوة صحيحه حکم د جماع دی، په نېز د ابی حنيفة رحمه الله خلوة صحيحه دا دی چې مېړه او مانيه د دروازې په ځان پسي وتړي او دوه په دوه سي، او مانع د وطي نه په مېړه کې او نه په مانيه کې، موانع د وطي درې دي:

(۱) حسي دي لکه ناجوړي، داسي ناجوړي چې مانع د وطي وي که په نر کې وي او که په ښځه کې، او يا رتق وي په ښځه کې يعني ځای د وطي د ښځي بند وي چې ذکر نسي ورداخلېدای.

(۲) موانع شرعي: کصوم رمضان دون الصوم التطوع والقضاء والنذر والکفارة في الصحيح لعدم وجوب الکفارة بالافساد کاحرام فرض او نفل لان الجماع مع الافساد يبطل النسک ويوجب دمًا مع القضاء.

(۳) مانع طبعي: کالحيض والنفاس، ولي طبع سليم نفرت کوي له وطي څخه په ځای کې د وينو چې فرج دی، نو په داسي ځای کې مېړه او مانيه سره داخل سي چې د غيرهما څخه خالي وي حتی که په سترګو ړوند وي هغه د دوی په وطي پوهېږي، وحتی النائم. ولي نائم خو ممکنه ده چې د دوی د وطي په حال کې دي راويښ سي، نو دا احتمال هم مانع د وطي دی بحيث امنًا من اطلاع غيرهما عليها بدون اذنهما لزم علی الزوج تمام المهر لان هذه الخلوة وطي حکمًا، والعدة تجب مع المانع احتياطًا لتوهم شغل الرحم بماء الرجل ولانها ای العدة حق الشرع والولد.

**مسئله:** فرضي لمونځ مانع دی لکه فرضي روژه، وفيه تطر لان الصوم الفرض ممتد الى الليل بخلاف الفرض من الصلوة لانه يمكن اداء الصلوة المفروض ثم الوطي كما لايخفى.

## فَمَا لَكُمْ عَلَيْهِنَّ مِنْ عِدَّةٍ تَعْتَدُّونَهَا

نو حق نه لرئ تاسي نر يعني مړونه پر دغو ماينو چي تاسي جماع يا خلوة صحيحة نه وي ورسره کړې د عدت معنى داده چي دا به بل مېړه نه کوي "تعتدونها" چي تاسي يې عدد پوره کوئ يا په حيضو سره چي درې حيضه دي او يا په مياشتو کي که آيسه وه.

**فائده:** وهذا حكم مجمع عليه للامة المرحومة.

**فائده:** لکه يې وو ايه ددې لپاره چي دلالت وکړي چي عدة حق د نر ده لانها لصيانة الماء و وجود الشک في النسب والنسب للرجال، له دې سببه امام اعظم ابو حنيفه رح وايي چي که د اهل ذمة دا مذهب وي چي عده نسته فلا عدة عليها، واما اذا كان مذهبهم وجوب العدة فيجب عليها العدة.

**مسئله:** که حربي ښځه دار الاسلام ته مسلمانه راغله فلا عدة عليها، وانقطع نكاح الحربية المسلمة مع الحربي في دار الحرب، نو دې ښځي ته روا دی چي على الفور بل مېړه وکړي، لان الحربي كالجماد حتى كان محلاً للتملک لکه چي په غزاء کي ونيول سي، مګر دې حربيه مسلمه ته نكاح نه ده روا که حامله وه يعني په رحم کي يې ولد وي، ولي چي دا ولد ثابت النسب دی له حربي څخه، والنكاح يفضي الى الجماع فيكون كافاضة الماء على زرع الغير وهو لايجوز كما في كتب الفقه الشريف.

## فَمَتِّعُوهُنَّ وَسَرِّحُوهُنَّ سَرَاحًا جَمِيلًا ﴿٤٩﴾

نو متعه ورکړي يعني يو جوت کالي (ابن عباس رض وايي چي وجوب د متعه هلته دی چي په نكاح کي يې دې ته ولور نه وي ټاکلی، او که يې ولور ټاکلی وي، نو نيم د ولور به ورکوي متعه وجوبًا نسته او نه استحبابًا ويرجع الى مذهب ابن عباس رض قول قتادة رح او بعض اهل علم وايي چي په صورت کي د ولور مسمى کولو نصف المهر ورکول وجوبًا دی او متعه هم مستحب ده)

"وسرحوهن سراحًا جميلاً" له کوره يې وباسئ هر څېزي چي ځي او هر څه چي کوي، يعني که مېره کوي مېره دي وکړي او که دمور او پلار کره ځي هلته دي ولاړه سي، ولي چي ستا د عدت حق په دې پوري نه دی مربوط.

**پوه سه:** چي د سراح جميل معنی داده چي ضرر مه ور رسوه لکه چي مېړه ورته ووايي چي بل مېړه به نه کوې.

يَا أَيُّهَا النَّبِيُّ إِنَّا أَحْلَلْنَا لَكَ أَزْوَاجَكَ اللَّاتِي آتَيْتَ أُجُورَهُنَّ

ای نبي موږ تا ته حلالي ګرځولي دي هغه ماينې ستا چي تا ورکړي وي مهرونه د دوی، سمی المهر اجرًا لان المهر اجر علی البضع.

**فائده:** قيد د آتيت آه مبني پر عادت د عليه الصلوة والسلام دی، ولي دده عادت مبارک داؤ چي مهر هر څه چي به ؤ معجله يې ورکاوه، او يا دا بيان د افضل دی يعني افضله داده چي ولور دمخه ورکړي چي د ښځي زړه مطمئن سي، نو مفهوم مخالف نه لري اجماعًا يعني که مهر دمخه ورنه کړي نو نه دي حلالي.

وَمَا مَلَكَتْ يَمِينُكَ مِمَّا أَفَاءَ اللَّهُ عَلَيْكَ

او داغه رنګه درته روا دي چي ملک يمين کي ستا وي يعني مينځه "مما افأ الله عليک" يعني رد الله عليک من الکفار، چي ته يې په سبي راولې او ته يې مالک وګرځې مثل صفيه وجويرية.

**فائده:** دا قيد هم مفهوم مخالف نه لري يعني دی په سبي سره مالک ګرځي، ولي چي ماريه ام ابراهيم په سبي د عليه الصلوة والسلام مينځه نه وه ګرځېدلې بلکي مقوقس امير القبط بمصر هديه ورته را استولې وه.

وَبَنَاتِ عَمِّكَ وَبَنَاتِ عَمَّاتِكَ وَبَنَاتِ خَالِكَ وَبَنَاتِ خَالَاتِكَ

او لوڼې د اکا ستا او د عمه ګانو ستا.

**پوه سه:** چي مراد له اکا او عمه څخه متعارف اکا او عمه نه دي بلکي مراد ښځي د قريشو دي چي له لېري نسب څخه د عليه الصلوة والسلام يا اکاګان يا عمه ګاني ګرځي.

"وبنات خالک آه" دلته هم مراد ځني مطلق ښځي دي د بني زهره ؤ، چي د عليه الصلوة والسلام ماماګان او خالي ګانې وې.

**الّٰتِيْ هَاجَرْنَ مَعَكَ**

هغه چي ستا سره يې هجرت کړی وي.

**پوه سه:** چي مراد له معيت ځنځه موافقت دی په نفس هجرت کي لا المعية بحسب الزمان، کما قال الله تعالى حكايةً عن قول بلقيس رح: اسلمت مع سليمان ای وافقت مع سليمان في الاسلام، بغوي رح وايي چي د هغه چا د ښځو ځنځه چي هجرت يې نه وي کړی د هغو نکاح نه ده روا، دليل يې هغه حديث دی چي ترمذي روايت کړی دی او حسن يې هم بللی دی او حاکم يې هم روايت کړی دی او صحيح يې هم بللی دی په روايت د سدي له ابی صالح هغه له ابن عباس رض ځنځه عن ام هاني بنت ابی طالب چي مرکه وکړه ماته رسول الله ﷺ، دې ورته وويل چي ماته کوچني يتيمان پاته دي، او عليه الصلوة والسلام زما دا عذر و مانه، څو زمانه وروسته چي زما زامن لويان سوه يعني وروسته تر فتح د مکې ام هاني وايي چي ما ځان و عليه الصلوة والسلام ته پيش کړی فقال اما الآن فلا، ان الله انزل علي يا ايها النبي الی قوله التي هاجرن معک، او ام هاني له مهاجراتو ځنځه نه وه بلکې د طلقاؤ ځنځه يعني رسول الله ﷺ چي فتح مکه وکړه خلګو ته يې وويل انتم الطلقاء، بغوي رح وايي چي ثم نسخ شرط الهجرة في تحليل النكاح والله اعلم.

او بعض مفسران وايي چي مراد له هجرت ځنځه هجرت متعارفه نه دی بلکې مراد ځني نفس اسلام دی، اسلمن معک.

**درويش وايي:** چي اول دا تفسير مخالف دی له قصې سره د ام هاني کما مر عنقريب او پر تقدير د صحت فائده يې داده چي عليه الصلوة والسلام ته نکاح د غير المسلمة من اليهودية والنصرانية نه وه روا، والله اعلم.

**وَامْرَاَةً مُّؤْمِنَةً اِنْ وَّهَبَتْ نَفْسَهَا لِلنَّبِيِّ اِنْ اَرَادَ النَّبِيُّ اَنْ يَّسْتَنْكِحَهَا ق**

دا منصوب دی عطف دی پر مفعول د احللنالک، والمعنی واحللنا لک ايضًا امرئة مؤمنة يعني هره ښځه چي وي من النساء المؤمنات، له قيد ځنځه د مؤمنات مشرکات، يهوديات، نصرانيات ټولي ووتلې که څه هم ځان هبه کړي و رسول الله ﷺ ته.

**پوښتنه**: د مخه ټول خطابات خو وه علیه الصلوة والسلام ته وه، نو په اظهار کي د لفظ د نبي څه حکمت دی، یعني داسي به کافي نه وای ان وهبت نفسها لک؟

**ځواب**: په دې اظهار کي فائده او حکمت دا دی چي دا حکم مخصوص دی په نبي ﷺ پوري یعني بل چا ته نکاح بېله ولوره نه ده روا لشرف نبوته[۴].

**پوهه**: چي هبه دې ته وايي چي يو سړی خپل ملک وبل ته ورکړي بغير عوض مالي.

**سوال**: حُره ښځه خو نه هبه قبلوي او نه بيع او نه شراء، اذ ليست بمملوكة لاحد فما معنى وهبت نفسها؟

**ځواب**: هو! لکن دلته معنا داده چي خپل بضع يعني عضو مخصوص بل چا ته ورکړي بلا مهر په هر عبارت چي وي من الهبة والصدقة والتمليک والبيع والنكاح والتزويج، او معنی د ان داده چي که داسي پېښه سي نو حکم یې دا دی.

"ان اراد النبي ان يستنكحها" که اراده وه د نبي چي په نکاح يې کړي.

**درويش وايي**: چي دا شرط دی یعني ان اراد النبي آه د شرط اول یعني ان وهبت آه، ولي په نفس هبه سره خو ښځه نه حلالېږي بلکې اراده د نکاح د علیه الصلوة والسلام یې شرط دی، ولي چي د ښځي هبه لکه ایجاب دی په بيع کي او طلب د نکاح د علیه الصلوة والسلام لکه قبول دی په بيع کي والاستنكاح طلب النكاح والرغبة فيه.

## خَالِصَةً لَّكَ مِن دُونِ الْمُؤْمِنِينَ

یعني دا هبه د ښځي خپل د بضع بلا مهر خالص تا لره دی ماسوی د مؤمنانو چي هغو ته نکاح بې ولوره نه ده روا بلکې پر هغو مهر لازم دی بالوطي والموت نو که مهر مسمٰی ؤ هغه ټول واجب دی په وطي سره يا په موت د مېړه او که مهر مسمٰی نه ؤ نو مهر مثل لازم دی.

**درويش وايي**: چي ابن سعد رحمه الله له عکرمه رضي الله عنه څخه روايت کړی دی في تفسير قوله تعالى وان امرئة مؤمنة آه، نازل سوی دی په ام الدوسية (يعني چي د دوس د قبيلي وه) چي نوم يې عزيه بنت جابر بن حکيم الدوسي ؤ، دې خپل ځان يعني په نکاح د علیه الصلوة والسلام ته هبه کړی، يعني بلا مهر وكانت جميلة او دا په رنګه ښائسته

وه عليه الصلوة والسلام قبوله کړه، فقالت عائشةؓ ما في امرئة حين هب نفسها لرجل خير قالت ام شريک فانا تلک (دا خوزه يم) فسماها مؤمنة فقال وان امرئة مؤمنة وهبت آه، فلما نزلت هذه الآية قالت عائشةؓ ان الله يسرع لک في هواک، وقوله تعالى خالصة لک من دون المؤمنين يدل على ان النکاح بدون المهر من خصائصهﷺ، وهو المراد بقوله تعالى ان وهبت نفسها للنبي، يعني ان زوجت نفسها بغير مهر کما ان الزيادة على الاربع من النساء من خواصه[۴] او بعض مفسرين وايي چي نکاح په لفظ د هبه د خصائصو څخه د عليه الصلوة والسلام ؤ ولايجوز لغيره، وهو قول سعيد بن المسيب والزهري ومجاهد وعطاء وبه قال ربيعة ومالک والشافعي عليهم الرحمة، وقال امام الائمة ابو حنيفةؒ انعقاد د نکاح په لفظ د هبة له خواصو څخه د عليه الصلوة والسلام نه دی، بل يجوز نکاح کل احد بلفظ الهبة والبيع والصدقة والتمليک وکل لفظ يدل على تمليک العين مؤبداً، ولايجوز بلفظ الاجارة والاعارة لعدم التمليک المؤبد فيها، او امام کرخيؒ وايي چي په دغو دوو لفظو هم نکاح روا ده، ولي په دغو دوو لفظو سره ثابت تمليک د منفعة دی وذالک في النکاح ايضًا يعني منفعة البضع والله اعلم.

## قَدْ عَلِمْنَا مَا فَرَضْنَا عَلَيْهِمْ فِي أَزْوَاجِهِمْ وَمَا مَلَكَتْ أَيْمَانُهُمْ

"فرضنا" اى اوجبنا على المؤمنين، په باره کي د دوی د زوجاتو، يعني من شرائط النکاح يعني بحضور الشاهدين، و وجوب القسم عند تعدد الازواج والمهر بالوطي چي مهر مسمىٰ نه وي، او بل دا چي تر څلور بالا دوی ته روا نه دي.

**بوه سه:** چي "وماملکت ايمانهم" عطف دی على ازواجهم اى في ما ملکت ايمانهم چي مينځيانې دي چي يا به يې رانسي وغيره من الاحکام، مثلاً چي مينځه به داسي وي چي و مالک ته يې وطي روا وي، کالکتابية دون المجوسية والوثنية يعني بت پرسته، او استبراء د رحم به يې کوي، يعني يو حيض به وطي نه ورسره کوي چي د کافر څخه حامله نه وي، يعني د حربي څخه چي دا مينځه د هغه مابنه وه او په سبي څني راوستل سول، يا مثلاً په مينځيانو کي خاص عدد نه دی شرط، او بل دا چي مينځياني حق د قسم هم نه لري.

**بوه سه:** چي "قد علمنا" څخه تر دې ځايه پوري جمله معترضه وه.

لِكَيْلَا يَكُونَ عَلَيْكَ حَرَجٌ ۗ وَكَانَ اللّٰهُ غَفُورًا رَّحِيمًا ۝

"لكيلا يكون عليك من حرج" متعلق بقوله خالصة، او دی خدای جل جلاله بخښونکی د هغه فعل چي سړی چاره نه ځني لري، او مهربانه دی په ځای کي د حرج لان الحرج مدفوع في الدين، بغوي رح وايي چي په دې کي اختلاف دی چي د عليه الصلوة والسلام په نکاح کي داسي ښځه وه چي ځان يې بدون المهر و عليه الصلوة والسلام ته هبه کړی وي، ابن عباس رض او مجاهد رح وايي: لم تكن عنده امرئة الا بعقد نكاح او ملک يمين.

**سوال:** د هغه آيت څه معنی ده: وان امرئة وهبت آه؟

**ځواب:** هغه آيت خو پر طريقه د شرط او جزاء راغلی دی، د جمله شرطيه خو تحقق د مقدم او تالي نه دی شرط بلکي امکان يې هم نه دی شرط نحو ان كان زيد حمارًا كان ناهقًا، نور ټوله مفسرين پر دې مسلک دي چي عليه الصلوة والسلام داسي کور والا درلودل چي ځان يې بې ولوره و عليه الصلوة والسلام ته هبه کړی ؤ، قال الشعبي رح هي زينب بنت خزيمة الانصارية چي ام المساكين يې لقب ؤ، او قتاده رح وايي چي دا ښځه ميمونة بنت الحارث رض وه، او علي بن الحسين رض، والضحاک رح او مقاتل رح وايي هي ام شريک بنت جابر من بني اسد، او عروة بن الزبير رح وايي ي خوله بنت حکيم من بني سليم.

**درويش وايي:** چي جمع د دې روایاتو چا نه ده کړې.

تُرْجِي مَنْ تَشَآءُ مِنْهُنَّ وَتُـْٔوِيٓ إِلَيْكَ مَنْ تَشَآءُ ۖ

**پوهه سه:** چي "ترجی" نافع او حمزه او کسائي او ابو جعفر رحمهم الله په ياى ساکنه وايي او نور قاريان يې په همزه مضمومه وايي، ترجئ، والمعنى واحد لان الياء بدل من الهمزة والارجاء هو التاخير وترک الهمزة لغة فيه كذا في القاموس، او په کشف الاسرار کي وايي الارجاء تاخير المرئة من غير طلاق، والمعنى تؤخر من تشاء من ازواج وتترک مفاجعتها من غير نظر الى نوبة وقسم وعدل.

ترجمه: تاخير وکړه يا رجوع وکړه، چي ستا خوښه وي له زوجاتو څخه "وتؤوي" الايواء الانضمام والمضاجعة يعني ته ضمو، و ځان ته هغه څوک چي

ستا خوښه وي من غير التفات الى نوبة وقسمة، يعني فالاختيار بيديک في الصحبة بمن شئت منهن ولو اياماً زائدةً على النوبة وكذا في تركها، او بحر العلوم یې داسې ترجمه کړې ده چې ته طلاقوې من تشاء منهن وتمسک من تشاء منهن.

**درويش وايي:** چې په شان نزول کې ددې آيت اختلاف دی، بغوي رح وايي چې اشهر د اقاويل دا دی چې آيت په قسم کې نازل سوی دی، ولې تسويه په قسم کې واجب وه پر عليه الصلوة والسلام، نو دا آيت چې نازل سو وجوب یې منسوخ سو او اختيار د قسم و عليه الصلوة والسلام ته ورکړه سو او ابن زيد هم داغسې وايي واختاره روح البيان چې زوجاتو د عليه الصلوة والسلام پر ده راجمع سوې او له ده څخه یې زيادت د نفقې او د ثيابو د زينت وکړی، نو عليه الصلوة والسلام له دوی څخه گوښه نشيني مختاره کړه يوه مياشت حتی چې آيت التخيير نازل سو، نو عليه الصلوة والسلام خدای ﷻ امر کړی چې دوی ته اختيار ورکړه په منځ کې د دنيا او آخرت، نو که چا زينت د دنيا مختاره کړی د هغې لاره ور ايله کړه يعني طلاقه یې کړه، او که چا خدای او رسول مختاره کړه هغه درسره وساته چې دوی به امهات المؤمنين وي فلا ينكحهن ابداً، يعني که څه هم عليه الصلوة والسلام وفات سي او بل دا ورته وو ايه چې ځان ته ضموم هغه چې زما خوښه وي ويرجى من اشاء منهن فيرضين به قسم لهن اولم يقسم، يا تفضيل ورکړم بعض ته پر بعض په نفقه کې، نو زوجات مطهرات په دغه راضي سوې او پر دغه شرط دوی عليه الصلوة والسلام مختار کړی.

**درويش وايي:** چې بعض مفسرين وايي چې دا له خصائصو څخه د عليه الصلوة والسلام دي، والحق چې د امت په باره کې هم دغسې ده چې يو سړی ډېرې زوجات لري يعني چې اكثره یې څلور دي، هغه سړی و خپلو ماينو ته دا ويلای سي چې که څوک د حقوق د نکاح من النفقة والتسوية في القسم غواړي فتعالين امتعكن واسرحكن سراحاً جميلاً، او که څوک غواړي چې زما په نکاح کې پاته سي بلا مطالبة النفقة مني على ان آوى الى من اشاء منكن وارجى من اشاء منكن سوا اقسم لكن اولم اقسم او اقسم بعض دون بعض، نو که ماينو و دغه سړي ته وويل چې موږ تا مختاره کوو او تر خپل حق په نفقه او قسم کې بېزاره يو، نو ددې سړي غاړې نه دي بندې يفعل كيف يشاء، بغوي رح وايي چې يو څوک له ازواجو مطهراتو رضي الله عنهن څخه له قسم څخه عليه الصلوة والسلام

خارج کړی دی او که څرنګه؟ بعض مفسرین وايي چې علیه الصلوة و السلام سره ددې اختیاره چې خدای ج ورکړی و ته ورکړی یسوی بینهن ویقسم علی السواء الاسوده رض چې سپین سرې وه او علیه الصلوة والسلام یې اراده د طلاق درلوده، سوده بنت زمعه رض چې خبره سوه، نو علیه الصلوة و السلام ته یې وویل چې ته ما مه طلاقوه زه به خپل نوبت د عائشې رض ته وبخښم. زما غرض فقط دا دی چې په ورځ د قیامت ستا د منکوحاتو په جمله کې حشر سم، او بعض مفسرین وايي چې علیه الصلوة و السلام بعض د ازواجو مطهراتو له قسم ویستلی وې لکه (۱) ام حبیبة (۲) سودة (۳) صفیه (۴) میمونة (۵) جویریة رض، او عائشه، حفصه، زینب او ام سلمة رض و ځان ته ضم کړې، ددې څلورو تر منځ قسم علی السواء ؤ، او هغه نورې پنځه یقسم لهن ما یشاء.

**وَمَنِ ابْتَغَيْتَ مِمَّنْ عَزَلْتَ فَلَا جُنَاحَ عَلَيْكَ**

او که ته طلب وکړې او اراده وکړې چې ځان ته ضم کړې هغه کوروالا چې د قسم څخه دې خارجه کړې وه، پر تا هیڅ ګناه نسته في شيئ من ذالک.

**ذَٰلِكَ أَدْنَىٰ أَن تَقَرَّ أَعْيُنُهُنَّ وَلَا يَحْزَنَّ وَيَرْضَيْنَ بِمَا آتَيْتَهُنَّ كُلُّهُنَّ**

دا تفویض د اختیار و تاته له جانبه څخه د خدای ج، یعني دا امر د تفویض و تاته نژدې دی تا چې ددوی سترګې به خونکې وي چې کنایه ده له خوشالی څخه، او غم به نه کوي او ټولې به راضي وي په هغه شي چې ورکوې یې دوی ته، نو که چیرې ته و ځان ته ضم کړې بعض من عزلت ستا تفضل او احسان به یې بولي، او که عزل کړې هغه به دې پوهیږي چې دا حکم خو د خدای ج دی هغه به هم ستا تفضل او احسان بولي چې په نکاح کې دې پرې ایښي دي، سره ددې چې ته حاجت نه لرې فافهم.

**وَاللَّهُ يَعْلَمُ مَا فِي قُلُوبِكُمْ ۚ وَكَانَ اللَّهُ عَلِيمًا حَلِيمًا ۝**

او الله ښه پوهیږي په هغه څه چې ستاسي په زړونو کې دي (بعض مفسرین وايي چې په دې کې وعید دی و هغو کوروالاؤ ته د علیه الصلوة و السلام چې په مشیت د رسول الله ﷺ نه وې راضي، او بعض وايي چې خدای ج خبر دی چې ستاسي میل او محبت د بعض ما ینو سره سته لکن تاته چې مونږ اختیار درکړی لپاره د آسانی پر تا په میل او محبت کې بعض النساء دون بعض)

"وكان الله عليمًا" او دی الله تعالی دانا، يعني خدای ﷻ عالم دی بما في الصدور "حليمًا" بردبار دی، لايعاجل بالعقوبة للعاصي، نو د خدای ﷻ په حلم دي څوک مغروره نه سي چي دا حلم د خدای ﷻ امهال دی اهمال نه دی.

لَا يَحِلُّ لَكَ النِّسَآءُ مِنۢ بَعْدُ وَلَآ أَنْ تَبَدَّلَ بِهِنَّ مِنْ أَزْوَاجٍ

نه دي روا تاته ښځي يعني ماينې وروسته تر دې ورځي حتی که يوه د موجوده ماينو څخه دي مړه سي، او نه ده تاته روا چي ته بدله کړې بله ښځه په عوض کي د موجوده ښځو يعني چي يوه طلاقه کړې او په عوض کي د هغې بله ښځه وکړې.

**پوه سه**: چي الف ولام د جنس دی جمعيت يې باطل دی، يعني جنس ښځه که يوه وي او که دوې وي.

وَلَوْ أَعْجَبَكَ حُسْنُهُنَّ إِلَّا مَا مَلَكَتْ يَمِينُكَ ۗ وَكَانَ اللَّهُ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ رَّقِيبًا ﴿٥٢﴾

او که څه هم تاته خوند درکوي حسن د هغو، مگر چي ستا په ملک يمين کي وي يعني مينځياني.

**فائده**: اصل د تبدل تتبدل ؤ يوه تاء يې له مضارع څخه د باب تفعل حذف کړه کما هو القانون في باب التفعل، او کلمه د من زائده ده لپاره د استغراق د نفي ده، مفسرين وايي چي رسول الله ﷺ چي ازواج مطهرات ته اختيار ورکړی په مفارقت له ده څخه او په بقاء کي دد نکاح، او دوی بالاتفاق خدای او رسول مختاره کړه، نو خدای ﷻ ددوی دا اختيار مقبول وګرځاوه. او حرامي يې وګرځولې پر عليه الصلوة والسلام باندي نکاح د ماسوی ددوی، او عليه الصلوة والسلام يې نهي کړی له طلاق څخه ددوی او په عوض کي د بلي ماينه کولو، وهذا قول ابن عباس وقتادة رضي الله عنهم، واختاره صاحب روح البيان، وروی ابو داؤد في ناسخه وابن مردوية والبيهقي في سننه عن انس رضي الله عنه لما خيرهن فاخترن الله ورسوله قصره عليهن. فقال سبحانه لايحل لک النساء من بعد، وروی ابن مردوية عن ابن عباس رضي الله عنهما چي ددې آيت په تفسير کي يې وويل چي خدای عليه الصلوة والسلام بند کړی پر دغو ښځو چي دی يې مختاره کړی لکه دا ښځي يعني ازواج الرسول ﷺ پر عليه

الصلوة والسلام بندي وي يعني چي وروسته تر وفات د عليه الصلوة والسلام هيڅ چاته يې نکاح نه وه روا، وسماهن امهات المؤمنين باعتبار حرمة نكاحهن على احد من امته، او بعض مفسرينو د بعد مضاف اليه داسي مقدر کړی دی ای من بعد اختيارهن الله تعالى ورسوله، قال الامام في التفسير الكبير وهذا الحذف هو الاولى لكونه ادل على ان التحريم كان كرامة لهن وشكرًا على حسن صنيعهم، او بحر العلوم له ابن عباس او له قتاده رضي الله عنه څخه نقل کړی دی چي ازواج مطهراتو ته چي خيار ورکړل سو او دوی خدای او رسول مختاره کړه، خدای ج دوی ته دا عوض ورکړی چي حرامي يې وګرځولې غير د دوی او يا تبديل د دوی ونسخ سبحانه وتعالى ما اباحه الله له قبل من التوسعة في جميع النساء، وحكى عن مجاهد رح وابن جبير رض ان المعنى من بعد اباحة النساء على العموم، وقيل من بعد التسع على ان المعنى ان هذا العدد مع قطع النظر عن خصوصية المعدود.

**درويش وايي:** وهذا قول ضعيف لان اختيار الله ورسوله صدر عن النساء المخصوصة رضي الله عنهن، بخاري او مسلم له انس رضي الله عنه څخه روايت کړی دی چي څه وخت چي عليه الصلوة والسلام زينب بنت جحش رض په نکاح کړه يعني را واده يې کړه، نو خلګو ته يې مهماني جوړه کړه او په ډوډی او غوښو يې فوجًا فوجًا ماړه کړه، نو هر چا چي به ډوډی وخوړله هغه به ولاړېدی، اخير څو نفره په حجره کي پاته سوه چي مجلس يې شروع کړی، نو عليه الصلوة والسلام به ځان وه ولاړي ته جوړاوه يعني چي دوی وپوهېږي ولاړ به سي، خو دوی نه ولاړېدل، نو عليه الصلوة والسلام وويل چي دوی په اشاره نه پوهېږي نو په خپله ولاړ سو، نو بعض د ده مبارک په ولاړېدلو سره ولاړ سوه، درې نفره پاته سوه، نو د عليه الصلوة والسلام دا خيال سو چي ټوله به ولاړ سوي وي، نو دی چي کوټې ته ورغلی هغه درې کسه ناست وه بيرته وګرځېدی، هغه درې کسه پوه سوه او ولاړ سوه، انس رض وايي چي ورغلم عليه الصلوة والسلام مي خبر کړی چي هغه درې کسه ولاړه، نو عليه الصلوة والسلام چي خوني ته داخل سو انس رض وايي چي ما هم وغوښتل چي خوني ته ورسره داخل سم عليه الصلوة والسلام پرده الله يعني د خونې پر دروازې يعني زه يې ګويا اشارةً له دخول څخه منع کړم، فانزل الله تعالى:



Scanned by CamScanner

يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تَدْخُلُوْا بُيُوْتَ النَّبِيِّ

اې هغه كسانو چې ايمان يې راوړى دى تاسې مه داخلېږئ و خونو ته د نبي [۴].

**بوه سه:** چې ابن شهاب رح له انس رض څخه روايت كړى دى چې زه د لسو كالو وم چې عليه الصلوة والسلام مديني منورې ته تشريف راوړى، نو زما مور او پلار زه باعثه كولم چې ته به د عليه الصلوة والسلام خدمت كوې، نو لس كاله يې ما خدمت وكړى، نو عليه الصلوة والسلام چې وفات كېدى زه د شلو (۲۰) كالو وم دى وايي چې زه اعلم الناس يم په شان سره د حجاب او ستر، حين نزل يعني هغه وخت نازل سو د حجاب آيت چې عليه الصلوة والسلام د زينب رض په حجره ننوتى او زما او خپل تر منځ يې پرده واچول، آيت د حجاب هم نازل سو.

**سوال:** هغه درو كسانو چې مجلس يې كاوه عليه الصلوة والسلام به ورته ويلي واى چې ډوډى مو وخوړله نو ولاړ سئ؟

**ځواب:** رسول الله ﷺ كثير الحياء ؤ.

اِلَّآ اَنْ يُّؤْذَنَ لَكُمْ اِلٰى طَعَامٍ غَيْرَ نٰظِرِيْنَ اِنٰىهُ

"الا" استثناء مفرغ ده منصوب على الظرفية ده يعني لاتدخلوا في وقت من الاوقات الا وقت ان يؤذن لكم "الى طعام" و ډوډى ته، دا متعلق دى په يؤذن پورې، په دې كې اشاره ودې ته ده چې دخول د طعام لپاره دي بېله دعوته د عليه الصلوة والسلام څوك نه كوي "غير ناظرين اناه" اى غير منتظرين تر وخته د پخېديا د طعام.

**بوه سه:** چې دا آيت خاص په هغه پورې دى چې د طعام لپاره ورسي.

**بوه سه:** چې غير ناظرين حال دى له فاعل څخه د لاتدخلوا، نو استثناء پر ظرف او حال دواړو واقع ده كانه قيل لاتدخلوا بيوت النبي الا حال الاذن والدعوت ولاتدخلوا الا غير ناظرين اناه. يعني چې ورتګ د يو كار لپاره وي وروسته مجلس پسې او ږد سي تر وخته د ډوډى د پخېدلو.

وَلٰكِنْ اِذَا دُعِيْتُمْ فَادْخُلُوْا فَاِذَا طَعِمْتُمْ فَانْتَشِرُوْا

لكن كه دعوت در كړل سو د ډوډى خوړلو لپاره كما في متبنى رسول الله ﷺ بزينب بنت جحش رض. نو چې ډوډى مو وخوړله نو سره پراګنده سئ هورې د رنګ مه كوئ.

**فائده**: دا آیت کمامر مخصوص په داخلېدلو پوري د دوه دی لپاره یعني درنګ مه کوئ په کور کي د علیه الصلوة والسلام وروسته تر دوه دی خوړلو، او که دخول بالاذن د طعام لپاره نه وُ بلکې د مشورې لپاره وُ پر یو امر مهم هغه تر دې آیت نه دی لاندي. یعني که هر څومره مکث وکړئ د مهم د مشورې تر پایه رسېدلو پوري ما مور په فانتشروا سره نه دی.

## وَلَا مُسْتَأْنِسِينَ لِحَدِيثٍ

**پوه سه**: چي د استیناس معنی الفت ګرفتن او حدیث نفس خبرو ته وایي کدلږ وي او که ډېري، معنی د آیت داده فارسي: ونه شنید آرام ګرفته ګان برای سخن بایکدیګر، پښتو ترجمه: مه کښېنئ په ارام صرف د خبرو لپاره یو د بل سره لګه دمخه چي تېره سوه چي په مبتنی کي د علیه الصلوة والسلام د زینب سره درې کسه په حجره کي د خبرو لپاره ناست وه.

## إِنَّ ذَٰلِكُمْ كَانَ يُؤْذِي النَّبِيَّ فَيَسْتَحْيِي مِنكُمْ

بېشکه چي دا مکث او درنګ د خبرو لپاره ازار رسېږي علیه الصلوة والسلام ته، ولې چي ددوی حجره تنګوي پر علیه الصلوة والسلام او پر اهل دده چي په موجوده حال کي زینب رض وه چي هغه په داغه حجره کي ناسته وه، قبل الحجاب او دا خبري ددوی په عین حال اشتغال په ما لایعني پوري دی، او دی له تاسي څخه شرمېږي چي په خوله درته ووایي ووځئ.

## وَاللَّهُ لَا يَسْتَحْيِي مِنَ الْحَقِّ

"والله لایستحي آه" عطف دی پر ماقبل والمعنی انه تعالی لایترک تادیبکم فان التادیب حق.

## وَإِذَا سَأَلْتُمُوهُنَّ مَتَاعًا فَاسْأَلُوهُنَّ مِن وَرَاءِ حِجَابٍ

چي تاسي سوال کوئ یعني غواړئ له نساء څخه د علیه الصلوة والسلام "متاعا" ای شیئا ینتفع به استعارة یې غواړئ چي دې ته ماعون وایي لکه یو کاسه، یا کوزه یا ستړخوان وغیرها او یا رد د عاریت ورته کوئ، نو تاسي سوال څني کوئ د هغه متاع د پردې د دباندي خوا څخه.

**سوال:** د نساء لفظ خو د مخه نه دی تېر سوی، نو څرنګه ضمير د هن دوی ته راجع سو؟

**ځواب:** له بيوت النبي څخه دوی و فهمېدې، ولې چي په بيوت النبي کي خو نساء النبي وې، نو مرجع الضمير حکمًا مذکور دی.

**پوه سه:** چي دا جمله يعني واذا سئلتموهن آه عطف على قوله لاتدخلوا بيوت النبي آه، بغوي رح وايي چي وروسته تر نزول د آية الحجاب او د دې آيت لم يکن لاحد ان ينظر لامرئة من نساء النبي ﷺ که يې مخ پټ وي او که لڅ، بلکې من وراء الحجاب به يې خبري ورسره کولې.

**ذٰلِكُمْ أَطْهَرُ لِقُلُوبِكُمْ وَقُلُوبِهِنَّ ۚ**

"ذالکم" اى السوال من وراء الحجاب ډېر بنه پاکونکی دی د زړو ستاسي او د دوی د شيطاني وسوسو څخه.

**درويش وايي:** چي لوی باعث پر حجاب د ازواجو مطهراتو رض عمر بن الخطاب رض ؤ کما اخرج البخاري وابن جرير وابن مردوية عن انس رض قال قال عمر بن الخطاب رض يا رسول الله يدخل عليک البر و الفاجر فلو امرت امهات المؤمنين بالحجاب وکان رض حريصًا على حجابهن او دا حرص دده حبًا لرسول الله ﷺ ؤ، په حديث کي راغلي دي چي عمر رض يو وخت په مسجد نبوي کي تېرېدی په مسجد کي ازواج مطهرات رض د نورو ښځو سره په لڅ مخ ناستي وې، نو عمر رض و ازواجو مطهراتو ته وويل چي مخان پټ کړئ فان لکن على سائر النساء فضلاً کما ان لزوجکن يعني رسول الله ﷺ على الرجال فضل. فقال زينب رض انک يا ابن الخطاب ته غيرت کوې پر موږ باندي يعني چي څوک ستاسي مخ ونه ويني، والوحي ينزل في بيوتنا، اخرج ابن ابى حاتم عن ابن زيد ان رجلاً يقول، چي که چېري عليه الصلوة والسلام وفات سو زه به فلانی ښځه دده په نکاح کوم، قال سفيان ذکر انها عائشة رض، او له سدي رح څخه روايت دی انه بلغنا موږ ته دا خبره رسېدلې ده چي طلحة بن عبيد الله وويل چي محمد موږ منع کوي د خپل د اکا د لمنو څخه يعني چي بې حجابه خبري نه ورسره کوي، ويتزوج نسائنا من بورنا، يعني که موږ مړه سو دی زموږ ښځي په نکاح کوي

لان حدث حدث، نو که یو نوی کار پېښ سو يعني عليه الصلوة و السلام وفات سو، لتتزوجن نسائه من بعده، نو پر هر شان نزول دا آيت نازل: وما كان لكم الآية. او په بعض رواياتو كي چي ابن سعد يې روايت کړی دی چي دا آيت په طلحة بن عبيد الله رضي الله عنه كي نازل سوی دی چي ده به وويل که عليه الصلوة و السلام وفات سو زه عائشه رضي الله عنها په نكاح كوم، او له ابن عباس رضي الله عنه څخه روايت دی چي يو سړی بعض ازواجو ته د عليه الصلوة و السلام ورغلی، نو ده د هغې سره بې حجابه خبري كولې او هغه سړی د دې رضي الله عنها د اكا زوی ؤ، نو عليه الصلوة و السلام و هغه سړي ته وويل لاتقوم من هذا المقام بعد يومک، دې سړي ورته وويل يا رسول الله انها ابنت عمي و الله ما قلت لها منكرًا ولا قالت لي، قال قد عرفت ذالک لکن ليس احد اغير من الله و انه ليس احد اغير مني، هغه سړی ولاړی لکن دا خبره يې وکړه چي رسول الله ﷺ ما د خپل اكا د لور له خبرو څخه منع كوي، نو که عليه الصلوة و السلام وفات سو زه به دا غه زما د اكا لور چي د عليه الصلوة و السلام اوس مانينه ده په نكاح كوم به يې، فانزل الله تعالى هذه الآية، ابن عباس رضي الله عنه وايي چي دغه سړي وروسته تر دې ناوړي خبري يو مريی ازاد کړی او لس اوښان يې في سبيل الله خلكو ته ورکړه او پر خپلو پښو حج ته ولاړی دا ټول له كارونه يې وکړه لپاره د توبې د خپلې هغې خبري څخه.

بغوي رحمه الله وايي چي معمر د زهري رحمه الله څخه روايت کړی دی چي العالية بنت ظبيان چي عليه الصلوة و السلام طلاقه کړې وه د يو سړي سره يې نكاح وکړه و ولدت له وذالک قبل تحريم ازواج النبي ﷺ على الناس.

**فائده**: دا حكم د عدم صحت د نكاح د زوجاتو د رسول كريم ﷺ مخصوص په هغه ښځه پوري دی چي عليه الصلوة و السلام دخول په کړی وي.

**درويش وايي**: چي ټوله ورځ د يكشنبې چي دا مقام ما نوشته كاوه په اضطراب او شک كي وم چي طلحة بن عبيد الله رضي الله عنه خو يو د عشره مبشره بالجنة دی، او بل د احد په غزاء كي چي مسلمانان سره متفرق سوه او د عليه الصلوة و السلام سره صرف دوولس كسه پاته سوه يو په هغو كي طلحة بن عبيد الله رضي الله عنه ؤ چي پر عليه الصلوة و السلام محبوب ؤ يعني پر عليه الصلوة و السلام يې ځان نسكور کړی ؤ چي پر عليه الصلوة و السلام به هر څه د كفارو د تورو يا د غشو وارونه

راالله طلحة بن عبيد الله ﷺ پر خپل بدن د علیه الصلوة و السلام څخه کرځول چي په دي دروان کي د طلحة بن عبيد الله ﷺ بدن څو ځایه زخمي سو او یو لاس یې هم شل سو او علیه الصلوة والسلام دده په شان کي داسي ویل: قد اوجب طلحة (طلحه ځان ته جنت واجب کړی) نو زه حیران وم چي طلحة بن عبيد الله ﷺ به څرنګه ویل چي که علیه الصلوة و السلام وفات سو زه عائشه ﷺ په نکاح کوم او دا خبره روح المعاني، روح البیان او مظهري هم راوړې ده، بالآخیر گفته اند که:

هر که جوینده بود ...... یا بنده بود

د دوشنبې په ورځ چي له جامع مسجد څخه راغلم د حافظ جلال الدین السیوطي ﷺ دا قول مي پیدا کړی چي دا طلحة بل سړی دی، طلحة بن عبيد الله المشهور نه دی، وقد كنت في وفقة شديدة عن صحت هذا الخبر (یعني د طلحة بن عبيد الله ﷺ په خبر کي) لان احد العشرة المبشرين بالجنة اجل مقامًا ان يصدر منه القول المذكور حتى رئيت في كتابه اى كتاب الحافظ جلال الدين السيوطي ﷺ ان طلحة القائل للقول المذكور رجل آخر، لكن وافقه في اسمه وفي اسم ابيه ونسبته فحمدت الله ﷻ على ان خلص قلبي عن الاضطراب والشک في صحة الخبر المذكور كما في انسان العيون.

درویش هم په خپل وار وايي الحمد لله چي زما د زړه اضطراب او شک هم خدای ﷻ زائل کړی او دا شک او اضطراب زما د تفسیر د مطالعه کوونکو د زړو څخه به هم ووځي ان شاء الله تعالی، او د حاسدینو پر خلو مهر آهني ولګېدی چي عبيد الله پر طلحة بن عبيد الله ﷺ څونه دروا غ ویلي دي. او هم پر نورو مفسرینو چي دا حکایت د طلحة بن عبيد الله ﷺ قلم زد کړی دی، ژبه د اعتراض به یې بنده سي.

**درویش وايي:** وهؤلاء التسع التي مات رسول الله ﷺ عنهن وتركهن قد نظمهن بعض الشعراء:

توفى رسول الله عن تسع نسوة .... اليهن تعزى المكرمات وتنسب
فعائشة ميمونة وصفية وحفصة .... تتلوهن هند وزينب
جويرية مع رملة وسودة .... ثلاث وست ذكرهن ليعذب

وَمَا كَانَ لَكُمْ أَنْ تُؤْذُوْا رَسُوْلَ اللّٰهِ وَلَآ أَنْ تَنْكِحُوْٓا أَزْوَاجَهٗ مِنْۢ بَعْدِهٖٓ أَبَدًا ۚ

نه دی صحیح او روا چي تاسي به ازار ورسوئ و رسول اللهﷺ ته یعني نه په خوله او نه په فعل او نه په اشاره، او نه دا صحیح او روا ده چي تاسي به په نکاح کوئ ازواج دده وروسته تر وفات دده ترابده پوري. لانهن امهات جمیع المؤمنین الی یوم القیامة.

إِنَّ ذٰلِكُمْ كَانَ عِنْدَ اللّٰهِ عَظِيْمًا ﴿٥٣﴾

دا نکاح د ازواجو دده دی عند الله په نېز د خدای ج گناه ده لویه. مظهري وايي وجاز ان یکون ذالک لاجل ان النبيﷺ حي في قبره المبارک، ولذالک لم یورث. او ازواج کونډیانې نه دي. عن ابی هریرةؓ قال قال رسول اللهﷺ من صلی علي عند قبري سمعته (که چا درود ووایه پر ما بندي زما د قبره سره زه یې اورم) ومن صلی علي نائبًا (یعني د لېري ځایه) ابلغته (ماته را رسول کېږي یعني ملائکې یې را رسوي) رواه البیهقي في شعب الایمان.

إِنْ تُبْدُوْا شَيْئًا أَوْ تُخْفُوْهُ فَإِنَّ اللّٰهَ كَانَ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيْمًا ﴿٥٤﴾

که تاسي ښکاره کړئ یو شی یعني من اذی النبيﷺ او من نکاح ازواجه ''او تخفوه'' یا یې په زړه کي پټ وساتئ (قال البغوي رح نزلت فیمن من اضمر نکاح عائشةؓ بعد رسول اللهﷺ) نو په تحقیق خدای ج په هغه خبر دی فیجازیکم علیه. بغوي او روح المعاني او روح البیان وايي چي څه وخت چي آیت د حجاب نازل سو او خبري د ازواج المطهرات سره من وراء الحجاب وګرځېدلې، نو پلرو، ورونو او زامنو د ازواج المطهرات وویل چي موږ به هم خبري ددوی سره وراء الحجاب کوو؟ نو دا آیت نازل سو.

لَا جُنَاحَ عَلَيْهِنَّ فِيْٓ اٰبَآئِهِنَّ وَلَآ أَبْنَآئِهِنَّ وَلَآ إِخْوَانِهِنَّ وَلَآ أَبْنَآءِ إِخْوَانِهِنَّ وَلَآ أَبْنَآءِ أَخَوٰتِهِنَّ

ګناه نسته پر دوی په ترک د حجاب د پلرو سره ددوی او د زامنو سره ددوی او نه ورونو سره ددوی او نه د زامنو سره د ورنو ددوی چي وراره یې بولي او نه په زامنو کي د خوندو ددوی چي خوریی یې بولي، وروی ذالک عن قتادة رح او مجاهد رح وایي چي مراد دا دی چي لاجناح علیهن چي پوړنی یې نه وي پر سر د

دغو كسانو د ملاقات په وخت كي او ښكاره كول د زينت ودغو كسانو ته.

**درويش وايي:** چي كه څه هم دا مسئله خو صحيح ده لكن تفسير ددې آيت په دغه سره كول له سياق څخه د كلام مخالف دى لان سوق الكلام في التكلم معهن من وراء الحجاب، روح المعاني وايي چي په حكم كي د مذكورينو دى هر ذى رحم محرم على التابيد كه د نسب د لاري وي او كه د رضاع د لاري على ما روى ابن سعد عن الزهري رح.

**سوال:** اكا او ماما يې نه كړى ذكر؟

**خواب:** لانهما بمنزلة الوالدين يعني العم بمنزلة الاب والخال بمنزلة الام، او يا يې نه كړه ذكر اغناء عنهما بذكر ابنائهما، روى البخاري عن عروة بن الزبير رض ان عائشة رض استأذن عليها افلح اخ ابى القعيس بعد ما انزل الحجاب، ما ورته وويل چي زه تر هغو اجازه نه دركوم چي د عليه الصلوة والسلام سره مشوره نه وي كړې فان اخاه ابو القعيس ليس هو ارضعني يعني دده ورور خو ماته شيدې نه دي راكړي، د ابى القيس مايني ماته شيدې راكړي دي، فدخل على النبي ﷺ ما ورته وويل چي افلح ورور د ابى القعيس زما څخه اجازه وغوښتل فابيت ان اذن له حتى استأذنك فقال النبي ﷺ تأذنين عمك ما عليه الصلوة والسلام ته وويل يا رسول الله ان الرجل ليس هو ارضعني لكن ارضعتني امرئة ابى القعيس، فقال ع اذني له فانه عمك تربت يمينك (دا يو لفظ دى چي عرب يې په وخت كي د غضب استعمالوي حقيقت يې مراد نه دى بلكې كنايه ده له ذلت څخه.

وَلَا نِسَآئِهِنَّ وَلَا مَا مَلَكَتْ اَيْمَانُهُنَّ ۚ وَاتَّقِيْنَ اللّٰهَ ۚ اِنَّ اللّٰهَ كَانَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ شَهِيْدًا ﴿٥٥﴾

نه له ښځو څخه ددوى دي حجاب كوي يعني مؤمنات، يعني يوه مسلمه بلې مسلمې ته بيله حجابه كتلاى سي، سوى مابين السرة والركبة، او نه دي حجاب كوي د هغه مريي او مينځي څخه چي د ازواج مطهراتو په ملك يمين كي وي لكن فقهاء وايي چي د مريي څخه به حجاب كوي نه د مينځي څخه كه څه هم يهوديه يا نصرانيه وي، په تحقيق خداى پاک قادر دى پر هر شي د افعال د عبادو حاضر يعلم عالم نو هر چاته به جزاء د خپل عمل وركوي.

**فائده**: ابو حنیفة رحمه الله سرة یعني نو عورت بولي کشف یې روا نه دی.

**درویش وایي**: چي ددې په رڼا کي کتابیات یعني یهودیات او نصرانیاتو ته دي د دخول علیهن اجازه نه ورکوي. او یا مراد د نسائهن څخه مسلمات او کتابیات دواړه مراد دي.

**سوال**: نو د اضافت معنی څه ده یعني نسائهن، یعني که د کتابیات څخه حجاب نه وي لازم؟

**ځواب**: د اضافت معنی صرف اشتراک دی په جنسیة کي د انوثة، نو پر دې تقدیر دخول د کتابیاتو پر مسلماتو بیله حجابه روا دی، بدلیل ان النساء الکوافر من الیهودیات والنصرانیات وغیرهن یدخلن علی نساء النبي ﷺ، نو ازواج مطهراتو ستر نه ځني کاوه، وهو قول ابی حنیفة، ومالک واحمد رحمهم الله کذا في روح البیان.

**إِنَّ اللَّهَ وَمَلَٰٓئِكَتَهُۥ يُصَلُّونَ عَلَى ٱلنَّبِيِّ ۚ**

په تحقیق خدای ﷻ او ملکي د خدای ﷻ درود وایي پر نبي ﷺ.

**درویش وایي**: چي قدیمًا او حدیثًا د علماء اختلاف دی په صلوة کي د خدای او د ملکو پر نبي ﷺ علی اقوال، فقیل هي ای الصلوة من الله ﷻ ثنائه علیه في مجمع الملائکة وتعظیمه تعالی ایاه، رواه البخاري عن ابی العالیة وغیره عن الربیع عن انس رضي الله عنه وجری علیه الحلیمي في شعب الایمان وتعظیمه تعالی في الدنیا باعلاء ذکره واظهار دینه وابقاء العمل بشریعته حتی عند نزول عیسی علیه السلام من السماء، وفي الآخرة بتشفیعه في امته واجزال اجره ومثوبته الاولین والآخرین وتشریفه بالمقام المحمود کما جاء في الحدیث الصحیح وتقدیمه علی کافة المقربین.

**پوښتنه**: پر دې تفسیر به عطف د آله و اصحابه څرنګه صحیح سي لانه لایتصور الامور المذکورة والفضائل الجلیلة في آله واصحابه کما لایخفٰی؟

**ځواب**: دا عطف منافي د دغو تشریفاتو سره نه دی لان تعظیم کل احد بحسب مایلیق به او صلوة د ملائکة دعا ده د علیه الصلوة والسلام لپاره کما رواه عبد بن حمید وابن ابی حاتم عن ابی العالیة، وقیل الصلوة منه تعالی رحمة الله ﷻ ونقله الترمذي عن الثوري وغیر واحد من اهل العلم ونقل عن ابی العالیة ایضًا والضحاک وجری علیه المبرد وابن الاعرابي والامام الماوردي رحمهم الله.

**درویش وایي:** چي دا تفسیر د وړاندي تفسیر سره سمون لري کـه څـه هم پـه حسب د ظاهر تفسیر اول اجمع من هذا التفسیر، ووجه الجمع چي مراد د رحمة څخه د خدای ﷻ د علیه الصلوة والسلام رحمت خاصعة د خدای ج دی، والرحمة الخاصة یشتمل ردائها علی الامور المذکورة في التفسیر الاول فافهم.

**سوال:** پـه حدیث شریف کي راغلي دي چي دا آیت چي نـازل سو، اصحاب الکرام ﷺ د کیفیت پوښتنه وکړه له کیفیت څخه د صلوة الله ﷺ، نو کـه صحابة ﷺ بي مغایره د دې صلوة چي پـه دې آیت کي او د رحمت تـر منځ نـه وای فهمولای ماسألوا عن کیفیتها مع کونهم علموا الدعاء بالرحمة في التشهد.

**ځواب:** دوی چي پـه دې پوه سوه چي پـه دې آیت کي مراد رحمت خاصه دی، نو ځکه یې سوال د کیفیت وکړی تـاچه علم احاته وکړي پر مراد مخصوص پـه دې آیت کي.

**پوښتنه:** د صـلوة الله معنی تاسي واورېده او د صلوة الملائکة معنی مـو هـم واورېده، نـو لـه دې څخـه دا ثابتـه سوه چي صلوة لفظ مشترک دی بین المعنیین واستعمال اللفظ المشترک بین المعنیین لایجوز في المعنیین عند کثیر من العلماء کالحنفیة رح، د دې پوښتنې پـه ځواب کي بعض علماء وایي چي پـه آیت کي محذوف سته، والتقدیر ان الله یصلي وملائکته یصلون علی النبي، فیراد بکل لفظ صلوة معناه في صلوة الله ومعناه في صلوة الملائکة، وقال صدر الشریعة رح چي پـه آیت کي لـه صـلوة څخه معنی حقیقي مراد ده وهو الدعاء، والمعنی والله اعلم ان الله تعـالی یدعو ذاتـه ج والملائکة یدعون بایصال الخیر الیه ع ویرد علیه ان ذالک ای الدعاء محال وذالک في حقه تعالی لان الدعاء طلب شيئ د بله څخه وتفسیر الدعاء بالرحمة خلاف الاجماع، الا ان یقال مراده صدر الشریعة رح ارادة د رحمت لـه دعاء څخه مجازاً لاان الدعاء بعینه الرحمة فافهم، والصحیح ما قال بعض المحققین ان المراد بالصلوة في الآیة معنی مجازي عام شامل لصلوة الله وصلوة الملائکة چي دې تـه پـه عـرف کي عموم مجاز وایي، وهذا المعنی المجازي العـام کما في البیضاوي و روح المعـاني وغیرهما هؤلاء د غـه ذوات چي خدای ج او ملکي اعتنـا کوي بمـا فیه خیره، فـالمعنی للآیة ان الله وملائکتـه یعتنـون بـامر النبي ﷺ وکـل واحد من المعنیین المذکورین للصلوة من الله ومن الملائکة فرد حقیقي لهذا المعنی المجازي العام کما لایخفی.

**درويش وايي:** چي وهذا بذل مجهود الفقير في تفسير هذه الآية المتلوة والله اعلم بمراده في كتابه وما علينا الا بذل المجهود.

يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ صَلُّواْ عَلَيۡهِ وَسَلِّمُواْ تَسۡلِيمًا ﴿٥٦﴾

اى هغه كسانو چي ايمان يې راوړى دى تاسي هم د دعاء وكړئ و عليه الصلوة والسلام ته په نزول د رحمت خاصه پرده او اسلام، يعني سلام د تحية ووايئ پر ده، يعني قولوا السلام عليك ايها النبي ورحمة الله وبركاته.

**درويش وايي:** چي په داسي هيڅ عبادت موږ نه يو امر سوي چي د هغه عبادت نسبت دى اولاً خداى ﷻ و ځان ته وكړى او ثانيًا دې و ملكو ته كړى وي، او ثالثًا دې موږ په امر كړي يو بېله درود د عليه الصلوة والسلام حيث قال الله تعالى ان الله وملائكته يصلون على النبي يا ايها الذين صلوا عليه وسلموا تسليمًا ومن ذالك يظهر شرف الصلوة والسلام على النبي ﷺ.

**فائده:** دا آيت دلالت كوي پر وجوب د صلوة او د سلام في الجملة ولو في العمر مرة لان الامر المطلق عن القرائن يدل على الوجوب على ما قال به الاصليون يعني علماء علم الاصول وبه قال ابو حنيفة رح ومالك رح واختاره الفقيه ابو جعفر الطحاوي رح في شرح معاني الآثار، وقال ابن الهمام في فتح القدير موجب الامر القاطع (اى المجرد عن القرائن) الافتراض في العمر مرة لان الامر لايقتضى التكرار كما ثبت في الاصول وقلنا به، وقيل يجب في كل صلوة بعد التشهد في القعدة الآخيرة، وبه قال احمد والشافعي رح وفي كتاب رحمة الامة في اختلاف الائمة الصلوة على النبي ﷺ في التشهد الآخير عند ابى حنيفة ومالك رح سنة، وعند الشافعي رح فرض، وقال احمد رح في اشهر روايته يبطل الصلوة بتركها، وقيل يجب الصلوة كلما جرى ذكره ﷺ سواء كان باسمه العلم يعني محمد و احمد او بصفة الخاصة كالنبي والرسول وبه قال الامام الكرخي رح.

**فائده:** لايكفى في الصلوة عليه عند ذكره ﷺ الاكتفاء بالاشارة اليه نحو: با صلعم بل لابد ان يقول ﷺ.

**درويش وايي:** چي په صحيح حديث كي راغلي دي چي عليه الصلوة والسلام وويل چي څوك چي درود ووايي پر ما په يو كتاب كي هغه ته ملكي دعاء كوي ما دام اسمي في ذالك الكتاب، فقير وايي: الحمد لله والمنة د تفسير ايوبي د ليكلو

په اوږدو کي ما هيڅ ځای چي د نبي کريمﷺ ذکر د اسم جليل راغلی وي يا په وصف جميل ما پوره درود نه دی پرې ايښی، دا ما فقير لره د خوشالی ځای دی، دلائل وجوب الصلوة والسلام کلما جری ذکرهﷺ.

(۱) له ابو هريرهؓ څخه روايت دی: رغم انف رجل (پزه دې په خاورو وي، کنايه ده له ذلت څخه) ذکرت عنده فلم يصل علي، ورغم انف رجل دخل عليه رمضان ثم انسلخ قبل ان يغفرله (يعني رمضان يې په لهو ولعب پر تېره سي نه په عبادت، ورغم انف رجل ادرک عنده ابواه الکبر او احدهما فلم يدخلاه الجنة يعني په حسن خدمت د دوی او په دعاوو سره د دوی، رواه الترمذي وغيره.

(۲) حديث جابر بن سمرةؓ قال قال رسول اللهﷺ من ذکرت عنده فلم يصلي علي فدخل النار (۳) حديث ابن عباسؓ مرفوعًا آتاني جبرئيل من ذکرت عنده فلم يصل عليک فدخل النار فابعده اللهﷻ (۴) عن عليؓ قال رسول اللهﷺ البخيل من ذکرت عنده فلم يصل علي، رواه الترمذي (۵) عن الحسين بن عليؓ من ذکرت عنده فخطئ الصلوة علي خطئ طريق الجنة (۶) قال رسول اللهﷺ من صلى علي واحدة صلى الله عليه عشرًا، کذا في الحصن الحصين.

**فائده:** له کعب بن عجرةؓ څخه روايت دی چي موږ سوال وکړی د رسول اللهﷺ څخه، فقلنا يا رسول الله کيف الصلوة عليکم اهل البيت فان الله قد علمنا کيف نسلم عليک (يعني السلام عليک يا رسول الله) عليه الصلوة والسلام وويل قولوا: اَللّٰهُمَّ صَلِّ عَلٰی مُحَمَّدٍ وَّعَلٰی آلِ مُحَمَّدٍ کَمَا صَلَّيْتَ عَلٰی إِبْرَاهِيْمَ وَعَلٰی آلِ إِبْرَاهِيْمَ إِنَّكَ حَمِيْدٌ مَّجِيْدٌ اَللّٰهُمَّ بَارِكْ عَلٰی مُحَمَّدٍ وَّعَلٰی آلِ مُحَمَّدٍ کَمَا بَارَکْتَ عَلٰی إِبْرَاهِيْمَ وَعَلٰی آلِ إِبْرَاهِيْمَ إِنَّكَ حَمِيْدٌ مَّجِيْدٌ. (متفق عليه) (۷) وعن انسؓ قال رسول اللهﷺ من صلی علي صلوة واحدة، صلى الله عليه عشر صلوات وحطت عنه عشر خطيات ورفعت له عشر درجات، رواه احمد والبخاري في الادب المفرد والنسائي وغيرهم.

(۸) عن ابن مسعودؓ قال قال رسول اللهﷺ اولی الناس بي يوم القيامة (ای اقربهم) اکثرهم صلوة، رواه الترمذي (۹) وعن ابن مسعودؓ قال قال رسول اللهﷺ ان لله ملائکة سياحين في الارض (يعني په ځمکه کي ګرځي) يبلغني عن امتي السلام (۱۰) عن ابي هريرةؓ قال قال رسول اللهﷺ ما من احد يسلم علي

(ای عند قبري) الا رد الله علي روحي حتى ارد عليه السلام، رواه ابو داؤد.

(۱۱) لـه ابی طلحة ﷺ څخـه روايت دی چي رسـول الله ﷺ يوه ورځ مسجد ته راغلی او په مخ مبارک کي يې اثار د خوشالی معلومېدل، او وه يې ويل چي جبرئيل ماته راغلی او وه يې ويل چي ستا رب وايي، اما يرضيک يا محمد ان لا يصلي عليک احد من امتک الا صليت عليه عشرًا ولا يسلم عليک احد من امتک الا صليت عليه عشرًا، رواه النسائي.

**درويش وايي**: چي د درود ويلو پر عليه الصلوة والسلام فائدې روح البيان په اوراقـو کـي بيـان کـړي دي، وبالجملـة الا ايهـا الاخـوان صـلوا وسـلموا على المصطفى في كل وقت وساعة، فان الصلوة الهاشمي محمد ؑ، نجى من الاهوال يوم القيامة.. وبالفارسية:

يا سيـد الانام درود وسلام تـو .... ورد زبان ما است مه وسال وصبح وشام

نزديک ما چه تحفه فرستيم ما زدور .... دردست ما همين صلاتست والسلام

**مسئله**: هل يجوز الصلوة والسلام على غير الانبياء؟ والصحيح انه يجوز تبعًا ويكره استقلالاً، مثلاً يجوز ان يقول الرجل الصلوة والسلام على سيدنا محمد وعلى آلـه واصـحابه وابى حنيفـة واتباعـه، دليـل ددې مسـئلې دادی چي صلوة والسلام خاصه د انبياء ده في عرف الشريعة كما ان عزوجل خاصه د خدای ج ده فيكره ان يقال محمد ﷺ مع كونه عزيزًا جليلاً فافهم.

## إِنَّ الَّذِينَ يُؤْذُونَ اللَّهَ وَرَسُولَهُ

په تحقيق هغه کسان چي بد نسبت کوي و خدای ج ته (داسي ترجمه يې نه ده چي خدای ج ته ازار رسوي لان ذالک غير ممکن) بغوي رح وايي چي ابن عباس ﷺ وايي چي دا کسان يهود او نصارلی دي او مشرکان دي، اما اليهود دوی دا بد نسبت و خدای ج ته کوي عزير ابن الله بولي، يا وايي يد الله مغلولة، يا وايي ان الله فقير ونحن اغنياء كما ورد ذالک کله في مواضع من القرآن العزيز واما النصاری، دوی وايي چي المسيح ابن الله وثالث ثلثة كما ورد في القرآن الكريم في موضعه، واما المشركون دوی وايي چي ملائکه بنات الله دي، والاصنام شرکائه، عن ابی هريرة ﷺ قال قال رسول الله ﷺ قال الله تعالى كذبني آدم ولم يكن له ذالک (ماته نسبت کوي د کذب اولاد د آدم (يعني بعضهم) او دوی ته دا نه ښايېدل، وشتمني (او ماته ښکنځل کوي

يعني بعض بني آدم ولم يكن له) اما تكذيبه اياى فقوله لن يعيدني كما بداني (ما نسي راکرځولای خدای ج يعني په ورځ د قيامت مي نسي ژوندی کولای لکه ابتداءً چي يې زه پيدا کړی يم، يعني خلق ابتدائي مني او خلق انتهائي نه مني) وليس اول الخلق باهون علي من اعادته، واما شتمه اياي فقوله تخذ الله ولدا وانا الاحد الصمد الذي لم الد ولم اولد ولم يكن لي كفوًا احد، رواه البخاري، وقيل معنى الاذی مخالفة امر الله وارتكاب معاصيه من الكفر وغيره.

**پوه سه:** چي د ''ورسوله'' فعل محذوف دی، والتقدير يؤذون رسوله.

**سوال:** ولي يې نه عطف کوي پر اسم الله باندي د حذف د فعل څه ضرورت دی؟

**ځواب:** په يؤذون الله کي خو اذی حقيقي نه وه ممکنه کما مر، او په رسول کي خو اذی حقيقي ممکنه ده واللفظ الواحد لايكون مجازًا وحقيقةً كما ثبت في محله قال ابن عباس رض چي اذی د رسول داده چي د احد په غزاء کي دده مبارک مخ کفارو ټپي کړی او يو غاښ مبارک يې هم ورمات کړی، او بعض مفسرين وايي چي اذی د رسول الله ﷺ دا وه چي دی بې ساحر، شاعر، کاهن، مجنون او معلم به يې باله، كما قالوا في القرآن علمه بشر. او ابن ابی حاتم رح له ابن عباس رض څخه دا روايت کړی دی چي عليه الصلوة والسلام حين اتخذ صفية بنت حيي يعني په نکاح يې کړه دوی طعن پر وايه او جوير عن الضحاک عن ابن عباس رض څخه دا روايت هم کړی دی چي عبد الله بن ابی رئيس المنافقين او دده ولي عائشة الصديقة الطيبة رض په زنى متهمه کړه وقصته مشهورة وفي موضعها مذكورة او نور هر قول او فعل چي عليه الصلوة والسلام په ازار يږي.

لَعَنَهُمُ اللّٰهُ فِى الدُّنْيَا وَالْاٰخِرَةِ وَاَعَدَّ لَهُمْ عَذَابًا مُّهِيْنًا ﴿٥٧﴾

خدای ج د لوی رحمت څخه دوی لېري کړي دي په دنيا او آخرت کي، او آراسته کړی يې دی دوی لره عذاب دردناکه يعني في الآخرة او عذاب د سپکاوي.

**مسئله متفقة عليها:** که چا طعن ووايه په شخص کي د عليه الصلوة والسلام يا په دين کي يا په نسب کي يا په يو صفت کي د صفاتو دده او بوجه من وجوه الشين (اى العيب) صراحةً او كنايةً او تعريضًا او اشارةً كفر، ولعنه الله في الدنيا والآخرة واعد له عذاب جهنم.

**مسئله:** د داسي چا توبه قبلېږي او كه نه، ابن همام رح وايي من ابغض رسول الله ﷺ بقلبه كان مرتدًا فالسباب بالطريق الاولى، ويقتل عندنا حدًا فلا تقبل توبته في اسقاط القتل، قالوا هذا مذهب اهل كوفة ومالك رح ونقل عن ابى بكر الصديق رضي الله عنه، او دا هم فرق نه لري چي دا سړی تائب بنفسه راسي يعني په جرم اقرار وكړي بيا وايي زما توبه ده، او يا نور خلک دده پر جرم شاهدي اداء كړي، بخلاف غيره من موجبات الكفر فان الانكار فيها توبة ولا تعمل الشهادة عليه مع التوبة.

**مسئله:** كه يو مسلمان سب و عليه الصلوة والسلام ته وكړي (اعاذنا الله منه) په حال كي د سكر (نشې) نو كه يې سكر په يو سبب مخطور سره وُ مثلاً شراب يې څښلي وه په خپل اختيار بېله اكراه د چا له خوا، نو علماء رح وايي چي مرتد واجب القتل دی حدًا، او كه سكر يې بې سببه مخطور شرعًا وُ لكه ماء الشعير چي يې څښلي وي يا مكره وُ پر سب النبي ﷺ نو حكم يې حكم د لېوني دی، يعني واجب القتل نه دی، قال الخطابي رح ولا يحكم بارتداد من اتى بكلمة الكفر في حالة السكر في غير سباب النبي ﷺ اعاذنا الله بفضله وكرمه من هذه الجريمة.

## وَالَّذِينَ يُؤْذُونَ الْمُؤْمِنِينَ وَالْمُؤْمِنَاتِ بِغَيْرِ مَا اكْتَسَبُوا

او هغه كسان چي زهيروي مسلمانان كه نر وي او كه ښځي بېله داسي كاره چي دوی دې كسب كړی وي، مثلاً ورثه وو ايي ته ميراث خوريې يا زكوة خوريې الى غير ذالک.

## فَقَدِ احْتَمَلُوا بُهْتَانًا وَإِثْمًا مُّبِينًا ﴿٥٨﴾

نو دوی پر ځان واخستی بهتان او ګناه ښکاره.

**فائده:** نكرة راوړل د بهتان او اثم لپاره د تفخيم دی، قال مقاتل رح نزلت في شان علي كرم الله وجهه چي منافقانو به دی زهيراوه او داسي خبري به يې ورته كولي چي هيڅ خبر به نه وُ پكښې، وقيل نزلت في شان عائشة رضي الله عنها لكن علماء د تفسير وايي چي عبرت عموم لره د لفظ دی خصوص لره مورد نه دی، بلكي هر څوک چي مؤمن او مؤمنة وي زهيروي يې بغير ما اكتسبوا ددې آيت تر حكم لاندي دی، عن ابي هريرة رضي الله عنه قال قال رسول الله ﷺ المسلم من سلم المسلمون من لسانه ويده، يعني چي نه يې په خوله ازاروي او نه په لاس، والمؤمن من آمنه الناس على دمائهم واموالهم.

**پوښتنه:** چي په دې حديث كي مراد د مسلم او مؤمن څخه كامل مسلم او كامل

مؤمن مراد دی، يعني دا مراد نه دی چي که دا کارونه مسلمان وکړي نو کافر دی، رواه الترمذي والنسائي، واخرج ابن جوير عن الضحاک عن ابن عباس انزلت هذه الآية في عبد الله بن ابی رئيس المنافقين وناس معه قذفوا عائشة فخطب النبي ﷺ وقال من يعذرني (چي زما سره مرسته وکړي) من رجل يؤذوني ويجمع في بيته من يؤذوني الى اخير الحديث الطويل، فنزلت هذه الآية، واخرج غير واحد عن قتادة، قال ﷺ اياكم واذی المؤمن فان الله يحوطه ويغضب له.

## يَا أَيُّهَا النَّبِيُّ قُلْ لِأَزْوَاجِكَ وَبَنَاتِكَ

ای نبي ﷺ ووايه خپل ازواجو ته چي امهات المؤمنين دي چي ازواج د عليه الصلوة والسلام په وخت د وفات د عليه الصلوة والسلام نهه وې، عائشة وحفصة وام حبيبة وام سلمة وسودة وزينب وميمونة وصفية وجويرية.

"وبناتک" او خپلو لوڼو ته چي تعداد يې اته (۸) ؤ، څلور صلبة لوڼې ولدتها خديجة وهي زينب ورقية وام كلثوم وفاطمة چي دا شپږ مياشتي وروسته تر وفات د عليه الصلوة والسلام وفات سوه، او څلوريې ربائب وې، ربائب جمع د ربيبة ده چي د مايني لور ته د بل مېړه څخه وايي، چي دا څلور سره د ام سلمة لوڼې د دمخه مېړه څخه وې، وهي برة وسلمة وعمرة ودرة.

## وَنِسَاءِ الْمُؤْمِنِينَ يُدْنِينَ عَلَيْهِنَّ مِنْ جَلَابِيبِهِنَّ

او د مسلمانانو و ښځو ته "يدنين" امر غائب دی په حذف د لام ای ليدنين چي دوی دي راځوړوي بعض د پوړنيانو جمع د جلباب ده چي ملحفة يې هم بولي چي لوی پوړنۍ دی چي پر قميص او پر خمار چي کوچنۍ پوړني ته وايي پر سر کوي، والمعنى دوی دي پټوي مخان خپل او بدنونه خپل يعني وقت خروجهن من بيوتهن لحاجة ولايخرجن مشكوفات الوجوه لکه مينځياني تا زانيان ودوی ته تعرض ونه کړي ظنا منهم انهم چي مينځياني دي، ولي چي د هغو زناکارانو مينځياني په کار وي.

**مسئله**: يوه ستر که کهيې ښکاره وه د لاري د ليدلو لپاره روا ده.

**درويش وايي**: چي په اوسني زمانه کي داسي نازک کوچني پوړنان سته چي که ښځه تر له مخ په هغه پوړنۍ پټ کړي لاروينې، روی البخاري عن عائشة چي سودة بعد ما ضرب الحجاب د قضاء حاجت لپاره ووتل او سوده ډېره غټه ښځه وه په بدن کي

چي هر سړي سره له حجابه پېژندل، عمر بن الخطاب رض وليدل، فقال يا سودة اما والله ما تخفين علينا كيف تخرجين، سوده بيرته کور ته راغله، او عائشه وايي چي عليه الصلوة والسلام زما په حجره کي د ماخستن ډوډۍ یې خوړل او د علیه الصلوة والسلام هډوکی په لاس کي وُ یعني غوښي یې څني خوړلې، نو سوده چي راغله ټول سورة حال د عمر بن الخطاب یې و علیه الصلوة والسلام ته بیان کړی فاوحی الله الیه وان العرق في یده ما وضعه، نو دا ایت نازل سو یا ایها النبي قل الآیة، نو علیه الصلوة والسلام وویل قد اذن لکن لحاجتکن یعني متجلبیات. قال ابن عباس وابو عبیدة امر نساء المؤمنین ان یغطین رؤسهن و وجوههن بالجلابیب الا عینًا واحدة لیعلم انهن حرائر.

ذٰلِكَ أَدْنَىٰٓ أَن يُعْرَفْنَ فَلَا يُؤْذَيْنَ ۗ وَكَانَ اللَّهُ غَفُورًا رَّحِيمًا ﴿۵۹﴾

ای ما ذکر من التغطی "ادنٰی" ای اقرب چي دوی دي وپېژندل سي او له مینځیانو څخه به یې تمیز وسي چي هغه مواضع د تعرض د زانیانو وي، نو دوی یعني حرائر به نه زهیرول کېږي له فجارو او زناتو له خوا څخه بالتعرض لهن "وکان الله آه" یعني د مخه چي دوی به لغ مخي ګرځېدې او مهربان دی چي مصالح د عبادو خصوصًا د مؤمنانو په نظر کي لري.

**درویش وایي:** چي نساء د زمان حاضر چي بازار ته ځي کالي د زینت واغوندي او شونډان هم سره کړي او عطر هم ولګوي، او په پښو پای زیب هم واغوندي، او په هر بنه ځوان پسي سترګه وړي او هر بنه ځوان په دې پسي سترګه وړي، سعدي شیرازي قدس سره وایي یعني د دې زمانې په ښځو کي:

چو زن راه بازار گیرد بزن ..... وگر نه تو درخانه بنشین چو زن
زبیگانگان چشم زن کور باد ..... چو بیرون شد از خانه در گور باد

عارف جامي قدس سره څه بنه زیبا بیتونه ویلي دي:

چو مرد از زن بخوش خویی کشد باد ..... زخوش خویی بیدبوی کند کار
مکن بر کار زن چندان صبوری ..... که افتد رخنه در صد غیوری

لَّئِن لَّمْ يَنتَهِ الْمُنَافِقُونَ وَالَّذِينَ فِي قُلُوبِهِم مَّرَضٌ

که چېري منع نه سي منافقان له خپل نفاق څخه یا له تعرض ښځه و ښځو ته خصوصًا الحرائر، او هغه کسان چي په زړو کي یې ایمان ضعیف وي یا میل و فجور ته.

## وَالْمُرْجِفُوْنَ فِي الْمَدِيْنَةِ

اى الذين يوقعون في المدينة الرجفة اى الزلزلة والاضطراب الشديد كالزلزلة الحقيقية، دا آيت په شان کي د هغو منافقانو نازل سوى دى چي بعض وخت چي به آنحضرت ﷺ کوچني کوچني فوجونه چي په عربي يې سرايا بولي واستول منافقانو به په مدينې کي د درواغو اوازې کډي کړې چي هغه سرېې قد قتلوا او انهزموا، يا به يې ويل چي پر مدينه به عنقريب حمله وکړل سي، وامثال ذالک يا د کاذبه فاحشه واورته به يې لمن وهل کما في شان الطيبة الحبيبة لرسول الله ﷺ سيدتنا عائشة رضي الله عنها الى غير ذالک من الاخبار الكاذبة المحزنة للمؤمنين اهل المدينة.

## لَنُغْرِيَنَّكَ بِهِمْ ثُمَّ لَا يُجَاوِرُوْنَكَ فِيْهَا إِلَّا قَلِيْلًا ﴿٦٠﴾

زه به تا مسلط کړم پر دوى او امر به درکړم په قتال ددوى يا له مدينې څخه د شړلو ددوى به امر درکړم، نو وروسته به دوى ستا همسايه نه سي پاته په مدينه کي، الا زمانًا قليلاً، نو ظرف دى او جوارًا قليلاً نو مفعول مطلق دى يعني چي يا به فراره کېږي يا به قتل کېږي په دواړه صورتو کي جوارېې قطع کېږي.

**فائده:** هذا جواب لقسم محذوف في قوله لئن لفظًا وللقسم والشرط معًا من حيث المعنى فافهم.

**پوهه:** چي جلا کېدل له وطن څخه بالاضطرار د لوى مصائبو څخه ؤ نو يې خکه عطف يې په ثم سره وکړى.

## مَلْعُوْنِيْنَ ۛ أَيْنَمَا ثُقِفُوْا أُخِذُوْا وَقُتِّلُوْا تَقْتِيْلًا ﴿٦١﴾

"ملعونين" (منصوب دى على الحالية اى حال كونهم مبعودين عن رحمته العامة يا منصوب على الذم والشتم اى اذم واشتم) هر چېري چي دوى پيدا کړه سوه ودي نيول سي او ودي وژل سي په قتل.

## سُنَّةَ اللّٰهِ فِي الَّذِيْنَ خَلَوْا مِنْ قَبْلُ ۚ وَلَنْ تَجِدَ لِسُنَّةِ اللّٰهِ تَبْدِيْلًا ﴿٦٢﴾

عادت د خداى ﷻ دى په تېرو امتو کي چي هغه کسان دي قتل کېږي چي د نفاق لار چلوي د انبيا عليهم السلام او سعي کوي چي په زړو کي د مسلمانانو خوف او اضطراف پيدا کړي ونحوه، او نه به کړې اى مخاطب غير معين عادت لره د خداى

تبدیل لانه تعالى لايبدل سنته وغير الله لايقدر على تبديلها.

**پوه سه:** چي "سنة الله آه" مصدر مؤكد دی د ماقبل والنصب بفعل محذوف ای سن الله ذالک سنة.

**پوښتنه:** د دې آيتو حكم يعني اخذوا وقتلوا تقتيلاً پر منافقينو د مديني جاري سوی او که څرنګه؟

**ځواب:** روح المعاني وايي اخرج ابن ابی حاتم له ابی حاتم رحمه الله څخه انه قال في تفسير هذه الآيات چي نفاق دري قسمه ؤ (۱) يو نفاق لکه نفاق د عبدالله بن ابی بن سلول واتباعه كانوا وجوهًا من وجوه الانصار (دوی مخور کسان وه د انصارو) دوی شرمېدل ان ياتوا بالزنا دوی په دغه سره خپل ځانونه ساتل وهم المنافقون في الآية (۲) او بل نفاق ؤ د هغو کسانو چي په زړو کي يې مرض ؤ وهم منافقون ان تيسر لهم الزناء فعلوه وان لم يتيسر پسي ګرځېدل نه، او نه يې اهتمام په امر سره د زناء کاوه (۳) او بل نفاق د المرجفون في المدينة دا داسي منافقان وه چي په زوره به يې د ښځو سره زناء کول هر ځای چي به پر غالب سو زناء به يې ورسره وکړه، د دې اخير قسم منافقينو خدای پاک وايي: لنغرينك بهم، چي ملعونين هم دوی دي چي په اخير کي د آيت اينما ثقفوا يعني دغه کسان چي به زوره به يې د ښځو سره زناء کول اخذوا وقتلوا تقتيلاً، وروسته السدي رحمه الله وايي ان الحكم في هؤلاء المكابرين في الزناء غير دی له حکم څخه د زناء په رضاء د ښځي يعني الجلد او الرجم بلکي مکابرين د زناء حکم دا دی ان يؤخذوا فتضرب اعناقهم سنة الله في الذين خلوا يعني د امم ماضيه ؤ د مکابرين في الزناء هم حکم دا غه ؤ چي اخذوا وقتلوا تقتيلاً: په پای کي سدي رحمه الله وايي چي که په زور د ښځي سره زناء کوله هغې بغاري چغاري وهلې او اخير به دی پر غالبه سو زناء به يې ورسره وکړه، نو هغه مکابر بالزناء د ښځي قريب قتل کړی، نه يې قصاص حق دی او نه يې ديت سته لانه بكابر انتهى قول السدي رحمه الله او په تفسير بحر العلوم کي وايي الظاهر ان المنافقين يعني جميع من ذكر في الآية انتهوا عما كانوا يؤذون به الرسول ﷺ والمؤمنين او ځانونه يې ټولو پټ کړه وكفوا عن افعالهم خوفًا من ان يقع بهم ما وقع القسم الاخير من جانب الله به وهو الاعزاء والاجلاء والقتل وحكى ذالک عن الجبايي، انتهى قول البحر.

**درويش وايي:** قد نقلت قول هؤلاء السادات من المفسرين فخذ ما صفى ودع ما كدر:

يَسْـَٔلُكَ النَّاسُ عَنِ السَّاعَةِ ؕ

سوال کوي ستا څخه خلک يعني کفار د مکې د قيام قيامت په باره کي ای عن وقت قيامها، دا سوال که کفارو د مکې کاوه غرض يې استهزاء وه، ولي چي دوی خو قيامت نه مانه. او که يهودانو د مدينې دا سوال کاوه غرض يې امتحان وٚ د عليه الصلوة والسلام چي دی به يې ګوندي تعين وکړي، نو به يې موږ ملزم او ملامت کړو چي د قيام القيامة تعين نه په تورات کي سته نه په يو کتاب کي د کتب الهيةؤ.

قُلْ اِنَّمَا عِلْمُهَا عِنْدَ اللّٰهِ ؕ وَ مَا يُدْرِيْكَ لَعَلَّ السَّاعَةَ تَكُوْنُ قَرِيْبًا ﴿۶۳﴾

ته ورته ووايه علم د قيام القيامة على التعيين په نبز د خدای ﷻ دی لم يطلع عليها احدًا من الانبياء والملائكة المقربين، او څه شی تاته علم يا محمد (ﷺ) درکړی دی اذا لم يطلع احدًا من خلقه، نو هيڅوک له مخلوق څخه خدای پاک په قيامت على التعيين نه دی خبر کړی نو تاته به له کومي خوا دا علم حاصل وي "لعل الساعة تكون قريبًا" شايد قيامت به شيئًا قريبًا. نو كان ناقصه دی. او يا معنى تكون في زمان قريب، نو كان تامه دی ای توجد قريبًا.

**سوال:** ضمير د قريبًا خو ساعت ته راجع دی، نو د تذكير سبب يې څه دی؟

**ځواب:** ساعة په تاويل د يوم مذكر دی.

**سوال:** له نزول څخه د قرآن په سوو کلونه تېر سوه او قيامت نه سو پيدا فما معنى قربها؟

**ځواب:** كل ما هو آتٍ فهو قريب.

**فائده:** په دې آيت کي تهديد دی د مستعجلينو چي کفار د مکې وه او اسکات دی د متعنتو چي يهودان وه.

اِنَّ اللّٰهَ لَعَنَ الْكٰفِرِيْنَ وَ اَعَدَّ لَهُمْ سَعِيْرًا ﴿۶۴﴾

په تحقيق خدای ج نازل کړی لعنت پر کافرانو او آراسته کړی يې دی دوی ته اور چي شديدي لمبې وهي، همېشه به وي.

خٰلِدِيْنَ فِيْهَاۤ اَبَدًا ۚ لَا يَجِدُوْنَ وَلِيًّا وَّ لَا نَصِيْرًا ﴿۶۵﴾

("خالدين" حال مقدره دی له ضمير څخه د لهم) تل تر تله چي د وتلو لاره يې

بنده ده، دوی نسي پیدا کولای یو دوست چي په شفاعت دي دوی له اور څخه وساتي "ولانصیرا" او نه یو مرسته کونکی چي په کومک دي او له دوی څخه دفع کړي.

يَوْمَ تُقَلَّبُ وُجُوهُهُمْ فِي النَّارِ

"یوم تقلب" ظرف دی لقوله لایجدون او یا منصوب په اذکر مقدر سره دی چي اړول، من جهة الی جهة او من حال الی حال لشدة الاحتراق.

**سوال:** تخصیص د وجوه یې ولي وکړی او سره ددې چي د ابدانو ددوی هم دغه حال دی؟

**ځواب:** وجه د تخصیص یې داده چي مخان اکرم د مواضع د بدن دي.

يَقُولُونَ يَٰلَيْتَنَآ أَطَعْنَا ٱللَّهَ وَأَطَعْنَا ٱلرَّسُولَا۠ ۝٦٦

دوی وایي "یقولون" مستانفه جواب د سوال مقدره ده چي مایقولون في هذه الحال الشدیدة "یلیتنا" یعني یا قوم لیتنا (او بعض مفسرین وایي چي کلمه د یا لپاره د تنبیه ده) که موږ اطاعت کړی وای په دنیا کي د خدای ﷻ او موږ فرمانبرداري کړې وای په دنیا کي د رسول، نو موږ به له دې عذاب څخه خلاصون پیدا کړی وای.

**فائده:** الف د رسولاً زائد دی لپاره د رعایت د فواصلو د آیاتو.

وَقَالُوا۟ رَبَّنَآ إِنَّآ أَطَعْنَا سَادَتَنَا وَكُبَرَآءَنَا فَأَضَلُّونَا ٱلسَّبِيلَا۠ ۝٦٧

او دوی وایي ای زموږ ربه، موږ متابعت کړی ؤ یعني په دنیا کي د سردارانو او مشرانو زموږ چي دوی دا طریقه د کفر راته وضع کړی وه، نو دوی ورکه کړه له موږ څخه حق لاره چي توحید او ایمان وه.

**پوه سه:** چي الف د سبیلاً هم زائد دی کما مر.

رَبَّنَآ ءَاتِهِمْ ضِعْفَيْنِ مِنَ ٱلْعَذَابِ وَٱلْعَنْهُمْ لَعْنًا كَبِيرًا ۝٦٨

ای ربه زموږ ورکړې دوی ته یعني سادة والکبراء دوه چنده د عذاب زموږ لانهم ضلوا واضلوا، او لعنت پر دوی نازل کړې لوی.

يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ لَا تَكُونُوا۟ كَٱلَّذِينَ ءَاذَوْا۟ مُوسَىٰ

اې هغه کسانو چي ایمان یې راوړی وي تاسي مه کرځئ لکه هغه کسان چي

ازاراوه يې موسیٰ عليه السلام، يعني تاسي خپل رسول مه ازاروئ لکه يهودانو چي موسیٰ عليه السلام ازار کړی ؤ چي ددوی نبي ؤ، قصه ددې ازار د موسیٰ عليه السلام چي له ابو هريره رض څخه روايت دی قال قال رسول الله ﷺ، موسیٰ ؑ رجل حيانًا کريمًا (يعني حياناکه او سترناکه) لايری من جلده شيئًا (يعني بېله لاسو او پښو ظهرًا او بطنًا، نو بني اسرائيلو به ويل چي موسیٰ عليه السلام چي دا دومره ځان او بدن پټ ساتي يا يې په بدن کي پيس سته او يا چوره دی او يا بل کوم آفت پکښې دی.

**فَبَرَّاَهُ اللّٰهُ مِمَّا قَالُوْا ؕ**

نو خدای پاک دده برائة ظاهر کړی له هغه عيبه چي بني اسرائيلو پر ده وايه، هغه داسي چي موسیٰ عليه السلام يوه ورځ په يو خالي ځای کي يعني چي څوک نه ؤ په وياله کي غسل کاوه، و د وياله پر غاړه يوه ډبره پرته وه کالي يې پر کښېښوول او لڅ وياله ته ورشوه سو، له غسل څخه چي فارغه سو کالي يې را اخستل چي وايې غوندي ډبري سره د کالو ميدان کړه، موسیٰ عليه السلام لڅ پېغ پسي روان ؤ او دا ناره يې وهله ثوبي ثوبي يا حجر، زما کالي راوړه ای ډبري حتی چي ډبري ځان ورساوه يو مجلس ته د بني اسرائيلو او موسیٰ ؑ عريان په پسې ؤ، نو دوی د موسیٰ ؑ ټوله بدن وليدی احسن ما خلق الله تعالی.

نو دی بري کړی الله ؑ له هغه څه چي دوی به ويل، او ډبره هم ودرېدل موسیٰ ؑ چي خپل کالي واغوستل پر ډبره يې له ډېره درده لکړه راوکړځول درې څلور واره يې ډبره په ووهل فوالله ان بالحجر لبقی اثر ضرب موسیٰ ؑ ثلاثًا او اربعًا او خمسًا چي په پښتو يې تغمې بولي، فذالک مراد قوله تعالی: يا ايها الذين لاتکونوا الی اخير الآية، رواه البخاري والترمذي واحمد وابن جرير وغيرهم رح، وقال ابو العالية في شان نزول هذه الآية چي قارون چي لوی سرمايه داره سړی ؤ من قوم موسیٰ او موسیٰ ؑ طلب د زکوة ځني وکړی او د قارون زکوة تر اندازې ډېر ؤ نه يې زړه کېدی نو اخير قارون د موسیٰ ؑ د بدنامي خبره په بني اسرائيلو کي وکړه او يوه فاحشه ښځه يې مزدوره کړه چي موسیٰ ؑ چي په يوم العيد کي وعظ کوي د زنی پر بيان چي راسي ته يې متهم په زنا سره وګرځوه خپل د ځان سره فبرئه الله من ذالک واهلک قارون وقد قصته بالتفصيل التام في تفسير سورة القصص، او

بعض مفسرين وايي چي ازار د بني اسرائيلو و موسیٰ ؑ ته داؤ چي هارون چي په تیه کي وفات سو او موسیٰ ؑ یوازي دده د دفن کار وکړی بني اسرائيلو موسیٰ د هارون ؑ قاتل وباله فامر الله الملائكة حتى مروا بجنازة هارون على بني اسرائيل، نو بني اسرائيل پوه سوه چي موسیٰ نه دی وژلی فبرئه مما قالوا والله اعلم.

**درویش وایي:** چي جمع دد ي روایاتو چا نه ده کړې او نه د جمع لار ورته سته.

**وَكَانَ عِندَ اللَّهِ وَجِيهًا ﴿٦٩﴾**

او ؤ موسیٰ ؑ په نېز د خدای کریمًا ذا جاه، ځکه یې له تهمته د بني اسرائيلو خلاص کړی، ابن عباس ؓ وايي كان عند الله بحيث لا يسئال شيئًا الا اعطاه وكذا قال الحسن ؒ، وقيل كان مجيبًا مقبولاً.

**درویش وایي:** ومآل الكل يرجع الى شيئ واحد تدبر.

**يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا اتَّقُوا اللَّهَ وَقُولُوا قَوْلًا سَدِيدًا ﴿٧٠﴾**

ای هغه کسانو چي ایمان یې راوړی دی له خدایه وېرېږئ (في اتيان اوامره والانتهاء عن مناهيه عمومًا خصوصًا فيما يؤذي به رسول الله ﷺ) "وقولوا آه" قال ابن عباس ؓ سديدًا وقال قتادة عدلاً وقال الحسن ؒ صدقًا، وقيل قاصدًا الى الحق ومآل الكل واحد يعنى صدقًا غير كذب ولا مجازفة (یعني په ګمان او اټکل سره) وقيل المراد منه نهى الناس عما قالوا في نكاح زينب كمامر، وقيل مراد نهي دی له حدیث څخه د افک په باره کي د عائشه صدیقه ؓ، وقال عكرمه ؓ هو قول لا اله الا الله وفي القلب من هذا التفسير شئ لان المخاطب الذين آمنوا والايمان هو قول لا اله الا الله فتفسير التقوى به امر بالحاصل چي علماء یې تحصيل الحاصل بولي او وايي وهو محال.

**درویش وایي:** چي قول د ژبي کار دی ژبه که څه هم جرم یې صغير دی لکن امره عظيم، يتعلق به الاسلام والكفر والمعاصي الكبيرة الكثيرة لا تتعلق مثلها بعضو من الاعضاء الظاهرة كالكذب والبهتان والغيبة وايذاء الرسول ﷺ والخداع مع الناس في المعاملات.

**حکایت:** يعقوب بن اسحاق ؒ چي مشهور په ابن السكيت دی او له اکابرو څخه د علماؤ د عربيت دی، او دی معلم او استاذ الادب د دوو زامنو د متوکل

على الله الخليفة ؤ يوه ورځ دې د المتوكل سره ناست ؤ چې د متوكل دوه زامن يعني المعتبر بالله والمؤيد بالله دغه مجلس ته ورغله، نو متوكل وابن السكيت ته وويل چې پر تا زما دا دوه زامن ګران دي كه الحسن و الحسين يعني ابنى فاطمة وعلي، ابن السكيت ورته وويل والله ان قنبرًا خادم علي خير منك ومن ابنيک متوكل ته ډېر درد ورغلی او پر حاضر باشو يې امر وكړی چې ژبه د ابن السكيت تر څټ وباسئ ففعلوا فمات ابن السكيت، والعجب ان ابن السكيت د متوكل و دوو زامنو ته دا دوه بيته ويلي وه:

يصاب الفتى من عثرة بلسانه .... وليس يصاب المرء من عثرة الرحل
فعثرته في القول تذهب راسه .... وعثرة في الرجل تبرء في مهلة

يعني كه يې پښه وښوييږي مثلاً ماته سي هغه به بيرته جوړه سي په مرور د زمانې.

يُصْلِحْ لَكُمْ أَعْمَالَكُمْ وَيَغْفِرْ لَكُمْ ذُنُوبَكُمْ ۗ

يعني د قول سديد په سبب ستاسي عملونه به خداى صالح او مقبول وګرځوي مجزوم في جواب الامر يعني قولوا قولاً سديدًا، او خداى په سبب د قول سديد ستاسي ګناهونه به درو بخښي، دا هم مجزوم په جواب كي د امر.

وَمَن يُطِعِ اللَّهَ وَرَسُولَهُ فَقَدْ فَازَ فَوْزًا عَظِيمًا ﴿٧١﴾

كه څوک اطاعت وكړي د خداى او د رسول د خداى، نو برى پيدا كړى پر ټولو خيراتو، ولي په دنيا كي بې عيش او ژوند حميد وي او په آخرت كي به يې خداى بعث كړي سعيدًا، رشتيا هم دا لويه كاميابي ده، رزقنا الله بمحض فضله هذا الفوز العظيم ويوفقنا لموجبات هذا الفوز العظيم آمين.

إِنَّا عَرَضْنَا الْأَمَانَةَ عَلَى السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ وَالْجِبَالِ فَأَبَيْنَ أَن يَحْمِلْنَهَا وَأَشْفَقْنَ مِنْهَا وَحَمَلَهَا الْإِنسَانُ ۖ

د مفرداتو د آيت ترجمه: مراد له امانت څخه ابن عباس وايي چې طاعت او فرائض دي التي فرض ها الله على عباده چې دا امانت خداى پيش كړى پر اسمانو او ځمكه يعني پر ذواتو ددوى په خطاب لفظي سره چې كه چا ادا د دغه امانت وكړه زه به ثواب وركوم او كه يې ضائع كړه زه به عذاب وركوم، او بعض مفسرين

وايي چي عرض پر زواتو د اسمانو او مځکي مراد نه دی بلکې مراد عرض پر اهل السموات والارض دی كما في قوله تعالى واسئل القرية اى اهل القرية.

**درویش وايي**: چي ابن مسعود رضي الله عنه او مجاهد او ابو العالية رحمه الله او زيد بن اسلم او عبد الله بن عمرو بن العاص او الضحاک رحمهم الله، د امانت نوري ترجمې کړي دي يعني هر يوه جلا ترجمه کړې ده، ټوله ودې ته دي چي مراد له امانت څخه تكليفات شرعيه دي كما قال ابن عباس رضي الله عنه فتفسير ابن عباس رضي الله عنه اجمع التفاسير دی او اسمانونه او مځکو اباء او منع وکړه له قبول څخه د هغو اماناتو يعني اسمانو او مځکو وويل يا رب نحن مسخرات لامرک لا نريد ثوابًا ولاعقابًا، دا خبره چي يې وکړه له جهته د خوف او خشيت وتعظيمًا لامر الدين ان لايتادى حقه.

**سوال**: دوی څرنګه منع او اباء وکړه له قبول څخه د امانت بعد عرضه تعالى قبولها عليهن.

**ځواب**: دا عرض پر دوی اختياري ؤ لا الزامًا، يعني هرو مرو به يې قبلوئ والا لكان الابا معصية منهن، يعني كه يې حمل الزام وای د خدای ج له خوا څخه بيا دوی امتناع نسوای کولای، والقرينة على ذالک يعني عرض الزامًا نه ؤ وقوله تعالى واشفقن منها دوی وبېرېدل چي اداء ددوی به موږ و کړای سو که نه، ولي كه الزام وای بيا ددوی بېري فائده نه کول په منع او اباء کي د دوی، بغوي رحمه الله وايي چي عرض د امانت پر ذواتو د اسمانو په قول لفظي قول د ابن عباس رضي الله عنه دی وجماعة واكثر السلف رحمهم الله، او بعض مفسرين وايي چي مراد له عرض څخه خطاب لفظي دی او مراد له سمٰوات او ارض او جبال اهل ددوی كما في قوله تعالى واسئل القرية اى اهل القرية، او بعض اهل تفسير وايي چي مراد له سمٰوات او ارض او جبال څخه ذوات ددوی دي او مراد له عرض څخه اختبار الامانة بالاضافة الى استعدادهن، او مراد له اباء څخه اباء طبعي ده يعني په دوی کي استعداد او لياقت د قبول د امانت نه ؤ لكونها جمادات او مراد د حملها الانسان قابليت او استعداد د انسان دی لحمل الامانة، او مراد من كون الانسان ظلومًا چي په ده کي قوت غضبيه او قوة شهوية سته چي بې مغلوب الحال وګرځوی او په اداء کي د امانة چي مراد ځني طاعات او ايمان دی قصور واقع سي، او قاضي بيضاوي وايي چي دا آيت تقرير دی د وعد سابق بتعظيم الطاعة وسماها امانة

من حيث انها اى الطاعة واجبة الاداء دى كالامانات. والمعنى انها (اى الامانة چي مراد ځني طاعات دي كمامر) لعظم شانها بحيث لو عرضت على الاجرام العظام وكانت ذات شعور وادارک وای (درويش وايي: چي له لفظ څخه د بيضاوي دا معلومه سوه چي دا آيت مبني پر مجاز دی او تمثيل دی، او دا مبني پر دې دی چي خطاب د جماداتو سره بعيد دی) لابت حملها واشفقن منها ومن حملها، وحملها الانسان مع ضعف بنيته ورخاوة قوته لاجرم فان الراعي بها والقائم بحقوقها بخير الدارين لكه هغه قول د خدای ﷻ لو انزلنا هذا القرآن على جبل لرئيته خاشعًا متصدعًا من خشية الله وتلک الامثال نضربها للناس لعلهم يتفكرون، چي له دې آيت څخه صراحةً معلومېږي چي دا تمثيل دی، اذ قال وتلک الامثال آه نو قاضي بيضاوي دا مانحن فيه آيت هم د قسم څخه د تمثيل بولي كمامر، والحاصل چي قول د هغه چا چي په لفظ كي د سمٰوات مجاز وايي، يعني چي مراد ځني اهل السمٰوات دي او قول د هغه چا چي عرض او خطاب ته مجاز وايي يعني پر تمثيل حمل كوي دواړه مبني پر دې دي چي د جماداتو يعني سمٰوات ونحوها خطاب كول بعيد دی.

**درويش وايي:** چي بعض مفسرين په دفع ددې استبعاد داسي وايي چي دغه اجرام عظيمه يعني السمٰوات والارض والجبال چي خدای ﷻ پيدا كړه په وخت كي د عرض دامانت يې فهم وركړی او دا يې ورته وويل: اني فرضت فريضة وخلقت جنة لمن اطاعني (يعني اداء تلک الفرائض) ونارًا لمن عصاني (يعني دغه فرائض پر ځای نه كړي غرض دادی چي تاسي به تحمل كوئ هغو اجرامو په زبان قال په قدرت د خدای ﷻ) ورته وويل نحن مسخرات على ما خلقتنا (يعني د هغه حكمت او فائدې چي تا موږ پيدا كړي يو په هغو كي ستا مسخر يو) لا نتحمل فريضة ولانبغي ثوابًا، ولما خلق عرض عليه مثل ذالک ادم عليه السلام قبول كي د امانت.

**إِنَّهُۥ كَانَ ظَلُومًا جَهُولًا ﴿٧٢﴾**

يعني ظالم پر خپل ځان ؤ چي دومره درووند بار يې قبول كړی او ناخبره ؤ د وخامت د عاقبت يې، او بعض سادات د مفسرينو وايي په دفع كي د استبعاد مذكور چي جمادات تړوله كه څه هم غير عاقل دی نسبت وموږ ته (يعني زموږ په خبرو نه پوهېږي) لكنها بالنسبة الى الله تعالى عاقلة خاضعة مطيعة ساجدةٌ له

تعالى، ولهذا في القرآن شواهد، قال الله تعالى للسموٰات والارض (ائتيا طوعًا او كرهًا قالتا آتينا طائعين، وقال الله تعالى وان من الحجارة لما يتفجر منه الانهار، وان منها لما يهبط من خشية الله، وقال الله تعالى الم تر ان الله يسجد من في السموٰات ومن في الارض والشمس والقمر والنجوم والجبال والشجر والدواب.

**درويش وايي:** چي وجه د استدلال په دې آيت سره داده چي په دې د آيت كلمه د من چي په اتفاق د نحاتو د ذوى العقول لپاره په ټولو مذكوره شيانو كي استعمال كړې ده، نو معلومه سوه چي دا شيان نسبت و خداى ته ذوى العقول دي كه څېري د من السموٰات ومن في الارض څخه ذوى العقول مراد وي او معطوف پر هغو يعني الشمس والقمر آه غير ذوى العقول واى نسبت و خداى ج، نو بايد كلمه د ما چي عامه ده ذوى العقول او غير ذوى العقول په اول كي د آيت بې راوړې واى فافهم فانه دقيق.

**درويش وايي:** چي روح البيان په دې باب كي چي آيت مذكوره من اولها الى اخيرها پر حقيقت محمول دى ډېري اوږدې خبري په اوراقو كړي دي ان شئت فارجع اليه لان ساحة التفسير الايوبي ضيقة جدًا، والعذر عند كرام الناس مقبول، حاصل دا دى چي بغوي والمظهري وصاحب روح البيان پر حمل د آيت پر حقيقت داده دى او صاحب روح المعاني هم ډېر طويل بيان كړى دى لكن په اول كي د كلام يې ويلي دي بطريق التمثيل آه وروسته تر څو كرخو يې ويلي دي، ان تلك الامانة في عظم الشان بحيث لو كلفت بها تلك الاجرام النظام وكانت ذات شعور وادراك لابين قبولها آه، ددې عبارت څخه هم دا معلومېږي چي دى آيت محمول پر تمثيل بولي چي دا لفظ يې وواېه وروسته تر كلمې د لو وكانت ذات شعور، والعلم عند الله وليس للفقير في هذا الكلام الطويل الا النقل.

**لِّيُعَذِّبَ اللّٰهُ الْمُنٰفِقِيْنَ وَالْمُنٰفِقٰتِ وَالْمُشْرِكِيْنَ وَالْمُشْرِكٰتِ**

تا چي په عذاب كړي (يعني عاقبة الامر به خداى ج په عذاب كړي) منافقين او منافقاتې يعني د ذوى نران او ښځي او د مشركان نر او ښځي.

**پوه سه:** چي دا لام لام عاقبة دى كما في قول القائل لدوا للموت وابنوا للخراب، يعني عاقبت د زېږېدو مرګ دى، دا معنى نه ده چي غرض د زېږېدو مرګ او عاقبت د كوټې جوړولو يا د سراى وغيره خراب دى، دا معنى نه ده چي غرض د باني خراب دى،

زوی کافر ؤ. نو همیشه به لقمان نصیحت ورته کاوه حتی اسلم، وعلی تقدیر کون ابنه غیر مشرک: المراد بالنهی الدوام علی عدم الاشراک فیما بقی من الاوقات.

**اِنَّ الشِّرْكَ لَظُلْمٌ عَظِيْمٌ**

په تحقیق شرک لوی ظلم دی، دا علت دی د نهي عن الشرک، وتحقیق ذالک ان الظلم هو وضع الشيئ في غیر موضعه، او دا ښکاره خبره ده چي معبودیت چي خاصه مختصه د خدای ﷻ ده په بتانو کي ایښول لوی ظلم دی فافهم... بیت:

الحمد لله لا شریک له ....... ومن اباها فنفسه ظلما

هر که دردریا وحدت غرقه باشد جان او

جوهر فرد حقیقت یافت از جانان او

**وَوَصَّيْنَا الْإِنْسَانَ بِوَالِدَيْهِ**

امر کړی دی موږ هر انسان ته چي د مور او پلار سره احسان کوئ (فاللام للجنس او الاستغراق لان ما لهما واحد کما ثبت في محله) او شکریې وایاست او اطاعت یې کوئ (یعني في ماسوی الشرک والمعاصي لانه لا طاعة للمخلوق في معصية الخالق.

**پوه سه:** چي دا جمله معترضه ده په قصه کي د لقمان.

**حَمَلَتْهُ أُمُّهُ**

دی په حمل کي وړی دی مور.

**فائده:** دا جمله معترضه په معترضه کي ده تاکید د وصیت په حق کي د مور.

وفي الحدیث المتفق علیه عن ابی هریرة ﷺ ده وویل ده وویل چي یو سړي وویل وآنحضرت ﷺ ته یا رسول الله څوک ډېر حقدار دی په ښه صحبت چي زه یې ورسره وکړم؟ قال ﷺ امک قال الرجل ثم من؟ قال امک ثم امک ثم اباک.

**فائده:** ددې حدیث له نکته نګاه څخه معلومه سوه چي د مور درې حقه د حسن صحبت دي او د پلار یو، دلیل یې دا دی چي مور اولاً زوی نهه (۹) میاشتي علی الاغلب په خپله خېټه کي ساتلی دی چي ډېر مشقت وړ مور. وروسته په وخت کي د زېږېدلو او په جلاوالي کي د حمل پر دې ډېر تکلیف تېرېږي. بیا وروسته د رضاع په

سُورَةُ سَبَإٍ مَكِّيَّةٌ وَهِيَ اَرْبَعٌ بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ وَخَمْسُوْنَ اٰيَةً وَّسِتُّ رُكُوْعَاتٍ

**پوهه:** چي مکي والی دديپ سورت مروي دی د رئيس المفسرين عبد الله بن عباس رضي الله عنهما و قتادة رحمه الله ، او په تحرير کي وايي چي دا سورت مکية دی بالاجماع لکن مع هذا ابن عطية رحمه الله وايي الا قوله ويری الذين اوتوا العلم آه فانه مدنية.

## اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِیْ لَهٗ مَا فِی السَّمٰوٰتِ وَمَا فِی الْاَرْضِ

ملكًا وخلقًا وعبيدًا ، نو له هم دي سببه خدای جل جلاله مستحق د حمد دی من جميع العباد سرًا وجهرًا دون غير فالحمد لغيره تعالى راجع اليه تعالى بالآخرة لانه المعطي للمحود عليه لكل عباده.

## وَلَهُ الْحَمْدُ فِی الْاٰخِرَةِ ؕ وَهُوَ الْحَکِیْمُ الْخَبِیْرُ ۝۱

او ده لره دی خاص حمد د آخرت په ورځ (ولي معطي د نعمتو د آخرت خدای ج دی چي د مجازي حمد ځای هم نه پاتېږي کما في الدنيا لپاره د تنبيه پر حصر د حمد په خدای ج پوري ، جار و مجرور يې دمخه کړه يعني له چي دال پر حصر دی) او خدای جل جلاله حکمت والا او باريک بين دی ، چي امور د دين اسلام يې نازل کړي دي چي سراپا حکمت او مصلحت دي د دنيا ، دين او آخرت ، او خدای ج خبر دی په پټو شيانو لکه په ظاهره امورو.

**فائده:** حمد د آخرت د اهل الجنة له خوا ښخه دی کما حکی الله عنهم وقالوا الحمد لله الذي هدانا لهذا وما كنا لنهتدي لولا ان هدانا الله ، وايضًا حكى الله عنهم وقالوا الحمد لله الذي صدقنا وعده ، وايضًا الحمد لله الذي اذهب عنا الحزن.

## یَعْلَمُ مَا یَلِجُ فِی الْاَرْضِ

خدای ج خبر دی چي داخلېږي په مځکه کي لکه اوبه د بارانو چي په اعماقو کي د مځکو داخلېږي ، يا اموات چي و قبورو ته داخلېږي يا هغه شيان چي په اعماقو کي د مځکي قدرتي داخل داخل پيدا سوي وي لکه خزاني د سرو زرو او سپينو زرو او کبريت يا مس يا وسپنه چي په غرو کي د مځکي موجود دي الی غير ذالک.

**پوهه:** چي "يعلم" استيناف دی لپاره د دليل د حکم مذکور قبلها.

# وَمَا يَخْرُجُ مِنْهَا وَمَا يَنْزِلُ مِنَ السَّمَآءِ

او پر هغو شيانو هم علم لري چي له مځکي څخه راوځي لکه اوبه د څاهانو او د کاريزو او په اوسني زمانه کي اوبه د برمو (يا نباتات يا درختي ميوه داري وغيرها يا فلذات يعني قيمتي شيان چي د مځکي څخه راوځي يا مړي چي له قبورو څخه راوځي په ورځ د قيامت) او په هغو شيانو خبر دی چي نازلېږي له اسمان څخه چي بارانونه او واوري او ږلۍ دي يا تکي دي يا ملائيکي دي چي د مځکي پر اوضاع کمارل سوي دي. والكتب السماوية النازلة على الانبياء عليهم السلام والمقادير كما في ليلة النصف من شعبان وانواع البركات واقسام البليات كالاحجار النازلة على قوم لوط وغيرها.

# وَمَا يَعْرُجُ فِيهَا وَهُوَ الرَّحِيمُ الْغَفُورُ ﴿٢﴾

او هغه چي پورته کېږي د اسمان پر خوا من الملائكة وارواح العباد المؤمنين واعمال العباد ودعوات المؤمنين والمؤمنات، او خدای جل جلاله مهربان ذات دی چي نازلوي مايحتاج اليه عباده او بخښونکی دی د هغه کسانو چي شکر کوي د نعمت د خدای ج تقصير نه کوي مع كثرتها.

# وَقَالَ الَّذِينَ كَفَرُوا لَا تَأْتِينَا السَّاعَةُ

او وايي هغه کسان چي کافران دي چي پر موږ نه راځي قيامت ای البعث بعد الموت.

**فائده**: په ارشاد کي وايي چي د دوی مراد د متکلم مع الغير څخه يوازي خپل ځانونه او معاصرين د دوی نه دي بلکې مراد يې ټوله نوع د بشر ده.

# قُلْ بَلَىٰ وَرَبِّي لَتَأْتِيَنَّكُمْ عَالِمِ الْغَيْبِ

ته ووايه هو! رد دی د دوی د کلام او اثبات دی د هغه شي چي دوی نفي څني کوي، ته ورته ووايه داغسي نه ده بلکې راځي (په لباب کي وايي چي ابو سفيان بلات و عزی سوگند خورد كه بعث ونشور نيست حق تعالى فرمود كه ای حبيب من تو هم سوگند بخوريد "وربي" الواو للقسم يعني بحق افريد گار من كه بزودی) يعني د ېر ژر به راځي قيامت، وهو تاكيد لما قبله يعني قل بلى.

**يوه سه**: چي عالم الغيب یا صفت دی د ربي او یا بدل دی.

**يوه سه**: چي په عالم الغيب کي تاکيد دی د لتأتينكم فان عظم به المقسم به چي عالم الغيب دی دلالت کوي پر قوت د مقسم عليه، وفيه اشارة ان الساعة من الغيب وعلم الغيب مختص به تعالى ويكفى لاثباته شهادة الله باتيانها، كريمه: قل اى الشيئ اكبر شهادة قل الله.

لَا يَعْزُبُ عَنْهُ مِثْقَالُ ذَرَّةٍ فِي السَّمٰوٰتِ وَلَا فِي الْأَرْضِ

"لايعزب" كسائي يې په كسره د زاء وايي يعني لايعزِب، او نور قاريان يې په ضمه د زاء وايي والمعنى واحد اى لايغيب "عنه" اى عن علمه تعالى، په قدر د ثقل د يو كوچني مېږي چي كائن وي په اسمانو او ځمكه كي في شيئ الازمنة الماضية او الاستقبالية او الحالية، او بعض مفسران يې داسي ترجمه كوي لايعزب منه مثقال ذرة موجودة في الزمان الحالي كائن في السموٰات والارض ليس بشيئ، ولي چي دا جمله تاكيد د عالم الغيب لپاره ده، وعلم الغيب ليس مخصوصًا بزمان دون زمان كما هو المشرب الاعذب لاهل السنة والجماعة. بيت:

برو علم يک زره پوشيده نيست ..... که پيدا و پنهان به علمش يکی است

وَلَآ أَصْغَرُ مِنْ ذٰلِكَ وَلَآ أَكْبَرُ إِلَّا فِي كِتٰبٍ مُّبِينٍ ﴿٣﴾

او نه كوچني تر ذره او نه لوی تر ذره.

**سوال**: ذالک خو اشاره و ذرة ته ده او هغه مؤنث دی، نو په ذالک څرنګه اشاره ورته وسوه يعني تلک يې نه وو ايه؟

**خواب**: ذرة خو مؤنث غير حقيقي دی اشاره په مذكر او مؤنث دواړو ورته روا ده كما ثبت في محله.

**يوه سه**: چي د كتاب مبين معنى روح البيان په لوح محفوظ سره كړي ده وعلى هذا يشكل امر الاستثناء لان الاستثناء بعد النفي اثبات فيكون المعنى لايعزب مثقال ذرة ولا اصغر منه ولا اكبر ولكن يعزب عنه في كتاب مبين، وهذا معنى فاسد.

**درويش وايي**: چي سراج بلقيني رح وايي چي ولا اصغر ولا اكبر عطف سي پر ماقبل چي استثناء دي د محذوف څخه وي، والتقدير ولا شيئ الا في كتاب مبين، ده

برخه اخلي، مثلاً که مقتدي د مسجد چي دی يعني شاګرد يې امام ؤ هغه مقتدي د شاګرد د استاذ په عداوت کي ؤ، شاګرد هم د خپل استاذ په عداوت کي لپاره د مراعات د مقتدي چي ته ده تنخوا يا زکوة مثلاً ورکوي سرګرم کوشان وي.

**مسئله:** په حديث شريف کي راغلي دي چي که د چا مور او پلار مړه وه په داسي حال کي چي د هغه سړي څخه ازار وه او دی ژوندی ؤ فليستغفرلهما ويتصدق لهما (يعني طلب د بخښي دي کوي د مور او پلار لپاره او خيرات دي پسي کوي) حتی يکتب باراً لوالديه، ومن زار قبر ابويه او احدهما في کل جمعة او احدهما کان باراً (يعني اذا کان يمکن للولد زيارتهما في کل جمعة)

وَإِنْ جَاهَدَاكَ عَلَىٰ أَن تُشْرِكَ بِي مَا لَيْسَ لَكَ بِهِ عِلْمٌ فَلَا تُطِعْهُمَا

او که کوشش وکړي او طلب وکړي له تا څخه مور او پلار تا چي ته شريک کړه ايها المؤمن يعني په عبادت کي هغه شي چي عبارت له بتانو څخه دي وغير ذالک من الملائکة والشمس والقمر چي تا ته نسته ای مؤمنه په شرک د هغو د خدای ﷻ سره علم. نو په دې باره کي د مور او پلار په خوله مه کوه، ولي حق د خدای ﷻ غالب دی پر حق د هر چا، کما ورد في الحديث قال رسول الله ﷺ لاطاعة للمخلوق في معصية الخالق، رواه احمد والحاکم في المستدرک عن عمران والحکم بن عمرو الغفاري او په بخاري او مسلم او په سنن ابی داؤد والنسائي عن علي رضي الله عنه نحوه.

والحاصل: ته ای مؤمنه څرنګه به د مور او پلار په خوله کوې په هغه شي کي يعني الشرک چي تا ته يې بطلان په دلائلو قاطعه وو سره ثابت دی.

وَصَاحِبْهُمَا فِي الدُّنْيَا مَعْرُوفًا

او ته ای مؤمنه ژوند کوه او ګذاره کوه د دغه مور او پلار سره چي دوی تا ته دعوت د شرک درکوي په دنيا کي هغه چي معروف په شرع کي وي يعني شرع او عقل سليم يې قبلوي.

**مسئله:** له دې آيت څخه دا معلومه سوه چي پر مؤمن واجب ده نفقه د مور او پلار چي فقيران وي که څه هم کافران وي، وجاء في حديث اسماء بنت ابی بکر رضي الله عنها چي زما مور مديني ته راغله او دا مشرکه وه په هغه زمانه کي چي د

المحفوظ اى المظهر لكل شيئ وانما كتب على عادة المخاطبين لا مخافة النسيان وليعلم انه لم يقع خلل وان اتى عليه الدهر وهذه الجملة مؤكدة لنفي العزوب انتهى بعبارته، ددې عبارت حاصل دادی چې نه غائبېږي له علمه څخه د خدای ج كذا وكذا خو بيا سره د هغه خداى ج په لوح محفوظ کي مسطور او وليكل سوه لكه د خلكو چي عادت دی چي یو شی که څه هم دده علم پر وي خو بيا هم په يو خط کي وليكي چي نبايده هېر مي نسي، په خدای پاک کي که څه هم هېره متصور نه ده لكن پر عادت د خلكو په لوح مفحوظ کي مثبت او مسطور وګرځول فافهم هداک الله.

**درويش وايي**: چي اخفش چي د بصرې د نحاتو ناموري سرې دی او نه کوفيانو څخه فراء چي الا په معنى د الواو دی فتقدير الكلام كانه قيل لا يعزب عنه ذالک ای مثقال ذرة الى قوله ولا اكبر وعند ذالک قد تم الكلام وهو في كتاب (دا معنى د الا په دې توجيه کي هم علماؤ ډېري خبري کړي دي او په دې توجيه راضي دي، السراج البلقيني ح.

لِّيَجْزِيَ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ

چي خداى ﷻ جزاء يعني ثواب ورکړي وهغو کسانو ته چي ايمان يې راوړی وي او خصلات صالحات يې هم کړي وي.

**بوه سه**: چي دا جمله علت ده لقوله لتأتينكم او بيان دی د باعث پر اتيان د يوم القيامة.

اُولٰٓئِكَ لَهُمْ مَّغْفِرَةٌ وَّرِزْقٌ كَرِيْمٌ ۝

دغو کسانو لره بخښنه ده د بعض تقصيراتو چي په اداء د حقوقو د عبوديت ددوی څخه واقع سوي وي (ولي اداء د ټولو حقوقو د عبوديت متعذر بل غير ممكن) او رزق دی حسن په جنت دار السرور کي چي نه به تعب پکښې وي په عوض کي د ما اتوا به من الحسنات وتفضلاً من الله ﷻ.

وَالَّذِيْنَ سَعَوْ فِيْٓ اٰيٰتِنَا مُعٰجِزِيْنَ

او هغه کسان چي دوی کوشش کاوه زموږ په آياتو کي د قرآن چي باطل يې کړي او د خلكو رغبت له هغو څخه مصروف کړي.

**پوه سه:** چې ''والذين سعوا'' موصول عطف دی پر موصول اول، او دا موصول لکه موصول اول مفعول دی د ليجزي و التقدير ليجزي الذين، چې دوی کوشش کاوه.

**پوه سه:** چې ''معاجزين'' حال مقدره دی له ضمير څخه د ''سعوا'' ای مقدرين عجزنا يعني چې موږ به عاجزه کړي له عقاب څخه، ولي چې ددوی عقيده خو داوه چې لا بعث ولا عقاب.

## أُولَٰئِكَ لَهُمْ عَذَابٌ مِّن رِّجْزٍ أَلِيمٌ ﴿٥﴾

دغو کسانو لره دی من رجز، قتادةؒ وايي چې رجز سوء العذاب ته وايي، نو کلمه د من بيانيه ده.

**پوه سه:** چې د اليم معنی ذو الم ای مؤلم پر صيغه د اسم فاعل له بابه د افعال.

**فائده:** ابن کثير، حفص او يعقوبؒ ''اليم'' په رفع سره وايي، صفت د عذاب يې بولي، او نور قراء يې په جر وايي، صفت يې بولي د رجز.

## وَيَرَى الَّذِينَ أُوتُوا الْعِلْمَ

او پوهيږي هغه خلک چې علم ورکړل سوی دی، چې مؤمنان د اهل کتاب دي لکه عبد الله بن سلام او دده ملګري او د اکا زامنؓ، او قتادهؒ وايي چې مراد له اتوا العلم څخه اصحاب د رسول اللهﷺ دي و من تبعهم باحسان الی يوم القيامة، والمعنی يعلم هؤلاء وقت مجئ الساعة انه الحق عيانًا کما علموه في الدنيا بالبراهين الدالة المذکورة في القرآن.

**فائده:** لفظ د يریٰ محلاً منصوب دی عطف دی پر يجزي يعني تر لام جاره لاندي چې کلمه د ان ورسره مقدره ده لان الحروف الجارة لا تدخل علی الفعل المضارع بدون تقدير ان کما تقرر في النحو، فالتقدير ولان يعلم.

## الَّذِي أُنزِلَ إِلَيْكَ مِن رَّبِّكَ هُوَ الْحَقَّ

هغه کتاب چې نازل کړل سو وتاته له جانبه د رب ستا.

**پوه سه:** چې موصول سره د صله مفعول دی د يریٰ، لفظ د هو مبتداء ده او الحق يې خبر دی او جمله منصوب محلاً ده، دوهم مفعول د يریٰ دی.

**فائده:** جمله د يرئ چي يې راوړه غرض يې استشهاد دی پر هغه کسانو چي سعوا في آياتنا الخ چي جاهلان او مشرکان د مکې وه.

**وَيَهۡدِيٓ إِلَىٰ صِرَٰطِ ٱلۡعَزِيزِ ٱلۡحَمِيدِ ۝٦**

او هدايت دی و لاري ته د غالب خدای ﷻ فيما اراد چي محمود دی يعني يحمده الناس، والمراد به الاسلام.

**پوه سه:** ضمير په "يهدي" کي يا راجع دی و لفظ الله ته او يا ما انزل اليک چي قرآن دی، او يهدي عطف دی پر الحق، والتقدير هو الحق وهو يهدي آه.

**سوال:** الحق خو مفرد دی او يهدي خو جمله ده، فکيف العطف؟

**ځواب:** محل د اعراب چي وي عطف روا دی.

**وَقَالَ ٱلَّذِينَ كَفَرُواْ**

او وايي هغه کسان چي کفر يې اختياره کړی دی، دا جمله عطف ده پر قال الذين کفروا السابق، او د منځ جملې يې ټولي معترضات وې.

**پوه سه:** چي مراد د الذين کفروا څخه کفار د قريش دي او دوی يو و بل ته خطاب کاوه پر طريقه د تعجب او استهزاء.

**سوال:** چي دا "قال الذين کفروا" عطف سي پر "قال الذين کفروا" کمامر، نو د ضمير راوړل په اخصر نه وای، يعني وقالوا؟

**ځواب:** تصريح په کفروا چي يې وکړه او عطف د مظهر په ځای کي د مضمر چي يې وکړی لپاره د بيان د مناط د حکم د دوی د خبرو يعني هل ندلکم آه، يعني د دې خبرو د دوی کفر معلوم سي يعني چي صراحةً دا معلومه سي.

**هَلۡ نَدُلُّكُمۡ عَلَىٰ رَجُلٖ**

آيا دلالت کنيم ونشان دهم شمارا بر شخص، په پښتو: تاسي ته درو ښيو داسي سړی.

**پوه سه:** چي مراد له رجل څخه د دوی محمد ﷺ دی. او تعبير د ده مبارک څخه چي په رجل سره يې وکړی د باب څخه د تجاهل د عارف دی، يعني دوی ځانو نه داسي واچول چي په عليه الصلوة والسلام ماسوی له دې څخه چي رجل دی بل څه نه پېژنو.

او سره د دې چې قبل دعوى الرسالة قريشو و عليه الصلوة و السلام ته امين مکة وايه:
وليس قولک من هذا بضائره ......... العرب تعرف من انكرت و العجم

يُنَبِّئُكُمْ إِذَا مُزِّقْتُمْ كُلَّ مُمَزَّقٍ

"ينبئكم" صفت د رجل دى اى يخبركم باعجب العجائب.

**پوه سه:** چې لفظ د كل منصوب دى على المصدرية لاضافته الى المصدر الميمي چې ممزق دى، و المعنى چې تاسي مړه سئ او اجساد مو پاره پاره سي په کامل تمزق سره يعني حتى صرتم ترابًا.

إِنَّكُمْ لَفِي خَلْقٍ جَدِيدٍ ۝٧

جمله د انكم آه منصوب ده په تقدير د قول يعني يقول انكم لفي خلق جديد يعني متصرون في خلق جديد، وبالفارسية: درآفرينش نو خواهد بود و زنده خواهد شد، په پښتو: تاسي به په نيوي پيدائښت كي راسئ يعني ژوندي به سئ.

أَفْتَرَىٰ عَلَى اللَّهِ كَذِبًا أَم بِهِ جِنَّةٌ ۗ

**پوه سه:** چې دلته دوه همزه وه اول همزه د استفام ؤ دوهم همزه د وصل ؤ، نو همزه د وصل حذف سو چې دده استغنا راغله په همزه د استفهام.

**سوال:** همزه د وصل كه څه هم له لفظ څخه حذف سي لكن په خط كي خو باقي وي؟

**ځواب:** د خط څخه حذف په خلاف د قياس دى تبعًا لرسم المصحف العثماني.

**پوښتنه:** يو همزه چې ويل كېږي په تلفظ كي نو څوک څه پوهېږي چې دا جمله استفهاميه ده او كه خبريه؟

**ځواب:** چونكه دا همزه په فتح ويل كېږي، نو كه همزه د وصل واى په كسره به ويل كېداى، نو معلومه سوه چې باقي همزه د استفهام دي، نو التباس د خبر او استفهام دفع سو، بخلاف اذا كان همزة الوصل مفتوحة لكه همزه د لفظ الله چې همزه د استفهام پر داخله سي نحو «آلله امرک بهذا كما وقع في الحديث الصحيح الطويل للبخاري وغيره، يا الذكر چې همزه د استفهام پر داخل سي نحو «آلذكر كما وقع في القرآن العزيز، يا الئن چې همزه د استفهام پر داخل سي نحو «آلئن فان هناک لاتحذف

همزة الوصل بل تبدل الفا ويمد ١٢، لانه لو حذف همزة الوصل ويبقى همزة الاستفهام وقع الالتباس بين الخبر والاستفهام، ولي دواړه مفتوح دي، نو يو حذف سي، نو څوک څه پوهېږي چي دا جمله خبريه ده او که استفهاميه انشائيه ده.

**پوه سه:** چي كذبًا مفعول مطلق دی د افترى لان الافتراء نوع من الكذب وهو الكذب عن تعمد.

ترجمة الآية: آيا ده يعني محمد (ﷺ) په قصد تړلي دي پر خدای ج دروا غ يعني په دې خبر کي د بعث بعد الموت ولو صار الميت ترابًا، يا دده سره جنون او لېونتوب سته چي په وهم کي يو خبر ورسي هغه تر خوله راباسي.

**درويش وايي:** چي ابو عمر الجاحظ المعتزلي وايي چي ددې آيت څخه دا معلومه سوه چي د صدق او كذب تر منځ واسطه سته يعني داسي كلام به وي چي نه به صادق وي او نه به كاذب وي، دی وايي چي كافرانو د قريشو چي اهل لسان العربية وه اخبار د عليه الصلوة والسلام بالبعث بعد الموت حصر کړی په افتراء على الله او په كلام د من به جنون، نو دوی په ام به جنة سره دا مراد نه دی ام صدق لانه بعيد بمراحل عن اعتقادهم، نو كلام د من به جنة نه صادق دی او نه كاذب، ولي چي دده په عقيده افتراء په معنى د مطلق كذب ده، نو څرنګه د ام به جنة څخه چي مقابل د افتراء دی كذب مراد وي؟ والجواب عنه: افتراء چي په معنى د مطلق كذب نه ده بلکې الكذب عمدًا ده كمامر، نو د كفارو په عقيده کي خو اخبار د عليه الصلوة والسلام بالعبث والنشور كاذب خو دی. لكن ترديد يې په دې وکړی چي دروا غ دي په قصد وايي او که بې اختياره لکه خبر من به جنون، نو دا حصر دی د خبر كاذب ددوی په خيال في نوعيه وهو الكذب عمدًا او خطاء نو كلام من به جنة واسطه نه ده بين الكذب المطلق والصدق فافهم فانه دقيق كذا في المطول وروح المعاني والمظهري، قال الله تعالى جوابًا لكلامهم.

بَلِ الَّذِيْنَ لَا يُؤْمِنُوْنَ بِالْاٰخِرَةِ فِي الْعَذَابِ وَالضَّلٰلِ الْبَعِيْدِ ۝٨

كلمه د بل اضراب دی ددوی له قول څخه يعني لم يفتر وليس به جنة بلکې هغه کسان چي ايمان پر آخرت نه لري چي هغه مشتمل پر بعث بعد الموت او پر عذاب

په عذاب کي دي يعني په آخرت کي او په لويه ګمراهي کي دي او لېري والي کي دي له حق څخه په دنيا کي.

**فائده:** توصيف د ضلال چي يې وکړی په بعيد سره مجازًا دی لان الاصل ان العبد عن الحق في الدنيا صفت د ضال دی فيکون کقولهم مبالغة شعر شاعر، وروسته خدای پاک شروع وکړه په دليل کي د صدق د عليه الصلوة والسلام في الاخبار عن البعث والنشور والعذاب لمن انکر ذالک فقال:

**أَفَلَمْ يَرَوْا إِلَىٰ مَا بَيْنَ أَيْدِيهِمْ وَمَا خَلْفَهُم مِّنَ السَّمَاءِ وَالْأَرْضِ ۚ**

آيا دوی نه ګوري (الاستفهام للانکار ونفي النفي اثبات يعني وينې، او هم لپاره د توبيخ ددوی دی وکلمة الفاء للعطف على مقدر کما هو القانون وقد مر ذالک مرارًا، تقديره ههنا اعموا فلم يروا، آيا دوی ړانده دي فلم ينظروا) ای الی ما احاط بجوانبهم يعني چي د مخ په خوا کي چي د مابين ايديهم ترجمه ده او د شا په خوا کي چي د ما خلفهم معنی ده. والمراد الاحاطة بجميع جوانبهم، له اسمان او مځکي څخه يعني دغه شيان چي په مشاهده کي حاضر دي چي اسمان او مځکه ده.

**پوه سه:** چي من السماء والارض بيان دی د ما بين ايديهم آه، يعني دغه شيان تول په پر قدرت تامه د صانع مختار او پر کمال قدرت دده تقاضا لري چي بعث بعد الموت هم د خدای ج د قدرت له دائرې څخه خارج نه دی، نو تاسي څرنګه حکم په استحاله کوئ ... بيت:

برګ درختان سبز درنظر هوشيار ..... هر ورقی دفتريست معرفت کردګار

فکيف بالسماء والارض، او څرنګه مخبر په بعث بعد الموت سره چي رسول الله ﷺ دی تاسي يې تکذيب کوئ يا څرنګه حکم د جنون پر کوئ او سره ددې چي مخبر مذکور ؑ په کامل صفاتو د کمال من العقل الکامل والصدق المعروف تاسي يې پېژني حتی چي تاسي به دی د مخه تر دعوی د نبوت آمين مکه بالله، نو دا ستاسي خبري نه دي مګر ضلال بعيد من الحق، نو دا جمله دليل ده لقوله تعالی بل الذين لايؤمنون الآية، وروسته تر بيان د ضلال ددوی خدای ج دوی بېروي في ما هم عليه من الضلال المبين بقوله:

إِن نَّشَأْ نَخْسِفْ بِهِمُ الْأَرْضَ أَوْ نُسْقِطْ عَلَيْهِمْ كِسَفًا مِّنَ السَّمَاءِ

که زمونږ اراده وي پر موجب د جنایاتو ددوی، نو په مځکه به یې ننباسو یعني لکه قارون په وخت کې د موسیٰ ؑ، وبالفارسیة: فرو بریم ایشان به زمین، یا به موږ را ایله کړو ټوټې د وریځې پر دوی.

**پوه سه:** چې کسف لکه قطع لفظًا ومعنًی جمع د کسفة ده لکه قطعة، په مفردات کې وایي چې د کسفة معنی قطعة ده یا د وریځې یا د پنبه ؤ ونحوها من الاجسام المتخللة، ومعنی کسف من السماء اسقاط قطع من النار، په صورت کې د وریځې کما وقع لاصحاب الایکة وهو قوم شعیب ؑ چې دوی ښه درختې او باغونه درلوده، چونکه د شعیب ؑ د توحید دعوت یې نه ومانه، نو اولاً خدای ج پر دوی سخته ګرمي مسلطه کړه چې دوی د ګرمی له کبله په غارو او زیر زمین ننوتل، وروسته خدای ج ښه وریځ پیدا کړه دوی له غارو څخه راووتل او داسي یې وویل هذا عارض ممطرنا، نو د اور باران شروع سو، ټول یې وسوځل، او بعض مفسرین وایي چې مراد له کسف من السماء څخه ټوټې د ډبرو دي له جانبه څخه د اسمان لکه پر قوم لوط وه اوربدلې. حاصل د کلام الهي دادی چې قریش سره د لیدو د آیاتو بیناتو پر صدق د دعوی د رسالت مآب محمد المصطفی ﷺ او په صدق کې ددې خبري دده چې بعث بعد الموت راتلونکی دی، دوی زما د قدرت د دائرې څخه د عذاب نه سي وتلای، ولې چې شاوخوا اسمان پر راګرځېدلی دی هر ځای چې دوی وي مقهور او مغلوب زما د قدرت دي، او ددوی کړه وړه مستحق ددې دي چې یا یې په مځکه کې خسف کړم لکه قارون یا د ډبرو باران پر وکړم لکه قوم لوط یا د اور باران پر وکړم لکه قوم د شعیب ؑ.

إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَآيَةً لِّكُلِّ عَبْدٍ مُّنِيبٍ ﴿٩﴾

په تحقیق په دغه کې چې دوی یې ویني من السماء والارض، دلالت واضحه دی پر قدرت د خدای ﷻ او پر جواز د بعث بعد الموت وجواز تعذیب من کفر بالنار، هر بنده لره چې رجوع و خدای ﷻ ته وکړي، یعني په زړه سالم سره من وساوس الشیطان الرجیم وتقلیداً الآباء، ابراهیم بن ادهم قدس سره وایي اذا

صدق العبد في توبته صار منيبًا لان الانابة ثاني درجة التوبة، او ابو سعيد القرشي رحمه الله وايي چي منيب هغه څوک دی چي راجع سي د هر هغه شي چي دی مشغوله کوي له خدای ج څخه و خدای ج ته، وقال بعضهم الانابة رجوع منه تعالى اليه اى من غضبه و عقابه الى رحمته و غفرانه.

## وَلَقَدْ آتَيْنَا دَاوُودَ مِنَّا فَضْلًا

كلمة اللام مؤطئة لقسم محذوف اى والله په تحقيق موږ ورکړی ؤ وه داؤد ع ته زموږ له خوا فضيلت اى على كثير من عباده المؤمنين على قياس قوله تعالى حكاية عن سليمان ع الحمد لله الذي فضلنا على كثير من عباده المؤمنين.

فضائل داؤد عليه السلام (۱) النبوة (۲) الكتاب يعني الزبور (۳) سلطنت (۴) حسن الصوت (۵) نرم والی د اوسپني په لاس کي دده (۶) صنعت د زغري وغير ذالک.

**بوه سه:** چي فضلاً مفعول به دی د آتينا او منا په تقدير د كائنا حال مقدم دی له فضلاً څخه.

**فائده:** فضلاً يې ووايه له دې جهته چي دا ټوله مذکوره شيان فضل د خدای ج دي يعني احسان اذ لا وجوب على الله تعالى.

## يَا جِبَالُ أَوِّبِي مَعَهُ وَالطَّيْرَ

دا بدل دی له فضلاً څخه يا له آتينا څخه په تقدير د قلنا يا جبال.

**بوه سه:** چي اوب رجوع ته وايي. يعني تسبيح وايا ست سره د داؤد ع هر وخت چي دی رجوع و تسبيح ته وکړي. او بعض مفسرين وايي چي د اياب معنى تسبيح ده يقال اوب اذا سبح فان المسبح يرجع الى الله معرضًا عن غيره، او وهب بن منبه رحمه الله وايي ژاړي سره د داؤد رحمه الله يعني چي دی ژاړي تاسي هم ژاړئ.

**فائده:** په قدرت د خدای ج به د غرو به هم هغسي تسبيح ويله لکه داؤد ع چي به ويله. او دا معجزه د داؤد ع په حديث صحيح کي راغلی دی چي څو دانو سنګريزو په لاس کي د عليه الصلوة والسلام تسبيح وويل چي حاضرينو واورېدل يا چي عليه الصلوة والسلام هغه شګي په لاس کي د ابوبکر رض هورې يې هم تسبيح ويله وفي رواية ثم في يد عمر رض.



Scanned by CamScanner

**سوال**: نداء و شي ته فرع د فهم د هغه د والجبال جمادات؟

**ځواب**: روح المعاني وايي لايبعد اى عن قدرته تعالى انه تعالى خلق فيها اى الجبال الفهم اولاً ثم ناداها كما ينادى اولوا الفهم وامرها اى الجبال بقوله اوبي معه وكذا قال بعض اجلة المفسرين انه سبحانه تعالى نزل الجبال منزلة العقلاء الذين اذا امرهم الله اطاعوا واذعنوا واذا دعاهم سمعوا واجابوا اشعاراً ودلالةً على عزة الربوبية وكبرياء اللوهية، بانه ما من حيوان وجماد الا وهو منقاد لمشيته تعالى غير ممتنع عن ارادته تعالى.

**درويش وايي**: چي بعض مفسران چي د عقل صرف په کړی کي بند دي وايي چي داؤد ؑ چي به تسبيح په زوره ويل له غرو څخه به ازانګه اوريدل کېدل، او چي ده به ژړل له غره څخه به ازانګه د ژړا اوريدل کېدل، انتهى.

وفيه نظر لان الصدى (اى ازانګه) ليس بصوت الجبال حقيقة بلکي له آثارو څخه د صوت د متکلم دى، کما ثبت بالبرهان، او بل سوال دا پر وارد دى چي صدا يعني آزانګه اختصاص په داؤد پوري نه لري بلکې هر انسان چي په زوره نعره وکړي په غره کي ازانګه اوري يعني مثل صوته.

**درويش وايي**: چي روح البيان وايي چي د اوب معنى سير بالنهار هم راغلي ده، نو ده ويلي دي چي غرو ته خداى ج امر وکړی ؤ چي تاسي روان او سئ هره خواته چي داؤد ؑ يې وغواړي آه، روح المعاني دا توجيه رد کړي ده چي غرونه خو اوتاد د مځکي دي ولم ينقل سيرها مع داؤد ؑ او غيره، کريمه: وجعلنا الجبال اوتاداً.

**درويش وايي**: چي د غه رنګه په حديث صحيح کي راغلي دي چي مځکه چي د اوبو پر مخ کنبېښوول سوه حرکت يې کاوه نو خداى پاک جبال ثوابت پر پيدا کړه نو مځکه ودرېدل.

**پوه سه**: چي "والطير" معطوف على الجبال، او مرغانو ته هم دا امر ؤ اوبى مع داؤد ؑ، روح البيان وايي چي والطير منصوب دى عطف دى پر فضلاً، والمعنى وآتينا داؤد الطير اى سخرنا له الطير چي دده د تسبيح سره به دوى هم تسبيح ويله او مظهري وايي چي الطير معطوف دى پر جبال، والمعنى يا جبال اوبي مع الطير، او نصب يې بنا عطفاً على محل الجبال چي منادى د يا مفعول معه والتقدير يا جبال

اوبي مع الطير او بعض قراء يې په رفع سره وايي حملاً على لفظ الجبال.

وَأَلَنَّا لَهُ الْحَدِيدَ ﴿١٠﴾

او موږ نرمه کړځولې وه و ده ته اوسپنه حتی اوسپنه به په لاس کې دده لکه موم داسې وه يا لکه خمير او ره هر شی چې به يې ځني جوړاوه نه اور ته حاجت ؤ او نه ضرب ته د سندان ضرورت ؤ، بغوي وايي چې ددې سبب دا ؤ چې داؤد ؑ چې مملکت د بني اسرائيلو په لاس کې واخستی، نو عادت دده دا ؤ چې خلګو ته راوتی د شپې په غير د لباس شاهي چې په عربي يې متنکر بولي، نو ده چې به داسې سړی وليدی چې دی به يې نه پيژندی، نو داؤد ؑ به ور نژدې سو چې سړيه ته د داؤد ؑ چې سلطنت د بني اسرائيلو په قدرت کې لري څه خيال لرې، نو هر سړي به يې مدح کوله او دده د سلطنت به يې ډېره منّنه کول يعني چې ډېره ښه حکمراني کوي، اخيراً يوه ملکه خدای پاک په صورت د سړي په مخه وروستل، داؤد ؑ حسب العادة د هغې ملکې څخه چې پر صورت د سړي وه پوښتنه وکړه چې د داؤد په سلطنت او حکمرانۍ کې ستا څه عقيده ده؟ ملکې ورته وويل نعم الرجل هو لو لا خصلة فيه، يعني ښه سړی دی داؤد که يو خوی نه وای پکښې! قال داؤد ؑ وما هي؟ هغه خوی څه شی دی يا عبد الله؟ ملکې ورته وويل چې انه يأكل ويطعم عياله من بيت المال، نو داؤد ؑ پوه سو چې دا خبره خو معقوله خبره ده نو د خدای ج څخه يې سوال وکړی چې ماته داسې سبب را برابر کړې چې په هغه زه مستغني وګرځم د بيت المال له خوراک څخه او په هغه سبب زه او عيال زما به د عمل اليد خوراک کولای، نو خدای ج ورته نرمه کړه اوسپنه او ده ته يې تعليم د صنعة اللبوس وکړی يعني د زغرو جوړېدل.

**تاريخ وايي:** چې اول صانع د زغرو داؤد دی، نو ده چې به يوه زغره جوړه کړه په څلور زره روپۍ يې خرڅوله، نو له هغو رپو څخه به يې د عيال نفقه ورکوله. او چې تر نفقه دده او عيال به بالا سوه هغه به يې فقراء او مساکينو ته ورکوله، او بعض اهل تاريخ وايي چې داؤد ؑ به هره ورځ يوه يوه زغره جوړول او په شپږ زره درهم به يې خرڅول دوه زره درهمه به يې په عيال خرڅول او څلور زره بې په فقراؤ او مساکينو خرڅول، په حديث شريف کې چې روايت يې مقدام بن معديکرب کړی دی قال قال رسول الله ﷺ ما اکل احد طعاماً قط خيراً من ان يأكل من عمل

يديه وان نبي الله داؤد ؑ كان يأكل من عمل يده، رواه البخاري واحمد.

أَنِ اعْمَلْ سٰبِغٰتٍ

**پوه سه:** چي كلمه د ان مصدريه ده والفعل مقدر اى امرناه بعمل "سبغت" اى دروعًا كوامل واسعات طوال يجرها لابسها على الارض وقدر في السرد، او ته اندازه لګوه په جوړولو كي د زغرو.

**پوه سه:** چي سرد ګنډل دي د پوست د يو شي لپاره لكه سړى چي د ګيډړو پوستونه سره ګنډي او چپنه ځني جوړوي، بيا دا لفظ استعماره سو د ودلو د زغرو لپاره.

**فائده:** اندازه د زغرو د جوړولو داده چي الغې د زغري به سره مناسب وي او مېخونه يې پر اندازه د الغو وي يعني نه به يې مېخونه ډېر نري وي چي بيا زغره كېښته ځړيږي نه به ډېر پنډ وي چي بيا الغې ماتوي، وهذا معنى قوله وقدر في السرد.

وَقَدِّرْ فِي السَّرْدِ وَاعْمَلُوا صَالِحًا ۖ إِنِّي بِمَا تَعْمَلُونَ بَصِيرٌ ﴿١١﴾

تاسي عمل كوئ اى داؤد ؑ واهله "صالحًا" اى عملاً خالصًا لوجه الله تعالى چي صالح د قبول په دربار كي د خداى ج وي.

**فائده:** دا لفظ يا منصوب دى مفعول به دى او يا مفعول مطلق دى كما لايخفى "اني بما تعملون بصير" والمعنى اني بما تعملونه كه ما موصوله او عائد يې محذوف سي او يا بعملكم كه كلمه د ما مصدريه سي، والمعنى فأجازيكم به عن ابى هريرة رض ان الله طيب لا يقبل الا طيبًا.

**فائده:** په دې آيت كي يعني واعملوا آه، او په يو بل آيت كي يا ايها الرسل كلوا من الطيبٰت واعملوا صالحًا. خداى ﷻ مؤمنان او رسولان په يوه دول سره امر كړي دي يعني لكه مؤمنان چي مامور دي په اعملوا صالحًا سره اني بما تعملون بصير، دغه رنګه رسولان يې په ورته امر مأمور كړه.

**فائده:** شيخ سعدي رح وايي:

بيا موز پرورده را دست رنج .... وګر دست دارى چو قارون ګنج
بپايان رسد كيسهٔ سيم وزر .... نګردد تهى كسهٔ پيشه ور

**فائده:** اهل الله وايي چي خاصيت د نامه ده "بصير" داده چي سړي ته خداى ج

توفيق ورکوي د اعمالو د خير کي يو سړي د مخه تر لمانځه د جمعې يا بصير (۱۰۰) واره همېشه وايي فتح الله بصيرته و وفقه لصالح القول و العمل و ان كان الانسان لايخلوا عن خطاء

## وَلِسُلَيْمٰنَ الرِّيْحَ غُدُوُّهَا شَهْرٌ وَّ رَوَاحُهَا شَهْرٌ

او د سليمان؏ لپاره مو هواء مسخره كړه ''غدوها شهر'' يعني جريها بالغدو يعني من الصباح تر زوال پورې د يوې مياشتې مزل وُ پر مځكه للراكب المسرع ''ورواحها شهر'' يعني وروسته تر زوال تر غروب الشمس د يوې مياشتې للجواد المسرع قال الحسن رحمه الله، دى به سهار له دمشق څخه راهي سو غرمه بې په اصطخر كي تېروله وبينهما شهر، بيا له اصطخر څخه روان سو شپې ته به بابل ته ورسېدى وبينهما شهر، او بعض وايي چي د نهار نهارى يعني د ورځي د ځابنت د وه ى به يې په رى كي وكړى چي د ايران په سرزمين كي دى، او د ماښام د وه ى به يې په سمرقند كي خوړله.

## وَاَسَلْنَا لَهٗ عَيْنَ الْقِطْرِ

عطف على سخرنا لسليمان الريح، يعني خداى ج جاري كړي وه د ميسو چي ويلي به وه له معدن څخه، نو دا ميس به داسي رابهېدل لكه اوبه چي د يوې غټې چينې څخه راوځي، بغوي رحمه الله وايي چي اهل تفسير وايي چي د ميسو چينه درې شبانه روزه جاري وه من اليمن كجرى الماء وكانت باليمن، دى وايي چي خلګ نفع په ميسو په نني زمانه كي اخلي هغه ميس دي چي په زمانه كي د سليمان؏ راوتلي وه.

**درويش وايي**: چي په ټوله نړى كي د ميسو ډېر غټ او كوچني ډېګونه او غټې وكوچنۍ ګډوې سته، غرض دا چي د ميسو غير متناهي لوښي سته، نو دا عقل نه قبلوي چي د ټولي نړى د ميسو لوښي دي د هغو ميسو څخه وي. وقد مضى زمان سليمان؏ الى الآن الوف من السنوات، البته كه مراد دا وي چي په يمن كي ميسي لوښي د هغو درو ورځو د ميسو څخه دي، نو امكانات يې سته فافهم.

**درويش وايي**: چي په غرو كي د نړى معدنيان د ميسو سته چي خلګ يې راباسي كه څه هم رابهېږي خو نه لانه كان معجزة لسليمان؏، درحديث صحيح آمده كه رسول الله ﷺ جعفر رضي الله عنه بيک غزا فرستاد و امارت جيش باو داد ولواى اسلام

بدست او بود کفار حلمه کردند ویک دستش بیند اختند، جعفر ﷺ لوا اسلام بدست دیگر گرفت و کفار یک حمله دیگر آوردند و دیگر دستش بیند اختند، پس ازان (۷۹) زخم بر بدن مبارک وی کفار زند تا شهید شد، او را بخواب دیدند وبه او درخواب گفتند ما فعل الله بیدیک؟ گفت عوضني الله من اليدين جناحين اطير بهما في الجنة حيث اشاء مع جبرئيل و ميكائيل[۴].

**درویش وایي**: چي لـه دې سببه ده ته جعفر طيار وايي، اسماء بنت عميس رضی الله عنها وايي چي يو وخت رسول الله ﷺ ولاړ ؤ چي نا ببره يې وعليكم السلام ووايه. اسماء بنت عميس رضی الله عنها وايي چي ما ورته وويل چي چاته دي سلام ووايه يا رسول الله[۴] زه خو څوک نه وينم چي تاتـه دې السلام عليكم ويلى وي؟ رسول الله ﷺ وويـل چي جعفر بن ابی طالب ؤ چي د جبرئيل او ميكائيل پـه همراهي پـه هوا تېرېدله ماته يې السلام عليكم ووايه، ما يې ځواب ورکړی.

**وَمِنَ الْجِنِّ مَنْ يَعْمَلُ بَيْنَ يَدَيْهِ بِإِذْنِ رَبِّهِ ۖ**

او بعض د پېرانانو دي چي کار به يې کاوه په حضور کي د سليمان[۴].

**بوه سه**: چي پر تقدير د دې چي الريح مرفوع سي کما مر وجهه، نو موصول سره د صلې يعني من يعمل آه مبتداء ده خبر يې محذوف دی ای مسخرة او من الجن حال دی د ضمير مستکن په يعمل چي راجع و من ته دی، نو دا عطف د جمله اسمية دی پر جمله اسمية باندي، او پر هغه تقدير چي الريح منصوب وويـل سي، نو دا موصول سره د صلې يعني من يعمل آه معطوف دی پر الريح باندي او من الجن يې حال مقدم دی، والتقدير وسخرنا له من يعمل بين يديه حال کونهم من الجن "باذن ربه" ای بامره وحکمه تعالى او يا بارادته تعالى وتسخيره، او حرف جر متعلق دی په يعمل پوري.

**وَمَنْ يَزِغْ مِنْهُمْ عَنْ أَمْرِنَا نُذِقْهُ مِنْ عَذَابِ السَّعِيرِ ﴿١٢﴾**

که به چا اعراض او عدول وکړی له جنياتو څخه زمونږ له امر څخه (يعني چي موږ دوی امر کړه چي د سليمان[۴] اطاعت به کوئ) نو موږ به و څکو يعني وبه رسوو له عذاب څخه د اور په آخرت کي کما قال اکثر المفسرين وروی ذالک عن ابن عباس رضی الله عنهما، او بعض مفسرين وايي چي مراد له عذاب السعير څخه عذاب د اور دی په دنيا کي، له

سدي رح ځخه روايت دی چي د سليمان عليه السلام يوه ملکه وه چي په لاس کي يې د اور دُره وه، نو هر جني چي به د سليمان ؑ نافرماني وکړه ملکي به هغه پيری په هغه دره وواهه چي جني به ملکه نه ليدل نو په اور به وسو او هلاک به سو او د نورو به عبرت سو.

**سوال:** جنيات خو له اوره پيدا دي، نو په اور څرنګه سوځي؟

**ځواب:** جني خو خالص اور نه دی بلکې غالب د عناصرو پکښي اور دی لکه د آدم ؑ او ددهٔ د اولاد غالب عنصر خاوره ده، نو دا سوال نه وارديږي چي بني آدم چي د خاورو په خښته ټوک وهي ګاهي ځني هلاک سي فافهم.

**درويش وايي:** چي مظهري رح وايي چي که خدای ﷻ اراده لري له جنياتو ځخه عمل د سليمان ؑ لپاره نو بيا څرنګه جنيات تخلف کولای سي له امر ځخه د خدای ج چي مراد ځني اراده ده، نو تخلف د مراد د ارادې ځخه د خدای ج خو محال دی کما ثبت في محله، وروسته مظهري رح دوه داسي ځوابونه ورکړي دي چي عقل سليم اباء ځني کوي.

**درويش وايي:** چي مظهري رح په خپل ځان دا سوال پيدا کړی دی چي تفسير د امر يې په اراده سره وکړی، او بل مفسر تفسير د امر في قوله عن امرنا په اراده سره نه دی کړی، وهذا روح المعاني يقول ای ومن يعدل منهم عما امرناه به من اطاعة سليمان آه، وهذا روح البيان يقول ومن يعدل من الجن ويعمل عما امرناه به من طاعة سليمان ؑ ويعصه، او دا خو اظهر من الشمس خبره ده چي له امر ځخه د خدای ج مخالفت او سرغړونه خو ممکنه نه ده بلکې واقع ده، کما في الكفار والعصات فتدبر، او فقير په خپل وار هم ورته تفسير کړی دی.

## يَعْمَلُونَ لَهُۥ مَا يَشَآءُ مِن مَّحَٰرِيبَ

دوی جوړول يعني جنياتو د سليمان ؑ لپاره چي د سليمان ؑ به خوښ وه "من محاريب" جمع د محراب ده او صيغه د منتهی الجموع ده، نو غير منصرف ده، ولي چي صيغه د منتهی الجموع قائم د دوو سببو ده د عدم انصراف کما ثبت في النحو، نو له دې سببه سره د دخول د حرف جر مفتوح ويل کيږي.

**يوه سبه:** چي "يعملونه له" جمله استينافيه ده او يا حال ده له فاعل ځخه د يعمل قوله تعالى ومن الجن من يعمل آه، په قاموس کي وايي چي المحراب الغرفة ای لوړه خونه، وصدر البيت واكرم مواضعه ومقام الامام من المسجد،

والموضع الذي يتفرد فيه الملک عن الناس انتهی، په مفرداتو کې وايي چې مقام د امام ته چې محراب وايي لانه موضع محاربة الشيطان والهوی.

**فائده:** په دې آيت کې له محاريب څخه مراد محکمه کلاوې دي او رفيع القدر مساجد دي او استوګنځايونه شريفه دي، بغوي رح وايي چې جنياتو د سليمان ع لپاره بيت المقدس جوړ کړی دی، د بيت المقدس ابتدائي بنا خو داؤد ع کړې وه يو قامت دېوالونه چې يې پورته کړه وحي ورته راغلې چې د بيت المقدس اتمام د بناء ستا پر لاس زما مقدر نه ده لکن دا بناء چې پای ته رسوي ستا زوی به وي چې نوم به يې سليمان وي، نو د داؤد ع عمر چې (۱۴۰) کاله سو او امارات د مرګ ورته معلومې سوې، نو سليمان ع يې خپل جای نشين او خليفه وګرځاوه، نو سليمان ع چې اراده د بيت المقدس وکړه نو جنيات او شيطانان يې جمع کړه او پر دوی يې کارونه تقسيم کړه، نو هرې طائفې ته د دوی يې هغه عمل وسپاری چې په هغه کې صلاحيت د هغه عمل ؤ، نو بعض جنيات او شيطانان يې په دې سره مأمور کړه چې تاسې سپين سنګ مرمر له خپلو معادنو څخه را وکاږئ، اول يې د بيت المقدس د ښار په بناء شروع وکړه په رخام او سنګ مرمر سره، د ښار دېوال يې دوولس حصې کړې پر هره حصه يې يو قوم د بني اسرائيلو موظف کړی چې بني اسرائيل هم دوولس سبط وه، د بيت المقدس د ښار بناء چې په لوړه سطح پای ته ورسېدل، نو بيا يې د مسجد په بناء پيل وکړی او شيطانان يې ډله ډله وګرځول، يوه ډله يې پر استخراج د سرو زرو، سپينو زرو او د ياقوتو د خپلو معادنو څخه وګمارل، او داغه رنګه د صافو ملغلرو له درياب څخه، او بل ګروپ يې پر جواهراتو او قيمتي ډبرو موظف کړی له خپلو معادنو څخه، او بله ډله يې وټاکل چې تاسې به مشک او عنبر راوړئ او نور قسم قسم خوشبويه مواد د خپلو ځايو څخه دا شيان تر تولو تکميل سوه چې شمېر او مقدار يې خدای ج ته معلوم دی، او سليمان ع وروسته بنايان او معمار باشان حاضر کړه هغو امر وکړی چې دا غټې ډبرې دي وتراشل سي او تختې تختې دي وګرځول سي او د جواهراتو دي هم اصلاح وکړي او ملغلرو او ياقوت ته دې سورې ورکړي، نو د مسجد د دېوال بناء يې رخام، ابيض، اصفر او اخضر وګرځوله، او ميلان يې د صافو سرو او سپينو زرو او بام يې په

تختو د جواهراتو قیمتي ؤ جوړ ؤ، او دېوالونه يې ښائسته کړي وه په ملغلرو او په ياقوت وسائر الجواهرات او مځکه د مسجد اقصیٰ په تختو د فیروزو وه، حاصل دادی چي په ټوله نړۍ کي يو څومره خوبصورت او ښائسته او روښانه او قشنګ د بیت المقدس تر مسجد نه وه چي په تاریکه شپه کي داسي بر ېښېدله لکه سپوږمی د څورلسم، تاریخ وايي چي سلیمان؏ چي فارغه سو له بناء څخه د مسجد د بیت المقدس، نو سلیمان؏ علماؤ ته د بني اسرائیلو مهماني جوړه کړه او په ضمن کي د مهمانۍ يې ورته وویل چي دا مسجد ما د خدای ﷻ لپاره جوړ کړی او هر شی چي په دې مسجد کي دي هغه خالصةً لله دي، او د غه ورځ د فراغ ده له مسجد څخه د بیت المقدس دوی د اختر په توګه ولمانځل.

تاریخ قدیم خبري کوي چي ولادت باسعادت د سلیمان؏ د غزې په ښار کي ؤ او د ه ته مملکت د پلار ورسېدی چي عمر يې دوولس (۱۲) کاله ؤ په څلور کاله کي د سلطنت چي د موسیٰ؏ تر وفات وروسته (۵۳۹) کاله تېر سوي وه ده په عمارت د بیت المقدس لاس پوري کړی، او له خدای ﷻ څخه يې د دې خواست وکړی چي (۱) زما حکم اجتهادي ستا د حکم سره برابر وګرځوه (۲) ماته داسي سلطنت راکړه چي تر ما وروسته يې وچا ته ور نه کړې (۳) دې مسجد ته چي څوک راسي لا یرید الا الصلوة فیه ته يې له مسجد څخه داسي وباسې د ګناه څخه پاک لکه هغه ورځ چي مور زېږولی ؤ، په حدیث کي خو راغلي دي چي د سلیمان؏ اول دوه سواله خو یقیناً قبول دي او زه امید لرم چي درېیم سوال به يې هم خدای ﷻ قبول کړی وي.

تاریخ وايي: چي سلیمان؏ په مسجد کي د بیت المقدس زر (۱۰۰۰) قاریان د بني اسرائیلو مقرر کړه، پینځه سوه (۵۰۰) د ورځي او پینځه سوه د شپې، نو يو ساعت د ورځي يا د شپې به خالي له قرائت او عبادت څخه د خدای ﷻ نه تېرېدی او بیت المقدس پر دغه شان او شوکت پاته ؤ (۴۵۳) کاله حتی خرېته بخت نصر بابلي وقصته طویلة کما ذکرنا قبله. تاریخ قدیم وايي چي دا فراغ د سلیمان؏ له بیت المقدس او د هبوط د آدم؏ له اسمانو څخه (۴۴۱۴) کاله تېر سوي وه، والفاصل بین عمارة سلیمان؏ لبیت المقدس و الهجرة النبویة المحمدیة ﷺ تر منځ (۱۸۰۲) کاله وه، تاریخ وايي چي شیطانانو و سلیمان؏ ته عجائب محکمه

کلاوي جوړ کړي وې په یمن کي په ډېرو .... بیت:

نه بر باد رفتی سریر سلیمان علیه السلام .... بآخر ندیدی که برباد رفت

**مسئلة شرعية في تزيين المساجد:**

**پوښتنه:** آیا د مسجد ښائسته کول روا دی په سرو یا په سپینو زرو ونحوهما من الجواهر واللؤلؤ؟

**الجواب:** قال بعضهم مکروه لان فيه اضاعة المال، وقال ابن عباس رضی الله عنه په خطاب کي و مسلمانانو ته لتزخرفنها کما زخرفت اليهود والنصارى، تاسي به ښائسته کوئ مساجد لکه یهود او نصاری، وجه الکراهة ان في تزيين المساجد مشابهة لليهود والنصارى، وفي الحديث الصحيح ان من اشراط الساعة ان تزيين المساجد الحديث، وقال بعضهم هو قربة لما فيه من تزيين المساجد، وقصة سليمان علیه السلام يؤيد هذا القول، قال صاحب الهداية وهذا اذا فعل من مال نفسه واما المتولى فيفعل من مال الوقف ما يرجع الى احکام البنا دون ما يرجع الى النقش حتى لو فعل يضمن من مال نفسه، او ابن الهمام په فتح القدير کي وايي: لاشك ان الدفع الى الفقير اولى من تزيين المساجد وعند اكثر علمائنا لابأس بأن ينقش المسجد بالجص والساج وماء الذهب، وقوله لابأس به يشير الى انه لايؤجر به لكن لا يأثم به قال ابن الهمام محل الكراهة التكلف بدقائق النقوش ونحوه خصوصًا المحراب او التزيين مع ترك الصلوة واللغط فيه (يعني بې فائدې خبري) والجلوس لحديث الدنيا ورفع الاصوات.

**درویش وايي:** چي مظهري پر خلاف د صاحب الهداية چي په اتفاق د اهل مذهب ودرجې ته د اجتهاد رسېدلی دی او پر خلاف د اکثرو علماؤ چي مظهري په خپله اقرار په کړی دی کمامر خپل خلاف ظاهر کړی دی، واما حديث انه لايؤجر به په تفسير کي د لابأس به چي مظهري راوړی دی.

**درویش وايي:** انه لا يعلم الغيب الا الله يعني چي د دې مزين المسجد نيت په جص او په ساج او په ماء الذهب سره څه دی، خدای ج په خبر دی، وفي الحديث المشهور انما الاعمال بالنيات آه، نو له دې څخه دا معلومېږي چي نيت په دې باره کي ډېر کار فرما دی والله اعلم.

بناء على هذا د فقير شخصي رايه داده چي يو سړی د ختو يو عادي مسجد

جوړ کړي او نيت يې رضا الهي نه وي بلکې رياء وسمعه وي هغه ته خداى ج ثواب نه ورکوي، او که يو بنده د خداى ج د رضا لپاره او لپاره د تعظيم د شعائر الله که دېوال او سقف د يو مسجد يو د سرو زرو او بل د سپينو زرو وي او مځکه يې په ډېرو قيمتي قالينو فرش کړې وي او ډېر قيمتي څراغان پکښې ځوړند کړي وي او پرته د دقيقه نقوشو نور تروله همه و همه زيب او زينت پکښې وي ان شاء الله العزيز العليم بنيات العباد خداى عَزَّوَجَلَّ به په جنت کې داغسې زيبا او قشنګ قصر ورکړي بلکې اعلى قدرًا منه والله على کل شيئ قدير وبالاجابة جدير. انما الاعمال بالنيات وانما لامرءٍ ما نوى، الحديث رواه البخاري في اول صحيحه.

**درويش وايي**: چې په اوسني حالت کې چې څوک بناء د حرمينو شريفينو ملاحظه کړي چې څومره په اعلى سطح تمبې دي او په منقش د ول يې بام مسطح دى او مځکه يې په څرنګه سنګ مرمر فرش ده او پر فرش سربېره څومره قيمتي قالينو نه اوار دي، او په حديث شريف کې چې راغلي وه: لتزخرفنها اى المساجد آه کما زخرفت اليهود والنصارى او تشبيهه والله اعلم په دې کې ده چې يهود او نصارى ګرجې او عبادت خانې صرف او صرف د سيل لپاره جوړې سوي دي له عبادته خالي دي او د تورات يا د انجيل چې د دوى کتابونه دي له قرائت څخه هم خالي دي، او په هغه بل حديث کې چې راغلي وه ان من اشراط الساعة تزيين المساجد، والله اعلم هغه تزيين دى چې فقط ظاهري تزيين وي او له عبادته خالي وي چې تزيين معنوي او حقيقي د مساجدو دى، دا وه د فقير شخصي رايه، حاسدان چې هرڅه وايي دوى دي وايي.

## وَتَمَاثِيلَ وَجِفَانٍ

**پوه سه**: چې تماثيل جمع د تمثال ده وهو الصورة على مثال الغير قال الضحاک کانت صور حيوانات، روح المعاني، وقال الزمخشري کانت صور الملائکة والانبياء والصلحاء چې په مساجدو کې دوى درولي وه يا به د ميسو وه يا به د ژړو وه يا به د سنګ مرمر وه يا به د ښيښې وه تاچې خلک يې وويني، نو دوى هم هغسې عبادت وکړي لکه د هغو، وکان الصور في ذالک الشرع جائزًا، کما قال الضحاک وابو العالية رح انتهى قول الزمخشري.

او روح البيان هم اول داغسي تفسير كړى دى، او ده دا هم زياته كړې ده چې حرمت د تصاويرو شرع جديد ده، دى وايي چې وكان اتخاذ الصور كان قبل هذه الامة المرحومة مباحًا وانما حرم على هذه الامة لان قوم رسولنا ﷺ يعبدون التماثيل اى الاصنام على صورة الانسان وغيره من ذوى الارواح فنهى عن الاشتغال بالتصوير. وفي الحديث الصحيح: من صور صورة (اى من ذى روح لا الشجر والحجر كما يدل ما بعد الحديث) فان الله تعالى معذبه حتى ينفخ فيه الروح (خداى ج دى په عذابوي دى تر هغو چې دى روح پكښې پوه كې) وليس بنافخ فيه ابدًا. انتهى قول روح البيان.

**درويش وايي**: چې حكيم الترمذي په نوادر الاصول كي له ابن عباس رض څخه روايت كړى دى چې ده ددې آيت په تفسير كي داسي وويل، چې سليمان ؑ د ميسو د انسانانو تصاوير جوړ كړي وه او خداى ج ته يې خواست وكړى چې په دې كي روح پيدا كړې، نو دوى به په جنګ او خدمت كي تر انسانانو اقوى وي، نو خداى پاك خواست قبول كړى او روحان يې پكښې پوه كړل او هغه به دده خدمت كاوه، دى وايي چې اسفنديار روئين تن له بقاياؤ څخه د هغو دى. او دا قول قرطبي هم په خپل تفسير كي راوړى دى، لكن نسبت يې وابن عباس رض ته نه دى كړى، انتهى قول الحكيم الترمذي بزيادة قول القرطبي من تفسيره من عند هذا الفقير. روح المعاني وايي: وهذا من عجب العجاب ولا ينبغي اعتقاد صحته ونقله من رئيس المفسرين عبدالله بن عباس رضي الله عنهما، وما هو الا حديث خرافة انتهى قول روح المعاني.

**درويش وايي**: چې مظهري رح ددې ټولو رواياتو پر سر منكر دى، او دى وايي چې تماثيل ذوى روح شيانو په هيڅ امت كي نه دي روا سوي، بلكې دى وايي چې په قرآن كي چې تماثيل په قصه كي د سليمان ؑ راغلي دي مراد څني تماثيل د غير ذى الروح دي، دى وايي ولهذا قال ابن عباس ؓ فان كنت لابد فاعلا فاصنع الشجر وما لا روح فيه (كالمنارة والمسجد وغير ذالك).

**درويش وايي**: چې روح البيان او ابو العالية والضحاك چې داسي ويلي دي بالاتفاق چې اتخاذ التماثيل په مخني شرائعو كي روا وه كه څه هم د ذى روح وي بلكې د انسان وي، زموږ په شرع كي حرام سوه يعني منسوخ سوه، مظهري دا ټوله په دې

عبارت سره رد کړي دي: وهو خبر (يعني دا مذكور په قصه كي د سليمان ؑ خو اخبار دی) والخبر لايقبل النسخ (يعني نسخ خو د انشاء کېږي چي امر وي يا نهي) انتهى قول المظهري رح، د فقير نقل وظيفه ده، انصاف ستاسي په لاس دی. د فقه شريفي بعض ضروري او عام النفع احکام دادي، مکروه ده چي فوق الرأس د لمونځ کونکي او يا د مخ وخواته او يا پر برابر دي يو تمثال وي، او اشد كراهةً چي امام المصلى دي ثم فوق رأسه ثم على يمينه ثم على يساره ثم خلفه. وقيل لو كان خلفه لايكره لانه لايشبه عبادة الصنم، وفيه اهانته ولو كان تحت قدميه لايكره لكن وجود د تمثال په خونه کي مکروه دی، ولي په خونه کي عبادة کېږي او ځای د عبادت بايد له داسي شي څخه پاک وي چي مانع د دخول د ملکو وي او مستحب دی، فقهاء وايي چي دا کراهت هلته دی چي تمثال لوی وي، پر داسي ډول چي کتونکي ته نه ښکاره کېږي په اول وار بېله فکر وهلو او که تمثال صغير وجداً چي تمييز د اعضاؤ يې نسوای کېدای هغه مکروه نه دی، فان الصغير جداً لايعبد، او که يې سر پرې ؤ يا کراهت نه لري.

**سوال:** د هر سړي په جيب کي لوټونه سته، نو دا به کراهت نه وي او سره دد يې چي پر هر لوټ باندي د باچا د هغه ملک بت سته؟

**ځواب:** هغه خو پوره تمثال نه دی، فقهاء وايي چي تمثال که تر داسي ځايه پوري ؤ چي پر هغه ځای انسان پرې کړي حيوة يې ممکن نه وي، نو هغه مکروه نه دی، او پر لوټو چي تمثال د بادشاه موجود دی تر داسي ځايه پوري دی چي پر هغه ځايه ژوندی پرې کړې امکان د حيوة يې نسته، البته که د تمثال صرف پښې پرې وې نور بدن يې پوره ؤ هغه مکروه دی، ولي د سړي چي پښې پرې سي امکان د حيوة يې سته کما لا يخفى، وقس عليه مقطوع اليدين، او که په پړش کي تصويرونه موجود وه پر هغه فرش لمونځ روا دی چي پر بت مسجده نه کوي. ولي چي په فرش اهانت دی د تمثال.

**درويش وايي:** چي دا ؤ مشت نمونه خروارد بيان د فقهاؤ رح په باره کي د تمثال.

"وَجِفَانٍ" جمع د جفنة ده په معنى د کاسې چي خلق ډوډی پکښې خوري، بعض اهل لغت وايي مطلقًا يعني که لوی وي او که کوچنی، او بعض اهل اللغة وايي چي جفنة اعظم القصاع ته وايي، او وروسته لفظ د قصعة دی وهي ما تشبع

مما فیها من عشرة نفر، وروسته بیا لفظ د صحفة دی وهي ماتشبع الخمسة، وروسته بیا لفظ د وهي ما تشبع الاثنین و الثلاثة، وروسته بیا لفظ د صحیفة دی وهي ماتشبع واحد، والظاهر چي مراد له جفنة څخه مطلق دی لیفید قوله تعالی.

كَالْجَوَابِ وَقُدُورٍ رَّاسِيَاتٍ

"كالجواب" جمع د جابیة ده چي لوی حوض ته وایي. فالمعنی كالحیاض العظام، راوي وایي چي فراخي د جفانو د سلیمان دا اندازه وه چي پر یوه جفنه یې زرو کسانو خورک کاوه، روح البیان وایي (والله اعلم) چي د سلیمان؏ په مطبخ هره ورځ دوولس زره پسونه حلالېدل او زر غوایي ذبح کېدل دوولس زره نان بایان وه او دوولس زره اصلاح کونکي د اوړو وه او د وړولو د ډوډی، په دغو جفنو کي لكثرة القوم، راوي وایي چي عبد الله بن جدعان چي له رئیسانو څخه د قریشو ؤ او د عائشة الصدیقةؓ د اکا زوی ؤ، دومره لویه جفنه یې وه چي پر اوښ سپور سړی به هم خورک ځني کولای سوای، او ډېر خلګ به د دې جفنه و سایې ته ناست وه، راوي وایي چي یوه ورځ یو کوچنی و دغه جفنه ته ولوېدی پکښي غرق سو.

**یوه سه:** چي "قدور" جمع د اقدر ده وهو مایطبخ فیه اللحم وغیره چي په پښتو یې کټو یا دېګ بولي که د خاورو څخه وي او که د ډبري څخه او که د میسو څخه وغیره څخه وي "راسیات" پر خپل ځای ثابتي وي له یوه ځایه بل ځای ته نسي نقل کېدای، لثقلها وعظمتها، پښې یې ورکړي وي چي نه له ځایه ښورېدې نه راکښته کېدلې او نه به معطل وي یعني چي غوښي وغیره پکښي پخېدلې او دې کټو ته چي ښوروا یا غوښي به یې ځني راکښلې پر زینو به ورختله، دا کټو په یمن کي له غرو څخه شیطانانو سلیمان؏ ته جوړ کړی ؤ، وقیل کن یعني دا کټوي لکه مناسب غرونه.

اِعْمَلُوا آلَ دَاوُدَ شُكْرًا

"واعملوا" په تقدیر د قول ای قلنا لسلیمان؏ واتباعه، دا جمله مستأنفه ده، او عمل کوئ ای آل د داوُد چي مراد ځني سلیمان دی شكرًا.

**نکته:** شكرًا یې نکره راوړی لپاره د تقلیل، ولي چي کثیر شکر موافق له نعمتو سره خارج عن طاقة البشر بل عن طوق کل مخلوق من الجن والملائکة ..... بیت:

عطایست هر موی را برتنم ... چگونه به هر موی شکری منم

**پوه سه:** چي شكرًا منصوب على العلية يعني عمل خالص د شكر الهي لپاره پر نعم جليله ؤ د خداى ج كوي لا لاجل الرجاء او الخوف، او يا مفعول مطلق دى د اعملوا لان الشكر نوع من العمل، او بعض علماء وايي چي اعملوا په معنى د اشكروا دى، نو شكرًا ايې مفعول مطلق دى لا لبيان النوع، او بعض مفسران وايي چي شكرًا حال دى په تأويل د اسم الفاعل اى اعملوا شاكرين لله، لان الشكر يعم فعل القلب و الجوارح، او يا منصوب دى صفت د مصدر محذوف دى اى اعملوا عملاً شكرًا.

**درويش وايي:** چي پر هر تقدير ابن ابى الدنيا او البيهقي په شعب الايمان كي له ابن مسعود رض څخه روايت كړيدى چي دا امر الهي يعني اعملوا آل داؤد شكرًا چي سليمان ع و اتباعه المؤمنين ته وويل سوه، نو داسي يو ساعت پر قوم د داؤد ع نه دى راغلى مگر څوك پر لمانځه ولاړ وه، او په يوه روايت كي راغلي دي كان مصلى آل داؤد لم يخل من قائم يصلى ليلاً و لا نهارًا، او خلک به فوج فوج په نوبت سره مصلى داؤد ته راتله و كان سليمان يأكل خبز الشعير بلا ادام (لكه بنوروا) دون الشبع او مساكينو ته يې د غنمو د اوړو ډوډۍ وركوله، او له ده څخه چا پوښتنه وكړه چي ته ولي اوربشينه ډوډۍ په ډک نس نه خورې؟ ده په ځواب كي ورته وويل چي بيا مي وږي خلک هېرېږي.

## وَقَلِيلٌ مِّنْ عِبَادِيَ الشَّكُورُ ﴿۱۳﴾

**درويش وايي:** چي چونكه الشكور صيغه د مبالغې ده يعني الشكر بلسانه و جوارحه في اكثر الاوقات بلا فتور فيه، ځكه خداى ج وويل قليل من عبادي الشكور.

## فَلَمَّا قَضَيْنَا عَلَيْهِ الْمَوْتَ

پس هغه وخت چي موږ حكم وكړى پر سليمان ع د مرگ.

**درويش وايي:** چي قصه د موت د سليمان ع الى اخيرها ټولو مفسرينو په تفصيل سره بيان كړې ده صرف په عبارتو كي لږ تفاوت او فرق سته، يعني روح المعاني او روح البيان تفسير مظهري حتى مولوي معنوي جلال الدين الرومي ج په ښو موزونو بيتو سره راوړې ده چي د ټولو پښتو ژباړه داده، بغوي ج وايي چي اهل العلم باحوال سليمان ع چي د سليمان ع عادت داؤ ځان يې ساتى په مسجد كي د بيت المقدس يعني لپاره د عبادت كاهي يو كال كاهي دوه كال كاهي يوه مياشت كاهي دوې

میاشتي ګاهي اقل من ذالک ګاهي اکثر دوه ی او او به هورې ور ورل کېدل، نو په دغه کال چې دده اجل را نږدې سو، هره ورځ دده په محراب کي د بيت المقدس به يوه درخته شنه وه سليمان به د هغې درختي څخه پوښتنه کول چې ستا نوم څه شی دی؟ هغې درختي به په کلام فصيح په قدرت د خدای ﷻ خپل نوم ورو ښو، بيا به سليمان ؑ ورته وويل لای شيئ انت يعني په تاکي څه حکمت د خدای ﷻ سته او نفع يا ضرر دي څه دی، هغې درختي به خپل ټول حال ورته بيان کړی، نو که هغه درخته د شنوايي قابله وه د هغې درختي نهال به يې په خارج کي د مسجد شين کړی، او که کوم وابنه يا درخته به د دوا لپاره وه هغه به يې نوشته کړه ثم وثم حتی چې يوه ورځ يوه نابلده درخته په محراب کي وليدل. سليمان ؑ ورته وويل چې ستا نوم څه دی هغې ورته وويل خروبة، سليمان ؑ ورته وويل چې حکمت په تاکي څه دی هغې ورته وويل خراب ستا د مسجد دی. فقال لها ما کان الله لنخربه چې زما مسجد دي خدای ﷻ خراب کړي چې زه ژوندی يم يعني سليمان ؑ په دې پوه سو چې زما د مرګ وخت را نږدې سو، نو هغه درخته يې د محراب څخه وکښله په يو باغ کي يې شنه کړه، د دې لپاره چې دا درخته چې خزان ته نږدې کېږي هغو مره زما اجل را نږدې کېږي لکن سليمان ؑ خدای ﷻ ته خواست وکړی چې زما د مرګ نېټه له جنياتو څخه پټه وساتې حتی چې انسانان په دې پوه سي چې جن لا يعلمون الغيب، چې دمخه به پېريانو وه انسانانو ته ويل چې موږ به غيب سره خبر يو متی شاء ويعلمون ما في علم الله من الحوادث او عزرائيل ؑ ته ده وويل چې زما د مرګ وخت چې را نږدې سي ما به خبروې، نو اخير عزرائيل ورته راغلی ورته وه يې ويل قد بقي من عمرک الی موتک ساعة نو سليمان ؑ شيطانان راوغوښته چې ما ته د ښيښې خونه جوړه کړئ او د محراب پر برابر يې يو سوری د مخ له خوا او بل د شاله خوا ورکړی چې زه تر معلو مېږم، بيا سليمان ؑ محراب ته داخل سو، نو پر لمانځه ودرېدی او پر لکړه يې تکيه وکړه نو په ولاړه يې عزرائيل ؑ روح واخستی او وفات سو، او جنيات په خپلو سختو کارو چې دده په ژوند کي به يې کول بخت ؤ، نو جنيانو چې به تر هغه سوري ورته وکتل دی به پر لمانځه په خيال ورغلی جنياتو به طول قيام دده بد کار نه بولی چې سليمان ؑ ولي نه وځي، ولي طول صلوة د سليمان ؑ ګاهي ګاهي دوی ته معلوم ؤ، نو اوس يې هم هغه خيال ؤ حتی چې

جنياتو يو كال پوره وروسته تر وفات د سليمان؏ په خپل شاقه اعمالو بخت وه، تر هغه وخته چي خداى پاك وايي:

## مَا دَلَّهُمْ عَلٰى مَوْتِهٖٓ اِلَّا دَآبَّةُ الْاَرْضِ

ښوونه ونه كړه دوى ته، پر مرګ د سليمان؏ مګر هغې دابه چي نوم يې ارضة ده چي په پښتو يې وينه بولي او په فارسي يې ديوک بولي او په اردو يې ديمک بولي، وهي دابة صغيرة تأكل الخشب والكتب وغير ذالک مضرة غاية الضرر للبيوت التي بنيت سقوفها على الخشب يعني چي بام يې پر لرګو او تيرانو بناوي او هغه كتابونه هم خوري چي پر مځكه پراته وي يا په يو دربند كي پراته وي.

**پوه سه:** چي ارض مصدر دى د ارضت الخشبة بالبناء للمفعول اى اكلها ارضة (وينه) فهو من اضافة الشئ الى فعله (يعني دابة الارض) لكد بقرت الحرث.

## تَأْكُلُ مِنْسَاَتَهٗ ۚ فَلَمَّا خَرَّ تَبَيَّنَتِ الْجِنُّ

چي وخوړل دابة الارض لكړه د سليمان؏، نو تأكل حال دى د دابة الارض څخه او منسأت لكړي ته وايي من نسئات الغنم اى زجرتها و سقتها بالعصاء "فلما خر تبينت الجن" هغه وخت چي سليمان؏ پر مځكه ولوېدى ميتًا پېرانانو ته دا معلومه سوه.

## اَنْ لَّوْ كَانُوْا يَعْلَمُوْنَ الْغَيْبَ مَا لَبِثُوْا فِي الْعَذَابِ الْمُهِيْنِ ﴿۱۴﴾

"ان مخفف" د مثقل دى اسم يې ضمير شان محذوف دى اى انه، كه دوى په پټ شي خبر واى لكه مرګ د سليمان؏ دوى به د رنګ نه واى كړى په عذاب اهانت درلوونكى مسخرين لسليمان؏ وهو ميت ويظنونه حيًا.

**درويش وايي:** چي زمانه د موت سليمان او د جنتياتو په خپلو سختو كارو بخت وايي، يو كال وروسته دوى ته دا څرنګه معلومه سوه چي يو كال كېږي چي سليمان؏ مړ دى؟

**ځواب:** دوى يو ښه او روغ لكړي ته دوه درې وينه ور ايله كړه هغو چي هره اندازه لكړه خوړلې ده له هغه څخه يې حساب وكړى، نو لكړه د سليمان؏ په يوه كال كي وينو خوړلې وه.

**پوه سه:** چي ان لو كانوا آه بدل اشتمال دی د الجن څخه، والتقدير فلما خر ميتًا تبين ان لو كانوا يعلمون الغيب يعني ظهر عدم علم الجن بالغيب على الناس، ولي چي پېرانانو خو به پخوا و انسانانو ته ويل چي موږ په غيب خبر يو و يؤيد هذا لتأويل قرائة عبد الله بن مسعود و عبد الله بن عباس رض، تبيت الانس (اى علمت) ان لو كانوا (اى الجن) يعلمون الغيب ما لبثوا في العذاب المهين.

**درويش وايي:** چي چا معنى د آيت داسي كړې ده علمت الجن ان لو كانوا يعلمون الغيب آه، دا توجيه ډېره بعيده ده، ولي چي جن خو د مخه پر خپل جهل علم درلودی يعني چي موږ په غيب نه يو خبر بلكې دوی د علم غيب دعوی په نېز د انسانانو كوله، روح البيان د آيت معنى پر بعيد ډول كړې ده لكن په تصحيح د هغې ترجمې ډېر تكليف كړی دی فارجع اليه، البغوي رح وايي چي تاريخ قديم داسي وايي چي د سليمان ټوله عمر (۵۳) كاله ؤ، او مدت د سلطنت (۴۰) كاله ؤ او دی په عمر كي د ديارلس كلنۍ سلطنت ته ورسېدی او د بيت المقدس په تعمير څلور كاله د سلطنت چي تېر سوه شروع وكړه... بيت:

همه ملك و دولت پذير و زوال.... بجز ملك فرمان دهى لايزال
نه ديدى كه بر باد رفتى سرير سليمان.... بآخر نه ديدى كه بر باد رفت

لَقَدْ كَانَ لِسَبَإٍ فِي مَسْكَنِهِمْ آيَةٌ

اى و الله چي ؤ سبا لره په ځای كي د اوسېدو ددوی دلالت ؤ پر كمال قدرت زموږ او پر وجوب د شكر ددوی موږ لره.

**پوه سه:** چي بعض قراء د سبأ په زور د همزه وايي بې تنوينه لانه غير منصرف باعتبار العلمية التانيث لانه صار اسمًا للقبيلة او نور قراء يې په جر وايي سره د تنوينه لانه منصرف لان سبا كان اسم رجل ففيه علمية فقط، بغوي رح وايي: روى ابو سبرة النخعي عن ذروة بن مسك، قال قال رجل يا رسول الله ﷺ اخبرني عن سبا كان رجلاً او امرئة، يا نوم د ځكي ؤ؟ قال رسول الله ﷺ كان رجلاً من العرب چي دده لس زامن وه چي شپږ د يمن پر خوا ولاړه او څلور يې د شام پر لور ولاړه، هغه چي د يمن پر لور ولاړه (يعني اوس د هغه اولادونه قبيله ځني جوړه سوې ده)

(۱)الكندة (اسم قبيلة) (۲) والاشعريون (نوم د قبيلې دی) (۳) ازد (دا هم قبيله ده) (۴) مدجح (دا هم قبيله ده) (۵) انمار (چې اوس قبيله ده) (۶) حمير (چې د قبيلې نوم دی) يو سړي پوښتنه څنې وکړه چې انمار څوک ؤ؟ عليه الصلوة والسلام ورته وويل الذين منهم خشعم ويحيلة. او هغه څلور چې شام ته ولاړه (۱) عاملة (چې اوس نوم د قبيلې دی) (۲) جذام (چې هغه هم اوس قبيله ده) (۳) لخم (چې دا هم قبيله ده) (۴) وغسان (چې دا هم اوس د قبيلې نوم دی) كذا اخرج احمد وغيره، او له ابن عباس رض څخه روايت دی چې مرفوع و عليه الصلوة والسلام ته دی سبا بن يشجب بن يعرب بن قحطان دي، او په شرح کې د قصيدة د عبدالحميد بن عبدون لعبد الملک بن عبدالله بن بدرون وايي چې د دوی اصل نوم ولي سبا دی راوي وايي چې: سبا بن يشجب اول له ملکو څخه د يمن دی اصل نوم يې عبدالشمس ؤ وانما سمی سبا لانه اول من سبی السبی يعني مينځيانې يې په جنګ کې له طرف مقابل څخه راوستلې. سلطنت يې (۴۸۴) کاله وکړی.

**پوه سه:** چې که له سبا څخه هغه رجل مراد وي کما مر فالکلام علی حذف مضاف ای لقد کان في اولاد سبا او که قبيله څنې مراد سي نو حذف ته د مضاف ضرورت نسته.

## جَنَّتٰنِ عَنۡ یَّمِیۡنٍ وَّشِمَالٍ ۬ۖ

**پوه سه:** چې مراد له جنتانو څخه دوه شخصي باغونه دي کما يدل عليه ما بعده او د اعراب له لاري جنتان يا خبر د مبتداء محذوفي دي، تقدير الاية جنتان او يا بدل دي له آيت څخه والمآل واحد "عن يمين" يعني جماعة ؤ عن يمين البلد "وشمال" او جماعت ؤ پر طرف د شمال البلد، او بعض مفسرين يې معنی داسي کوي چې هر سړي لره دوه باغونه وه يو د کور پر راسته طرف ؤ او يو پر چپه طرف، دده مسکن غرض دا دی چې اهل سبا ته خدای ج د پر نعمتونه ورکړي وه.

## كُلُوۡا مِنۡ رِّزۡقِ رَبِّكُمۡ وَاشۡكُرُوۡا لَهٗ ؕ

خوړک کوئ له رزق څخه د خدای ج عبارت دی له مېوو څخه د جنتانو، او شکر د خدای ج وایاست پر دغه رزق او نعمت باندي يعني اعملوا بطاعته لانهم قالوا النعمة

صید والشکر قید کریمه: لئن شکرتم لازیدنکم وان کفرتم ان عذابی لشدید.

**سوال:** د کلوا امر دوی ته چا کاوه؟

**ځواب:** عبارت په تقدیر د قول دی ای قال لهم نبیهم کلوا الخ، او په تفسیر مجمع البیان کي نقلاً عن الغیر وایي چي د اهل سبا دیارلس وطنونه او ښارونه وه، او په هر وطن کي نبي ؤ یدعوهم الی الله ﷻ یقول کلوا آه، روح المعاني، روح البیان، امام رازي، تفسیر خازن او مظهري علیهم السلام وایي چي قول دوی ته په لسان قال نه دی بلکې په لسان حال دی یعني دل الحال علی انهم احقاء بان یقال لهم ذالک.

## بَلۡدَةٞ طَيِّبَةٞ وَرَبٌّ غَفُورٞ ۝

"بلدة طیبة" دا بیان د موجب د شکر ویلو و العبارة بتقدیر المبتداء یعني بلدکم هذا بلدة طیبة ای کثیر الثمر چي ښره مځکه هیڅ نه وه پکښې، سدي او مقاتل رح وایي چي ښځي به پر سر ټوکری راواخستل او په دې جنتو کي به تېرېدل ټوکری به یې د قسم قسم فواکه ؤ او مېوو ډکه سوه بیله دې چي دې په لاس یو درخته مسه کړې وي، ابن زید رح وایي چي د اهل سبا په وطنو کي نه غوماشي، نه شپږه او نه کیکه او نه لړم او نه مار حتی چي د خارج سړی چي به راغلی د دوی وطن ته او په کالو کي به یې شپږي وې هغه به ټولي مړې سوې وذالک لطیب الهواء.

"وَرَبٌّ غَفُورٞ" قال مقاتل رح رب غفور للذنوب ان شکرتم فیما رزقکم، وهب بن منبه رح وایي چي خدای ج واهل سبا ته دیارلس نبیان ور واستول چي دعوت د خدای ج ته ورکړي او نعمتونه د خدای ج یې دوی ته ذکر کړه او د خدای ج له عذابه یې وبېرول یعني کفرتم نعمه.

## فَأَعۡرَضُواْ فَأَرۡسَلۡنَا عَلَيۡهِمۡ سَيۡلَ ٱلۡعَرِمِ

"فاعرضوا" دوی د انبیاء علیهم السلام خبره ونه منل او د دوی تکذیب یې وکړی او ورته یې ویل ما نعرف نعمة الله علینا، او انبیاؤ ته یې وویل چي تاسي رب ته ښتاسي ووایاست چي دا نعمتونه که ده موږ ته راکړي دي خپل نعمتونه دي پر موږ بند کړي که یې طاقت لري (نو موږ مسلط کړی پر دوی یعني اهل سبا باندي سیل العرم.)

**درویش وایي:** چي دا نقل که صحیح وي نو دوی مشرکان نه وه بلکې دهري

المذهب خلګ وه چي د صانع اکبر څخه منکر وه، والله اعلم.

**پوه سه**: چي عرم مشتق دی یعني ماخوذ دی من عرم الرجل اذا ساء خلقه وصعب، او له دې سببه یې ابن عباس رض تفسیر په شدید سره کړی دی، او اضافت د سیل وعزم مثلثة الراء اضافت وموصوف ته یعني سیل چي سخت ؤ.

**درویش وایي**: چي د سیل لفظ مشترک دی د عربي او د پښتو، او بعض نحات وایي چي اضافت د موصوف وصفت ته روا نه دی، هغه تأویل داسي کوي ای سبیل الامر العرم یعني سخت، او یا یې معنی داده سیل المطر الشدید یعني معنی د عرم المطر الشدید ده، فالاضافة علی ظاهرها، بعض مفسرین وایي چي دا باران د متعارف باران څخه مخالف ؤ یعني سرې اوبه وې لکه وینې ارسل الله علیهم من حیث شاء، او بعض مفسرین وایي چي رم د یوې شېلې نوم دی چي په منځ کي د اهل سبا تېره سوې وه، او بعض مفسرین وایي چي عرم بند ته وایي چي په عربي یې مسناة بولي لکه په افغانستان کي د دالې بند یا د هلمند د کرشک بند او بعض مفسرین وایي چي عرم جراز ذکر یعني د یو نوع د صحرایي موږکانو نوم دی چي په پښتو یې خانې بولي، فاضافة سبیل الی العرم ته پر دې تقدیر لپاره د ادنی ملابست دی، یعني هغه سیل چي بند د هغه موږکانو سوری کړی.

**درویش وایي**: چي د دې موږکانو په باره کي روح البیان ډېري عجبي او غریبي قصې کړې دي، والله اعلم، کریمه: ولایعلم جنود ربک الا هو، او د دې بند په باره کي اختلاف دی چي باني د دې بند څوک ؤ، امام سهیلي وایي چي باني د دې بند سبا بن یشجب ؤ، والصحیح عند الفقیر قول البغوي رح قال قال ابن عباس وابن وهب وغیرهما چي دا عرم او په بل نامه سد بلقیس جوړ کړی ؤ، سبب د جوړېدلو یې دا ؤ چي د اهل سبا تر منځ به همېشه جنګ ؤ پر اوبو د دې شېلې، نو دوی امر وکړی چي دا شیله دي بنده سي په عرم چي مسنات یې په لغت د حمیر بولي، نو د دوو غرو منځ یې په ډبرو او لوک بند کړی یعني د غرو تر سرو پوري او دې بند ته یې درې دروازې ورکړې یوه لوړه او یوه په منځ کي او یوه کښته، او د سد کښته یې لویه برکة یعني کاسه جوړه کړه وهغې برکه ته یې دوولس خایونه د اوبو ورتلو ورکړه پر عدد د دوولس ولو چي برکه ته راغلي وې، نو خلک اوبو ته د باغو لپاره یا د زراعت لپاره او

سوه نو د بركه دروازې به يې خلاصي كړې او چي ضرورت به يې دفع سو د بركه دروازې به يې بندي كړې، چي بارانو نه به په يمن كي شروع سوه او ټولي شيلې د يمن او په سد كي به ټولي او به جمع سوې، نو لوړه دروازه د سد به يې خلاصه كړه و بركه ته، نو اهل سبا به له دغو اوبو څخه كار اخستی يعني مځكي به يې په خړوبه كولې باغونه به يې په اوبول چي د اعلى حصه د سد اوبه خلاصي سوې، د دوهمي دروازې اوبه به يې خلاصي كړې اهل سبا به كار څني اخستی، او چي د هغې دا به هم خلاصي سوې د كښته دروازې د سد اوبه به يې خلاصي كړې د هغې په اوبه به يې ګزاره كول، مطلب دا دی چي د كښتي دروازې اوبه به لا نه وې خلاصي سوي د نوي كال د بارانو وخت به را ورسېدی، بيا به دوی سد كرار كرار بند او ه تر اعلى دروازې پورې، نو ټول كال به اهل سبا له اوبو څخه مستغني وه او جنګ او قتل و قتال پر اوبو دفع سو، تر ډېري مدې دا سد محكم ولاړ ؤ او بركه به ډكه وه او ويالې به جاري وې او باغونه او كښتونه د اهل سبا به سرسبز او شاداب وه، فلما طغوا و كفروا كما مر سلط على سد هم بسبب الجرز فنقب السد من اسفله.

**سوال:** يوه بړي موږك څرنګه دا دومره بند سوری كړی چي دومره اوبه تر را وتلې چي اهل سبا يې غرق كړه؟

**ځواب:** جزر خو اسم جنس دی، ډېر ورته موږكان به وه چي په مختلفو ځايو كي د سد غاري وكړي چي تر هر غار د سد اوبه را بهېدلې، ځكه روح البيان صيغه د جمع راوړې ده، جرزانًا، القصه سد له بېخه څخه مات سو اوبه پر سبا و الورا ايله سوې ډېر باغونه د دوی بلكې ټول له يې ويران كړه، او ډېر خلک په دې طوفان كي مړه سوه.

**درويش وايي:** چي مظهري رح سره د دې چي په احاديثو ناموړی محقق دی په دې ځای كي له وهب رح څخه داسي روايت كړی دی چي نه يې عقل او نه يې نقل موافقت ورسره كړی او سند هم نه لري، او په عين حال كي اثبات د علم الغيب دی وكاهنانو ته د كافرانو، نو فقير له هغه نقله ډډه وكړه وان شئت مصداق ما قلنا فطالع ص ٢٠ جزء ومن يقنت سورة السبا.

وَبَدَّلْنٰهُمْ بِجَنَّتَيْهِمْ جَنَّتَيْنِ ذَوَاتَيْ أُكُلٍ خَمْطٍ

او موږ بدل كړې دوی ته يعني اهل سبا ته په هغه دوو جماعتو د باغو د دوی چي

دمخه ذکر په عن یمین وعن شمال سره تېر سو دوه جماعته د باغو یعني عن یمین و عن شمال چي هغه درلونکی د رزق او مېوو وه (نو اکل په معنی ماکول، د خمط معنی توروه او ترخه، په قاموس کي وايي الاکل بالضم والضمتين الثمر والرزق وايضًا قال صاحب القاموس من الخمط الحامض او المر (يعني يا توروه يا ترخه)

**درويش وايي:** چي ددې آيت څخه دا معلومېږي چي بعض اهل سبا ددې بند د نړېدو وروسته ژوندي پاته سوي وه تاچي مرجع د ضمير د بدلنٰهم وګرځي.

وَّاَثْلٍ وَّشَیْءٍ مِّنْ سِدْرٍ قَلِیْلٍ﴿۱۶﴾

"واثل" يو قسم دی د غزو او شين غزيانو على مانقله ابو حنيفة اللغوي في كتاب النبات، قال الاظهري چي سدر دوه قسم دی یو سدر هغه دی چي نفع نه پر اخستل کېږي او مېوه يې ترخه ده خورک نه ده، او نه يې په بلګو وېره او سر پرېوله کېږي چي هغه ته ضال وايي، او بل سدر هغه دی چي په باغو کي د اوبو په ذريعه شنه کېږي چي د عناب د درختي مشابه او مېوې ته يې په عربي نبق وايي او په پښتو بېرې ورته وايي چي په پاکستان کي د هغو درختې ډېري دي او خوړل کېږي که څه هم چندان خوند نه لري، نو بلګو نه يې وچ کړي او میده يې کړي اوبو ته يې واچوي ځګ کوي سر او ږيره په پرېوله کېږي، او دا هغه قسم دی چي د فقه شريفي په کتابو کي وايي چي مړي ته غسل په سدر ورکړئ، په دې کي اختلاف دی چي په دې آيت کي کوم قسم د سدر مراد دی، فقيل چي مراد دوهم قسم دی لان ثمره مما يطيب اكله لكن قليل يې موصوف کړی فيما بدلوا به لانه لو كثر كان نعمت لا نقمة اى عذاب.

**نکته:** دا سدر قليل يې ولي وکړی تذكيرًا للنعم الزائلة لتكون حسرة عليهم، تاچي ددوی لپاره غم سي په دې معنی چي هغه ښه انګور او انار او مڼې وغير ذالک مو په سدر بدل سو چي نسبت و پخوانيو مېوو ته هيڅ ارښت نه لري او په عين حال کي هغه سدر هم لږ دی، او بعض وايي چي مراد قسم اول د سدر دی حتمًا لانه انسب بمقام التعذيب لهم ويرد عليه فح ، اى وجه في وصفه بالقليل لان الكثير منه انسب بمقام التعذيب لهم.

ذٰلِكَ جَزَيْنٰهُمْ بِمَا كَفَرُوْا ؕ وَهَلْ نُجٰزِيْٓ اِلَّا الْكَفُوْرَ ﴿۱۷﴾

دغه ''ذالک'' مرفوع المحل مبتداء ده او وروسته جمله يې خبر ده والمعنى دا عقاب او تبديل چي پر اهل سبا مسلط سو موږ دوى ته جزاء او عذاب ورکړى په سبب د کفران د نعمت د خداى ۳ او يا په سبب د کفر د دوى برسل الله کمامر.

**پوه سه:** چي ''وهل نجازى آه'' استفهام انکاري دى، ولهذا صح الاستثناء منه، ترجمه: موږ جزاء او عقاب نه ورکوو يعني داسي جزاء شديد لکه اهل سبا ته چي مو ورکړه کمامر تفصيله الا المبالغ في الکفر لکه اهل سبا (نو کفور صيغه د مبالغې ده) يا مبالغ په کفران کي د نعمت د خداى ﷻ.

**فائده:** نو پر دې حصر دا سوال نه وارديږي چي مؤمن عاصي ته خو هم کاهي جزاء د عصيان ددهٔ ورکول کېږي په دنيا کي، وجه عدم الورود چي د مؤمن جزاء خو شديد نه ده لکه د اهل سبا وغيرهم من المشرکين والکافرين المنکرين من التوحيد والرسل، والبعث بعد الموت بلکې د مؤمن جزاء د عصيان جزاء کاهي ناجوړي وي کاهي مسکنت وي حتى چي ځوزيږي په پښه جګ سي يا غځار سي وغير ذالک.

**پوه سه:** چي بعض قراء لفظ د نجازى په نون د متکلم وايي او په کسره د زاء چي مبني للفاعل سي او کفور پر دې تقدير منصوب دى على المفعولية، او بعض قراء دا لفظ په ياء تحتانية وفتح الزاء يعني په صيغه د غائب او بنا للمفعول نو پر دې تقدير لفظ د کفور مرفوع دى چي قائم مقام د فاعل چي نحات يې مفعول مالم يسم فاعله يې بولي.

وَجَعَلْنَا بَيْنَهُمْ وَبَيْنَ الْقُرَى الَّتِيْ بٰرَكْنَا فِيْهَا

او موږ وګرځول (''وجعلنا'' عطف دى على بدلنا) په منځ کي ددوى اى اهل سبا، او په منځ کي د هغو قريو چي موږ برکت پيدا کړى وُ يعني دکي دکي وبالې درلودې او مېوه داره درختي يې درلودې او فراخي د رزق يې درلوده وهي قرى الشام.

**پوښتنه:** جعل مذکور في هذه الآية کان سابقًا على التبديل المذکور فکيف ذکره بعد التبديل؟

**ځواب:** علماء النحو وايي چي کلمه د واو لپاره د مطلق جمع دى بين

المعطوف عليه بلا ملاحظة الترتيب كما في العطف بالفاء او التراخي كما في العطف بكلمة ثم، مثلاً چي يو څوک ووايي جائني زيد وعمرو او عمرو دمخه راغلی وي تر زيد دا ترکيب صحيح دی فکذا فيما نحن فيه فافهم.

قُرًى ظَاهِرَةً وَّقَدَّرْنَا فِيهَا السَّيْرَ

قريه وي سره ښکاره يعني سره نژدې وي موږ اندازه کړی وُ يعني اسان کړی موؤ په دې قريو کې تګ راتګ د خلګو يعني چې سهار به راهي سوه له يوې قريې څخه ماښام به هغه بلې قريې ته رسېدل، او ګاهي به يې غرمه په بلې قريې کي تېره کړه او دوی يعني مسافرو ته به حاجت د زاد او راحلې نه وُ يعني له سبا څخه تر شام پوري، بعض راويان وايي چي له سبا څخه تر شام پوري لوی او کوچنی قريې (١٧٠٠) متصلي وې.

سِيرُوا فِيهَا لَيَالِيَ وَأَيَّامًا آمِنِينَ ﴿١٨﴾

په حذف د قول ای قلنا بلسان المقال يعني علی لسان نبي من الانبياء يا په لسان د حال تا چي تګ کوي په دې قريو کي (ولي دوی ته سير ممکن سو پر مذکور دول ګويا دوی ته وويل سول چي سيروا) يعني که د شپې تګ کوئ او که د ورځي، آمنين حال دی له فاعل څخه د سيروا يعني په امن به ياست له دښمنه څخه او له راه زنه څخه او له لوږي او تندي څخه او نه به د درندګانو بېره درسره وي کما هو الظاهر لمن لاحظ حال القری المتقاربة جداً

**درويش وايي:** چي نعمت د خدای ﷻ که څه هم ډېر اعلی وي لکن چي دوام داره سي د خلګو په زړو د نعمت ملال پيدا سي او تر هغه ډېر بېکاره نعمت د خدای ؎ څخه وغواړي لکه بني اسرائيلو ته چي په تيه کي من او سلوی مزه داره خواړه بې طلب او تعب ورته را روان وه او حساب د آخرت يې هم نه وُ، لکن دوی د خدای ؎ څخه پياز، اوږه او دال وغوښتی چي هم تر من او سلوی بېکاره نعمت وُ او هم طلب او تعب غوښتی او هم حساب د آخرت ورسره وُ، لکه په سورة البقرة کي يې تفصيل او بيان تېر سو چي دې ته په عربي بطر وايي يعني ناشکري د نعمت او طغيان. داغه رنګه اهل سبا ته دا نعمت د قری قريبه او آساني د سفر تر شام پوري آمنين کما مر بيانه لکن دوی د دې ناشکري وکړه او طغيان يې وکړی کما حکی الله عن حالهم.

فَقَالُوا رَبَّنَا بٰعِدْ بَيْنَ اَسْفَارِنَا

"فقالوا" عطف على جعلنا "ربنا" بحذف حرف نداء يعني يا ربنا "بٰعِد"

ابن كثير او ابو عمرو او هشام دا لفظ "بَعِّدْ" په تشديد د عين وايي يعني له باب څخه د تفعيل سي، او باقي قراء يې په الف سره وايي، يعني له باب څخه د مفاعلې سي، والمآل واحد "بين اسفارنا" لېري والى راولې په منځ كي زمونږ له سبا څخه وشام ته يعني دا قرى متظاهره له منځ څخه لېري كړي حتى چي آسانو او اوښانو او زاد او نفقې وړلو ته ضرورت پيدا كړو او زمونږ او د فقراء فرق راسي او په تجاراتو كي به مو ربح او ګټه ډېره سي، ولي فقراء په سبب د عدم قدورت پردې د تجارت څخه لاس واخلي تجارت به يوازي مونږ ته پاته سي او پر اوښانو به سپاره يو فخر به پر خلګو كوو او زمونږ جاه و جلال به خلګو ته معلومه سي، حاصل د سوال ددوى دادى چي په منځ كي زمونږ اهل سبا او د شام تر منځ دښتونه او بيابانونه دي پيدا سي، نو دا خواست ددوى خداى ج ژر قبول كړى.

وَظَلَمُوٓا اَنْفُسَهُمْ فَجَعَلْنٰهُمْ اَحَادِيْثَ وَمَزَّقْنٰهُمْ كُلَّ مُمَزَّقٍ

او ظلم وكړى دوى پر خپلو ځانو بالبطر والطغيان عطف على قالوا، مونږ دوى وګرځول خبري او قصې د خلګو لپاره چي خلګ ددوى بيان كوي تعجبًا او ضرب المثل وګرځېده اهل سبا، خلګ وايي چي فلانى قوم سره تيت په تيت سو لكه اهل سبا.

او سره متفرق كړه مونږ دوى يعني اهل سبا په كامل تفريق سره (ممزق مصدر ميمي دى او نصب د لفظ د كل بناء على انه مفعول مطلق دى) الشعبي رح وايي چي قرى ددوى خداى ج غرقي كړې او له منځه ولاړې، وتفرقوا اهل سباق البلاد، دغسان قبيله و شام ته ولاړه او د ازد قوم وعمان ته مهاجر سوه او د خزاعة قبيله عربستان ته فراره سوه او آل خزيمه عراق ته بار سوه او اوس او خزرج يثرب ته كډه سوه (يثرب د مدينې منورې د جاهليت د وخت نوم دى)

اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَاٰيٰتٍ لِّكُلِّ صَبَّارٍ شَكُوْرٍ ﴿۱۹﴾

په تحقيق په دې مذكوره قصه كي د اهل سبا دلالات او عبرتونه دي د هر هغه چا لپاره چي صبر كوي پر طاعاتو د خداى ج (كه صبر متعدي په كلمه د على سي

ای الصبر علی الشئ ای علی طاعة الله) او صبر کوي له معاصيو څخه (که لفظ د متعدي په عن سره وکړځي ای الصبر عن المعاصي) او صبر په بلايا او په امراض او په مسکنت او غير ذالک کوي (که لفظ د صبر متعدي په کلمه د في سي ای الصبر في البلايا و الامراض وغير ذالک ''شکورًا'' چي د نعمتو د خدای ج شکر وايي، قال مقاتل يعني مؤمني هذه الامة چي صبور دی پر بلا او شکور للنعماء.

**درويش وايي:** چي امت ددې امت مرحومه بايد صبور او شکور وي، دائمًا لان الدنيا دار البلاء حتی چي نعمت هم بلاء ده چي د بنده امتحان په کېږي چي شکر وايي او که نه فموته بلاء وحياته بلاء، کريمه: خلق الموت والحيٰوة ليبلوکم ايکم احسن عملاً.

**فائده عجيبه:** هر مصيبت او غم چي مؤمن ته پيښ سي په هغه سره ګنهونه تويېږي نو له دې سببه د مصيبت شکر ويل هم لازم دی، فيلزم اجتماع الضدين ای الشکر والصبر في شيئ واحد باعتبارين دغه رنګه توفيق د صبر په مصيبت کي د خدای پاک نعمت دی شکر يې لازم دی، و ورد في الحديث الصحيح الذي رواه البيهقي في شعب الايمان قال رسول الله ﷺ الايمان نصفان فنصف في الصبر ونصف في الشکر، نو ددې حديث په رڼا کي مؤمن کامل هغه څوک دی چي دواړه نصف د ايمان محفوظ ساتي ابدًا ودائمًا، اللهم وفقني لذالک النعمة العظمیٰ والنقبة العلياء بجاه نبيک المجتبیٰ ﷺ دائمًا ابدًا ... بيت:

ای روزګار عافيت شـــکرت نه ګفتم لاجرم
دستی که در اغوش بود اکنون بدندان ميګرم
صبر آرد آرزو رانی شتاب ........ صبر کن والله اعلم بالصواب

## وَلَقَدْ صَدَّقَ عَلَيْهِمْ إِبْلِيسُ ظَنَّهُۥ

لام موطئه د قسم دی ای وجده صادقًا ومتحققًا فيهم ''ابليس ظنه'' حيث طرد ربه بعدم السجود لآدم واهله او مهلت يې ورکړی الی يوم يبعثون، نو ده داسي وويل فبعزتک لاغوينهم اجمعين، ولا تجد اکثرهم شاکرين.

**درويش وايي:** چي له آيتو څخه داسي فهمېږي چي ضمير د عليهم راجع دی ټولو انسانانو ته کذا قال مجاهد رح، وقيل علی اهل سبا ای علی الکفار منهم.

**درويش وايي:** الاول يطابق سياق الآية فيما بعد، والثاني يوافق السباق القريب والاول اوجه واليق.

**پوښتنه:** منشاء د ظن ده ابليس په اولاد كي د آدم څه وه چي ده وويل لاغوينهم اجمعين؟

**ځواب:** ابليس چي آدم عليه السلام سره د شرافت چي ټولو ملكو ده ته سجده وكړه د ابليس وسوسه د شجرة الخلد چي ابليس په دغه نامه ورته معرفي كړه وه يې منل او د غنم يا د انځر دانې يې وخوړلې. نو ابليس په هغه مخنۍ خبره كي چي لاغوينهم آه، قياس د فرع يې پر اصل وكړى او قياس د ولد يې پر والد وكړى، او بعض مفسرين وايي چي سبب د ظن دده دا ؤ چي په بني آدم كي ابليس قوت غضبيه او قوت شهويه احساس كړي چي دا دوه قوته منشاء د ټولو سيئاتو دي، نو ده لاغوينهم آه وويل، او بعض وايي چي ابليس له خبرو څخه د ملكو چي خداى ج ورته وويل اني جاعل في الارض خليفة دوى ورته وويل اتجعل فيها من يفسد فيها الخ، او بعض مفسرين وايي چي ابليس بني آدم پر خپل ځان قياس كړى چي دى هغه باغي شخص ؤ چي د خداى امر يې نه وماننه، نو بني آدم يې هم پر خپل خرينه اندازه كي خيرن وليدى ..... بيت:

اذا ساء فعل المرء سائت ظنونه ..... وصدق ما يعتاده من توهم

**پوه سه:** چي قراء د بصري لفظ د صدق په تخفيف د دال وايي، نو پر دې قرائت نصب د ظنه بنا دى پر اسقاط د حرف جر، والاصل صدق في ظنه اى وجد ظنه مصيبًا في الواقع، نو صدق پر دې تقدير په معنى د اصاب دى مجازًا.

فَاتَّبَعُوهُ إِلَّا فَرِيقًا مِّنَ الْمُؤْمِنِينَ ﴿٢٠﴾

نو بني آدم د ابليس متابعت وكړى مګر نه يوې ډلې د مؤمنانو.

**درويش وايي:** چي "اتبعوه" مرفوع ضمير يا و اهل سبا ته راجع دى يا ناس كلهم ته. سدي رحمه الله له ابن عباس رضي الله عنه څخه روايت كړى دى چي مؤمنان ټوله متابعت د ابليس يې نه دى كړى په اصل دين كي كما قال الله ج ان عبادي ليس لك عليهم سلطان يعني المؤمنين، نو پر دې روايت كلمه د من لپاره د بيان ده لا للتبعيض، او بعض مفسرين وايي چي مراد د متابعت مطلق متابعت دى نو كلمه د من لپاره د تبعيض ده، يعني المؤمنين في اصول الدين و فروعه بخلاف العصاة فانهم ابتعوه في ارتكاب المعاصي فافهم.

وَمَا كَانَ لَهُ عَلَيْهِم مِّن سُلْطَٰنٍ

او نه وُ ابلیس لره پر دوی یعني بني آدم یعني قدرت. کلمه د من زائده ده لاستغراق النفي، نو من سلطان اسم د کان دی. والظرف المستقر یعني له خبره ای کائنًا له. وعلیه متعلق بالظرف، والمعنی لم یکن له قدرة ان یوسوسهم ویعدهم ویمنیهم الا بتسلیطنا ایاه علیهم، شیخ سعدي قدس سره وایي:

نه ابلیس درحق ما صغه زد .... کزاینان نیاید بجز کاربد
فغان از بدیها که درنفس ما است .... که ترسم شور ظن ابلیس است
چو ملعون پسند آمدش قهرما .... عذابش بر انداخت از بهر ما
کجا سر برآریم ازین عار و ننگ .... که با او بصلحم وباحق بجنگ
نظر دوست نادر کند سوی تو .... چو در روی دشمن بود روی تو
ندانی که کمتر نهد دوست پای .... چو بینند که دشمن بود در سرای

إِلَّا لِنَعْلَمَ مَن يُؤْمِنُ بِالْآخِرَةِ مِمَّنْ هُوَ مِنْهَا فِي شَكٍّ

یعني ما تسلط د وسوسو وه ابلیس ته پر بني آدم نه دی ورکړی، مګر ددې لپاره مي ورکړی دی چي موږ سره جلا کړو هغه کسان چي ایمان یې پر آخرت وي د هغو کسانو چي هغه په شک کي وي د آخرت د ورځي یعني بعث بعد الموت څخه په شک کي وي باضلال ابلیس، نو چي دا دوه قسمه سره جلا سي نو به هر قسم ته خپله جزاء مناسب ورکړي بالجنة والنار.

**سوال:** په قرآن کي عبارت لنعلم راغلی وُ تا یې ترجمه په جلا کېدو وکړه باعث ددې څه وُ؟

**ځواب:** د علم صله من نه راځي بلکې د تمییز صله من راځي چي معنا یې جلا والی ده، نو که من نه وای په قرآن کي، نو به ما د علم اصلي معنی بیان کړې وای لکن چونکه په ممن راغلی دی، نو یې ځکه ترجمه په جلاوالي فقیر وکړه چي عربي تعبیر یې دادی نُمَیِّزَ کَیْ مِنْ.

**پوښتنه:** دا تمیز خو په ازل کي خدای پاک ته حاصل وُ، نو امتحان ته یې څه ضرورت وُ؟

**ځواب**: نعم لکن ددې امتحان څخه غرض امتیاز دی د دغو دوو ډلو عند الناس لئلا یکون للفریق الثاني حق الاعتراض عند الله في یوم القیامة، نو دا آیت من قبیل قوله تعالی دی: لئلا یکون للناس حجة بعد الرسل یعني عذر الجهل.

**درویش وایي**: چي مظهري رح سوال د حدوث د علم د خدای ج کړی دی او بیا یې د هغه جواب د حکمتو او د منطقو پر ډول ورکړی دی چي عوام خو څه کوې عصري ملایان هم نه په پوهېږي الا المرتاض بالعلوم الحکمیة و العقلیة که د چا زړه خبره زړه ته نه لوېږي د مظهري د تفسیر (۲۴) ص جزء (۲۲) سورة السبا دي مطالعه کړي، ولله در صاحب روح المعاني چي ډېر په مختصره توګه د فقیر و جواب ته ورته جواب راوړی دی و الله الحمد.

وَرَبُّكَ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ حَفِيظٌ ﴿٢١﴾

او ستا خدای ﷻ یا محمد (ﷺ) پر هر شي که مؤمن وي او که کافر وي او که علوي وي او که سفلي وي، حفیظ یعني نګهبان رقیب او محافظ غیر غافل عن شيئ فیجازی کلا موافق عمله.

**فائده**: حفیظ یا مبالغه ده د حافظ یا په معنی د محافظ دی لکه جلیس او مجالس وخلیط و مخالط او رضیع او مراضع.

قُلِ ادْعُوا الَّذِينَ زَعَمْتُم مِّن دُونِ اللَّهِ

ته ورته ووایه یعني کفارو د مکې چي تاسي راوبولئ یعني دعوت ورکړئ هغه شیانو ته چي تاسي دا زعم لري چي آلهة دي یعني بتان ستاسي.

**پوښتنه**: زعمتم خو متعدي و دوه مفعوله ته دی هغه مفعولان په دې آیت کي څه شی دی؟

**ځواب**: مفعولان یې دواړه په نیز د جمهور محذوف دی چي وهم آلهة دی، والتقدیر زعمتموهم الهة، نو ضمیر مفعول اول دی او آلهة مفعول ثاني دی، مفعو اول یې حذف کړی تخفیفًا لان الموصول والصلة یعني الذین زعمتم لکه یوم اسم دی فهناک طول یقتضی التخفیف او مفعول ثاني چي حذف لان صفته اعنی قوله تعالی: "مِّن دُونِ اللَّهِ" سدت مسده یعني من دون الله صفت د الهة دی چي مفعول

ثاني دی نو دا صفت په ځای کي د مفعول ثاني ودرېدی، حاصل د آيت دادی چي تاسي خپل خدايان چي بتان دي په يو مهم کي ستاسي من جلب نفع او دفع ضرر چي دوی جلب د نفع تاسي ته يا د دفع د ضرر ستاسي څخه کولای سي.

**سوال**: د امر الهي يعني قل ادعوا الذين آه. څه فائده لري خدای[۳] او رسول خوښه خبر دي چي دا بتان جمادات دي لاتنفع ولاتضر؟

**ځواب**، دا امر د توبيخ او تعجيز لپاره دی، په يوه روايت کي راغلي دي چي دا آيت هغه وخت نازل سو چي پر کفارو د مکې سخت قحط (وچ کالي) او لوږه په بنيرا د عليه الصلوة والسلام خدای ﷻ مسلط کړي وه.

**فائده**: د دې آيت مضمون و قياس استثنائي ته راجع دی چي استثناء د نقيض د تالي يې نتيجه نقيض د مقدم ورکوي، د منطقو په کتابو کي وايي چي قياس استثنائي يوه مقدمه شرطيه غواړي او يوه مقدمه استثنائيه غواړي، نو په دې آيت کي قل ادعوا الذين آه اشاره و مقدمه شرطيه ته ده، تقديره ان صح دعواکم بانهم الهة يستجيبون لکم اذ دعوتموهم، وقوله تعالى.

لَا يَمْلِكُونَ مِثْقَالَ ذَرَّةٍ فِي السَّمٰوٰتِ وَلَا فِي الْأَرْضِ

"لايملکون" جمله مستانفه پر استثناء د نقيض د تالي دلالت کوي يعني دغه بتان د هيڅ شي طاقت نه لري نه د جلب د نفع او نه دفع د ضرر، نو نتيجه يې نقيض د مقدم ده يعني فليسوا آلهة "مثقال ذرة" يعني په وزن د يوې ذرې (ذره ډېره کوچني مېږي ته وايي يعني مِنْ خَيْرٍ أَوْ شَرٍّ)

**بوه سه**: چي ذکر د اسمانو او ځمکي يا صرف د عموم عرفي لپاره دی او يا د دې لپاره دی چي د مشرکانو بعض خدايان سماوي وه لکه بعض مشرکانو به د ملکو عبادت کاوه او بعضو به د ستړو عبادت کاوه او بعض آلهة ارضيه وه لکه بتان.

**درېش وايي**: چي مثال د دې قياس استثنائي دادی د معقولو په کتابو کي وايي لو کان زيد حمارًا لکان ناهقًا لکنه ليس بناهق ينتج فليس بحمار.

وَمَا لَهُمْ فِيهِمَا مِنْ شِرْكٍ وَمَا لَهُ مِنْهُم مِّن ظَهِيرٍ ﴿۲۲﴾

او نسته بتانو ته (يعني د مشركانو) په خلق د اسمانو او مځكي شراكت د خداى ج سره. او نسته خداى ج لره "منهم" اى من شركائكم، يو كومكي چي په خلق او په تدبير د اسمانو او مځكي د خداى ج سره كومك وكړي.

**پوهسه:** چي كلمه د من زائده ده لاستغراق النفي او دا جمله عطف ده پر لايملكون.

وَلَا تَنفَعُ الشَّفَاعَةُ عِندَهُ إِلَّا لِمَنْ أَذِنَ لَهُ

او فائده نه كوي شفاعت په نېز د خداى ج هيڅ چا ته مګر نه هغه چاته چي خداى ج اجازه وركړي يعني كه شافع وي لكه انبياء عليهم السلام وغيرهم، په شفاعت كولو كي د خداى ج اجازه. او كه مشفوع وي لكه يو عاصي هم د خداى ج اجازه شرط ده چي د دغه عاصي شفاعت دي وكړل سي.

**پوهسه:** چي دا آيت رد دى د هغه قول د مشركانو پر سبيل د تنزل يعني چي موږ دا ومنو چي په خلق كي د اسمانو او مځكي ملائكه يا زموږ اصنام هيڅ برخه نه لري د خداى سره لكنهم يشفعون لنا عنده تعالى فقال الله تعالى في جوابهم لاتنفع شفاعة احد لاحد الا لمن اذن له. او ددوى بتان خو اهل د شفاعت نه دي تاچي خداى ج دي اجازه وركړي لكونها جمادات، او د كافر په باره كي هيڅ چاته اجازه د شفاعت نه وركوي په سبب د طغيان او كفر ددوى، كه څه هم زوى د كافر نبي وي كابراهيم ع لآذر، او يا كه څه هم پلار د كافر نبي وي لكه نوح ع د كنعان لپاره. والحاصل چي انه لايؤذون للانبياء عليهم السلام والملائكة الا في شفاعة المؤمنين من كانوا.

حَتَّىٰ إِذَا فُزِّعَ عَن قُلُوبِهِمْ

تر هغه وخته پوري چي بېره زائل كړل سي له زړونو څخه ددوى.

**پوهسه:** چي تفزيع چي مصدر دى د فزع له اضداد څخه دى يعني پر دوه ضده يې اطلاق كېږي يعني بېرول د چا او بېره زائلول د چا وبالفارسية بترسانيدن واندوه وابردن دا دوهم چي دلته مراد دى متعدي په عن سره كېږي. فالتفزيع في الآية ازالة الفزع كالتمريض بمعنى ازالة المرض. والفزع انقباض ونفار يعترى الانسان من الشيئ المخيف.

**فائده:** ابن عامر او یعقوب رحمہ دا لفظ فَزَّعَ وايي په لفظ د ماضي معلوم، نو ضمير مستتر يې راجع و خداى ته دى يعني ېېره زائل كړي خداى ج، او باقي قراء رحمہ فُزِّعَ پر صيغه د مبني للمفعول وايي كما في المصحف العثماني، نو جار او مجرور يې قائم مقام د فاعل دي، او ضمير د قلوبهم راجع دى وشافعينو او مشفوعينو دواړو ته.

**سوال:** شافعين او مشفوعين كله په ماقبل كي ذكر سول؟

**ځواب:** د هغه آيت څخه وفهمېږ لاتنفع الشفاعة عنده الا لمن اذن له، ولي چي له دې آيت څخه دا معلومېږي چي په ورځ قيامت شافعين او مشفوعين سته.

**فائده:** په لفظ كي حتى چي لپاره د انتهاء الغاية دى د مفسرينو عظيم اختلاف دى چي غاية د څه شي ده حتى ورقي په ډكي كړي دي، او د عربي ډېر زيبا او بلاغت آميزه الفاظ يې استعمال كړي دي لكن تر ټولو دا توجيه زيبا ده چي په روح المعاني په ضمن كي د نورو معنا وو راوړي او هم روح البيان او هم مظهري چي حاصل يې دادى چي حتى غاية ده لپاره جمله مفهومة مما سبق اعنى قوله تعالى لاتنفع الشفاعة عنده الا لمن اذن له، ولي چي له هغه آيت څخه دا وفهمېده چي شفاعت كونكي من الانبياء عليهم السلام وغيرهم من الصلحاء والملائكة الكرام او هغه كسان چي ددوى د شفاعت طمع لري چي په عربي يې مشفوع لهم بولي منتظر وه اذن ته د مولى اعلا ربهم الاعلى جل سلطانه وكثرت رحمته وي او دواړي ډلي خائفين وي چي موږ ته به اذن شفاعت راكړي او يا زموږ د شفاعت كولو به شافعانو ته اجازه وركړي او كه څرنګه حتى دا ېېره زائل سي لكه د تفزيع چي معنى وه كمامر.

قَالُوا مَاذَا قَالَ رَبُّكُمْ

دوى يو د بله سره وايي چي بشارت باسعادت له جناب څخه د رب العزة په شفاعت كولو كي اعلان سي، څه وويل رب ستاسي يعني په باره كي د شفاعت.

قَالُوا الْحَقَّ وَهُوَ الْعَلِيُّ الْكَبِيرُ ﴿٢٣﴾

يعني يو ويل ته سره وو وايي "الحق" منصوب دى په فعل مقدر سره يعني قال ربنا الحق وهو الاذن بالشفاعة للسادات الشافعين عليهم السلام لمن هو اهلها من عصات المؤمنين، يعني هغه ذات متصف دى په علو او كبرياء سره چي نه ملك مقرب او نه نبي مرسل دده په جناب والا كي بې اجازې خبره كولاى سي.

**فائده:** الشيخ السهروردي رحمه الله وايي چې دغه آيت قالوا ما ذا قال ربكم قالوا الحق وهو العلي الكبير، كه پرچا د خلكو ډېر پوروونه باندې وي او دغه آيت ورد وګرځوي خداى ﷻ به يې پوروونه اداء كړي او رزق به يې فراخه كړي، او كه يو سړى د خپلې رتبې او چوكۍ څخه معزول سوى وي اووه ورځې هره ورځ زر واره ووايي او روژه يې هم نيولې وي په دې اووه ورځې، خداى ﷻ به يې خپلې رتبې ته ورسوي كه بادشاه وي انتهى.

**درويش وايي:** چې كارونه د رب العزت ﷻ په همت پوري د بنده مربوط او عالي الهمت مؤمن د خداى ﷻ خوښ دى، امير المؤمنين علي رضي الله عنه وايي: علو الهمة من الايمان، قال الصائب:

چـون بسير لامكان خود ميروم از خويشتن
همچو همت تو سنى درزير زين ما داريم ما

مرزا غالب وايي:

همت بلند دار كه نزد خدا و خلق.... باشد بقدر همت تو اعتبار تو

قُلْ مَنْ يَّرْزُقُكُمْ مِّنَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ؕ

ته ورته ووايه مشركانو ته چې څوک رزق دركوي تاسي ته د اسمانو له جانبه څخه چې مراد ځني بارانونه دي (چې د هغو بارانو په وياړ ستاسي رودونه، كاسي او زخيرې د اوبو ډكي سي او وياله مو بهيږي چې دا اوبه ستاسي د ارتزاقي موادو سبب ګرځي) او له مځكي څخه څوک رزق دركوي يعني چې له مځكي څخه دانې د رزق ستاسي راشنې سي.

**پوه سه:** چې استفهام د كلمه د من تقريري دى يعني باعث كول د مخاطب پر اقرار په دې سره چې دوى ووايي چې دا ټوله كارونه خداى ﷻ كوي، حتى كه داغسي ووايي نو په توره د ملامتيا به يې سرونه غوڅ سي چې تاسي سره ددې اقراره بتان ولي د خداى ﷻ سره شريكان بولئ، لعلهم يرجعون عن الشرک.

قُلِ اللّٰهُ ۙ وَاِنَّاۤ اَوْ اِيَّاكُمْ لَعَلٰى هُدًى اَوْ فِيْ ضَلٰلٍ مُّبِيْنٍ ۝

**پوه سه:** چې لفظ الله مرفوع دى، فاعل د فعل محذوف دى اى يربكم الله اذ

لاجواب غیره یعني سکوت او توقف په دې اقرار کي وکړئ له دې سببه چي پر موږ عجولانه توره د الزام پر سرو خورو، لکن سره د توقف زړونه داغه اقرار کوي یرزقنا الله ''وانا وایاکم'' او موږ مؤمنان موحدان او یا تاسي مشرکان بالله یا پر هدایت یو او یا په ګمراهی ظاهره کي یو.

**درویش وایي:** چي دا آیت مبني پر شک نه دی بلکې دا د حسن مناظره پر قانون مبني دی چي صراحةً یې نسبت د ضلال ودوی ته نه وکړی تا چي وینه ددوی په جوش رانه سي چي ماته ته ګمراه وایې، البته پر قانون د لف ونشر مرتب یې اشاره اثبات د هدایت ځان ته وکړه او نسبت د ضلال یې ودوی ته وکړی، وحاصل المناظرة چي توحید نفي د اشراک دی فهو نقیضه، والضلال نفي الهدایة فهو نقیضه ومن البدهیات عند جمیع العقلاء ان ارتفاع النقیضین وکذا اجتماعها محال، او په دمخه آیت کي دا ثابته سوه چي خدای ج دی چي رزق د اسمانو او د مځکي څخه ورکوي لاغیره وهو عقیدة الموحدین فهم علی هدی لا الضلال لاستحالة اجتماع النقیضین والمشرک في ضلال مبین لا الهدایة لاستحالة الاجتماع کمامر.

**پوښتنه:** د هدایت په جانب حرف علی راوړی او د ضلال په طرف کي حرف جر في رواړه، سبب یې څه دی؟

**ځواب:** اشاره ودې ته ده صاحب الهدٰی لکه پر آس سپور شخص دی چي هر خواته یې راهي کوي ورسره ځي، او صاحب الضلال ګویا په تاریکیو کي د کفر ډوب دی لایدري این یتوجه، فافهم.

**فائده:** وانا وایاکم آه منصوب محلاً دي عطف دي پر لفظ الله، والتقدیر وقل انا او ایاکم آه.

**درویش وایي:** چي ددې آیت داسي مثال دی چي د دوو کسانو پر یوه مځکه مثلاً سره خصومت وي یو وایي زما ده بل وایي زما ده، نو چي پر حق وي هغه و خپل مخاصم ته داسي ووایي چي خدای ج خبر دی په ما او تا کي څو یو صادق دی او بل دروغ وایي، نو که مخاطب منصف وي چي وروره زه کاذب یم ته صادق مځکه ستا ده، لکن داسي انصاف داره سړي په دا وسنی زمانه کي عنقا د مغرب دی.

قُلْ لَّا تُسْـَٔلُوْنَ عَمَّآ اَجْرَمْنَا وَلَا نُسْـَٔلُ عَمَّا تَعْمَلُوْنَ ﴿۲۵﴾

ته ودوی ته ووايي چي له تاسي څخه سوال نه کيږي د هغو ګناه چي موږ کړي وي او نه له موږ څخه سوال کيږي ستاسي د عمل (نو پر دې ترجمه کلمه د ما په عما تعملون کي مصدريه ده، او که چېري ما موصوله وي نو عائد يې محذوف دی والتقدير عما تعملونه) ددې آيت مقصود اظهار ددې دی چي موږ چي تاسي په توحيد او ترک د اشراک امر کوو صرف او صرف خير خواهي ستاسي ده ورنه فلا ضرة لاحد من غيره. فائده ددې اظهار حث (باعثه کول دي ددوی) او ترغيب ددوی پر امر ای التوحيد وترک الشرک.

**فائده:** ځان ته يې نسبت د اجرام وکړی او مخاطب ته يې نسبت د عمل وکړی رعايت د حسن ادب او اظهار د خير خواهي. ددوی سره نه تعصب او تعنت (يعني د تاسي سره ضديت ساتل)

قُلْ يَجْمَعُ بَيْنَنَا رَبُّنَا ثُمَّ يَفْتَحُ بَيْنَنَا بِالْحَقِّ ؕ وَهُوَ الْفَتَّاحُ الْعَلِيْمُ ﴿۲۶﴾

ته و دوی ته ووايي چي جمع به کړي بيننا يعني وبينکم، زموږ رب د قيامت په ورځ بيا به خدای فيصله وکړي زموږ او ستاسي تر منځ په حق سره (يعني هر څوک چي مستحق د يو ځای ؤ و هغه ته به يې داخل کړي، نو که څوک پر حق ؤ داخل به يې کړي و جنت ته او چي پر باطل ؤ يدخله النار) او خدای ؓ فيصله کونکی دی په قضايا، مغلقه ؤ کي، او ښه خبر دی په حال زما او ستاسي.

**فائده:** خاصيت د اسم الفتاح تحصيل د علم او معرفت دی که څوک دا اسم مبارک همېشه ورد وګرځوي يعرف الله حق معرفته على الوجه الذي يليق به. او په شمس المعارف کي وايي که چا ته يو مبهم کار پېښ سي دا اسم مبارک دي يو څو ورځي ورد وګرځوي ان شاء الله تعالى هغه به دفع سي.

قُلْ اَرُوْنِيَ الَّذِيْنَ اَلْحَقْتُمْ بِهٖ شُرَكَآءَ كَلَّا ؕ

**پوه سه:** چي رؤية دلته په معنى د علم دی چي دوه مفعوله غواړي لکه رئيت ای علمت زيدًا عالمًا، نو چي باب ته د افعال نقل سي لکه په دې آيت کي بيا درې مفعوله وغواړي، نو په دې آيت کي ضمير د متکلم په اروني کي مفعول اول دی، او الذين

يعني موصول سره د صلې مفعول ثاني د اروني دی او شركاء يې مفعول ثالث دی. والمعنى تاسي ايها المشركون ما خبر كړئ په هغه شيانو (يعني ستاسي بتان) چي تاسي دوی ګرځولي دي د خدای ﷻ سره شريكان په استحقاق كي د عبادت. يعني ما په دې پوه كړئ چي په څه صفت سره دا بتان تاسي د خدای ج شريكان بولئ. يعني دا بتانو خلق د يو شي كړی دی يا يې كولای سي او يا رزق وچا ته وركولای سي. يا چاته ضرر رسولای سي كه يې عبادت ونه كړئ يا چاته نفع رسولای سي چي عبادت يې وكړي، او د شريک د خدای بايد دا كارونه په طاقت كي وي.

**فائده:** په دې آيت كي پوښتنه ده ددوی له شبهت څخه يعني تاسي ته څه شبه پيښه ده ددوی په شراكت كي د خدای ج سره په دې كي تبكيت دی ددوی.

**پوه سه:** چي "كلا" حرف ردع دی يعني داغسي نه ده چي دا بتان دي شريكان د خدای ج مع ظهور عدم المشاركة مع الله في شيئ من الصفات المذكورة.

بَلْ هُوَ اللّٰهُ الْعَزِيزُ الْحَكِيمُ ﴿٢٧﴾

بلكې مستحق د عبادت نه دی مګر الله ج چي عزيز دی يعني دارا د عزت او غلبه ظاهره دی او مالک او وركونكی د حكمت بالغه دی، لاشريک في شيئ من الصفات الجميلة والجلالية.

**پوښتنه:** په ترجمه كي د آيت حصر دی چي مګر يې معنا وه د څه شي څخه مستفاد سو؟

**ځواب:** له دې څخه چي ضمير د هو راجع دی و مستحق للعبادة ته نو ګويا د آيت تعبير داسي دی المستحق للعبادة الله، نو مبتداء او خبر چي دواړه معرفه وي دال پر حصر دي كما ثبت في كتب العربية.

**فائده:** العزيز و الحكيم صفتان دي د لفظ الله، او خبران آخران دي د لفظ الله، او كه داسي توجيه وكړل سي چي هو ضمير شان وي او لفظ الله مبتداء وي او العزيز والحكيم صفتان د لفظ الله وي او خبر د مبتداء محذوف وي ای متوحد لاستحقاق العبادة او جمله ټوله خبر د ضمير شان وي، نو دلالت پر حصر يې ظاهر دی، والحاصل چي بتان چي په ادنٰی درجه كي د ټولو موجوداتو او ممكناتو قرار لري څرنګه مشركان دوی شريک د خدای بولي په استحقاق كي د عبادت.

**فائده:** العزيز الحكيم كه څوک څلوېښت ورځي او هره ورځ څلوېښت واره وظيفه وګرځوي خداى ﷻ به دده سره کومک وکړي او خداى رح به عزت ورکړي چي محتاج به نه وي د هيڅ بنده او مخلوق، او په اربعين ادريسيه (چي د وظائفو يو کتاب دى) داسي راغلي دي يا عزيز المنيع الغالب على امره فلا شيئ يعادله شيخ سهروردي رح وايي چي که چا دا ورد اووه ورځي پرله پسي ووايه هره ورځ زر واره خداى رح به يې دښمن هلاک کړي (لکن درويش وايي چي په مقابل کي د مؤمن دښمن دى مؤمن نه وايي)

## وَمَآ أَرۡسَلۡنَٰكَ إِلَّا كَآفَّةً لِّلنَّاسِ

**پوه سه:** چي كافة صفت د مصدر محذوف دى اى ارسالة كافة يعني عامة شاملة (نو تا د كافة لپاره د تانيث ده ولي چي موصوف يې ارسالة مؤنث دى) نو پر دې تقدير للناس متعلق په كافة سره دى.

**پوه سه:** چي د كف اصل معنى منع ده نو چي د عليه الصلوة والسلام رسالت عام سي، نو خلک يې منع کړه له دې څخه چي يو دي څني ووځي، او روح المعاني او مظهري دا احتمال هم راوړى دى چي كافة دي حال وي د مخاطب چي عليه الصلوة والسلام ځي مراد دى، نو پر دې تقدير كلمه د تاء په كافة کي لپاره د مبالغې ده لعدم التانيث في ضمير المخاطب كما قالوا في تاء علامة، نو معنى د آيت داده وما ارسلناک الا جامعًا لهم اى للناس في ابلاغ دين الاسلام يعني لكل الناس من العرب والعجم والاسود والاحمر.

**درويش وايي:** چي د دې تقديرو په معنى کي كه څه هم فرق سته لكن حاصل يې يو دى چي عموم د رسالت د عليه الصلوة والسلام دى و عموم اهل الاديان كلهم ته لنسخ جميع الاديان برسالته عليه الصلوة والسلام، يعني داسي نه ده لکه يهودان او نصارى چي وايي چي محمد ﷺ نبي خاص للعرب، له جابر رض څخه روايت دى چي رسول الله ﷺ وويل چي ماته پنځه شيان خداى ﷻ راکړي دي چي هيڅ نبي ته يې تر ما د مخه نه دي ورکړي (١) نصرت بالرعب مسيرة شهر (ماته كومک راکړل سوى دى د خداى ﷻ له خوا په بېره سره يعني چي دښمن كافر زما څخه بېرېږي د يوې مياشتي پر مسافت.

**سوال:** كفار مكه چي د مدينې څخه يې يوه مياشت مسافت نه دى په بدر او په

احد او په خندق يا حنين وغيرها چي کفار پر نهايت لږ مسافت تر مياشتي وه، نو که دوی ببرېدای، نو ولي جنګ ته راتله؟

**ځواب:** و جنګ ته راتلل ددې دليل نه دی چي ددوی په زړو کي رعب نه ؤ.

**درويش وايي:** چي ددې ژوندی مثال د افغانستان جنګ دی چي امريکايان او انګرېزان او نور دولتونه ورسره ملګري دي، او بې وزلي او بېچاره او بې عصري وسلو طالبان ورسره په جنګ بخت دي چي تخمينًا يې نهه کاله پوره سوه، نو دا طالبان ددې سرو کفارو څخه نه بېرېږي مګر بيا يې هم و جنګ ته دوام ورکړی دی، او بل ځواب دادی چي امريکايان اوس هم په افغانستان کي مرعوب دي، ولي دوی چي له يوه ځايه بل ځای ته ځي په کاروان ځي، يو يا دوه ټانګه يا نور يو او دوه موټېره ددوی سفر نه سي کولای کما دل عليه التجربة الصادقة فافهم.

(۲) جعلت لي الارض مسجدًا (يعني لي ولامتي الى يوم القيامة، يعني مځکه ځای د لمانځه) فاينما رجل ادركته الصلوة (يعني وخت د لمانځه پر راغلی هوري دي ځپل لمونځ وکړي، يعني داسي نه ده لکه يهود او نصاری ؤ چي بې له مخصوص عبادتګاه ددوی لمونځ نه ؤ روا) وطهورًا (يعني پاکه خاوره چي قائم مقام د اوبو ده) في التيمم بها عند عدم الماء (۳) واحلت لي الغنائم ولم يحل لاحد من قبلي يعني د نورو امتو مسلمانانو چي به غنيمت لاست ته راوړی له اسمان څخه به اور نازل سو ټوله به يې وسو دوی ته يې نفع اخستل نه وه روا (۴) واعطيت الشفاعة (ماته راکړل سوی دی شفاعت يعني الشفاعة العظمیٰ (۵) وكان يبعث النبي الى قومه خاصة وبعثت الى الناس عامة. (متفق عليه)

**درويش وايي:** چي په دې حديث کي مسجدًا وطهورًا پر يوه حساب دي، نو خواص شپږ نه کرځي فافهم.

**درويش وايي:** چي په روايت کي د ابو هريرهؓ داسي راغلي دي فضلت على الانبياء بست چي په هغه حديث کي يې يو (۱) جوامع الكلم راوړی دی (د جوامع الكلم معنی داده چي لفظ قليل دي معنی يې جزيل ده (۲) نصرت بالرعب (د مياشتي د مسافت قيد نسته ورسره) (۳) واحلت لي الغنائم كمامر (۴) وجعلت لي الارض مسجدًا وطهورًا كمامر بدون زيادة فايما رجل آه (۵) وارسلت الى الخلق

كافة (۶) وختم بي النبيون، او يا د كافة معنى پر تقدير د حاليت له ضمير څخه چي ته
به منع كوې خلګ له كفر څخه په دنيا كي او د وقوع في النار كي په ورځ د قيامت.

بَشِيرًا وَّنَذِيرًا وَّلٰكِنَّ اَكۡثَرَ النَّاسِ لَا يَعۡلَمُوۡنَ ﴿۲۸﴾

زيرى كوونكى مسلمانانو ته په جنت سره، او بېرونكى د كفارو په اورسره، لكن
ډېر خلګ چي كافران دي په دې نه پوهېږي چي ستا بشارت او انذار پر ځاى او حق
دى بلكې دوى ستا خبري پر تعصب او عناد حمل كوي.

**پوه سه:** چي دا دوه لفظه حال دي له كاف څخه د خطاب، مترادفان دي د كافة
على تقدير كونه حالاً كمامر.

**درويش وايي:** چي كه څه هم بشارت تر انذار وروسته دي په وجود كي لكن له
سببه د شرف د اهل البشارة چي مؤمنان دي بشيراً يې دمخه كړى تر نذيراً، وانما
قلت كه څه هم بشارت آه لانهم قالوا ان التحلية بالحاء المهملة بعد التخلية بالخاء
المعجمة فتدبر.

وَيَقُوۡلُوۡنَ مَتٰى هٰذَا الۡوَعۡدُ اِنۡ كُنۡتُمۡ صٰدِقِيۡنَ ﴿۲۹﴾

او وايي كفار د مكې له سببه د نهايت جهل ددوى او د استهزاء په لهجه او د
استبعاد پر معيار، كله به وي دا مبشر به يعني الجنة يا منذر عنه يعني النار، او يا
هذا اشاره ده بعيد ته ده يعني يجمع بيننا ربنا ثم يفتح بيننا يعني داده جمع موعود به
كله وي، كه تاسي ياست رشتيا ويونكي، والمخاطب هو الرسول ﷺ والمؤمنون.

**پوه سه:** چي جزاء د ان كنتم صادقين محذوف ده دل عليه ماقبله يعني فانبؤنا عن وقته.

قُلۡ لَّكُمۡ مِّيۡعَادُ يَوۡمٍ لَّا تَسۡتَاۡخِرُوۡنَ عَنۡهُ سَاعَةً وَّلَا تَسۡتَقۡدِمُوۡنَ ﴿۳۰﴾

ته ورته ووايه چي تاسي لره وعده ده يوې ورځي ده (نو ميعاد مصدر ميمي دى)
"لاتستأخرون آه" جمله صفت د يوماً ده، والمعنى چي تاسي نه وروسته كېږئ تر هغې
ورځي او نه دمخه كېږي، اكثره د مفسرينو وايي چي مراد له دې يوم څخه ورځ د قيامت
ده يعني كه قريب ته اشاره وي په هذا الوعد سره او كه بعيد ته كمامر، او الضحاك رح
وايي چي مراد ځني موت دى لاتقدمون ولاتستأخرون بان يزاد في اجالكم او ينقص آه.

**درويش وايي:** چي د الضحاك رح پر تقرير يعني چي ميعاد موت ځني مراد سي

اشاره په هذا الوعد کي چي کفارو به ويل نه قريب ته صحيح کېږي او نه بعيد ته الا ان يقال انه قد ورد في الحديث النبوي ﷺ من مات فقد قامت قيامته فتدبر غاية التدبر.

**پوه سه:** چي قل لکم ميعاد الآية، ځواب د تهديد دى و کافرانو ته مطابق د هغه سره چي دوى به پر طريقه د استهزاء او انکار ويله متى هذا الوعد الآية.

**پوښتنه:** استخار يعني ځنډول د هغې ورځي خو عقلاً ممکنه ده مثلاً يوم الوعد دى د يکشنبې ورځ وي د دوشنبې ته دي وځنډول سي لکنه غير ممکن شرعًا لان القرآن اخبر به اى بعد الاستيخار، والاستقدام غير ممکن عقلاً فلا فائدة في نفي ذالک، ولي چي مثلاً يوم موعود د دوشنبې ورځ وه، نو دوشنبې چي راغله ويک شنبې ته استقدام څرنګه امکان پذير دى، ولي چي يکشنبې خو تېره سوه د زماني اجزاء خو بيرته نه راګرځي لان جميع ذوى العقول متفق على ان الزمان غير قار الذات؟

**ځواب:** ذکر د عدم استقدام لپاره مبالغې دى په نفي کي د عدم الاستخيار يعني الاستخيار کالاستقدام الغير الممکن عقلاً في عدم الوقوع فافهم هداک الله تعالى.

**وَقَالَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا لَنْ نُّؤْمِنَ بِهٰذَا الْقُرْاٰنِ وَلَا بِالَّذِىْ بَيْنَ يَدَيْهِ ؕ**

او وويل هغه کسانو چي کفر يې اختيار کړى ؤ يعني مشرکى قريش هرګز موږ ايمان نه راوړو پر دې قرآن يعني النازل على محمد (ﷺ) او نه پر هغو کتابو چي تر قرآن دمخه تېر سوي دي لکه تورات د موسىٰ او انجيل د عيسىٰؑ بلکي ټوله هغه کتابونه چي قائل په بعث بعد الموت سره وي لان المشرکين کانوا منکرين للبعث بعد الموت.

**پوه سه:** چي دا خبره مشرکانو د مکې هغه وخت وکړه چي عليه الصلوٰة والسلام هنوز لا هجرت نه ؤ کړى، نو مشرکان د مکې يو استازى ور واستاوه مديني منورې ته چي د اهل کتاب څخه دي پوښتنه وکړي چي تاسي د محمد (ﷺ) په باره کي څه عقيده لرئ؟ هغو ورته وويل چي هو! دى رسول دى او موږ يې نعت په خپلو کتابو کي ليدلى دى، نو دا خبره چي کافرانو د قريشو واورېدل نو بې وويل لن نؤمن الآية، او بعض مفسران وايي چي مراد د بين يديه قيامت او جنت او اور دى، يعني چي محمد ﷺ وايي چي دا شيان په مخ کي دي زما او ستا.

**فائده:** هذه الجملة معطوفة على قوله تعالى ويقولون متى هذا الوعد.

وَلَوْ تَرَىٰٓ إِذِ ٱلظَّٰلِمُونَ

الخطاب الى محمد (ﷺ) او لكل مخاطب قابل للرؤية والمفعول محذوف والتقدير ولو ترى الظالمين "اذ الظالمون" هغه كسان چي ظلم يې كاوه پر خپلو ځانو په انكار سره د بعث بعد الموت.

**پوه سه:** چي جواب د لو محذوف دى اى لرئيت امرًا فضيًا يقصر العبارة عن بيانه وتصويره.

**سوال:** د مخه وويل سوه چي مفعول د ترى محذوف دى چي تقدير يې داسي ؤ ولو ترى الظالمين نو په آيت كي په ځاى كي د اسم ظاهر ضمير راوړه، يعني اذهم به مناسب نه واى؟

**ځواب:** لا ولي چي هغه مفعول خو مقدر ؤ او مقدر ته خو ضمير نه سي راجع كېداى.

**سوال:** لو شرطي خو پر ماضي داخلېږي دلته يې پر مضارع داخل كړى دى حكمت يې څه دى؟

**ځواب:** اشاره ودې ته ده چي مستقبل په امور كي د خداى ﷻ لكه ماضي دى في تحقق الوقوع قطعًا او يا ددې لپاره مضارع راوړه چي استحضار ددې امر باطل ومخاطب ته وكړي اذ المضارع هـ للحال.

مَوْقُوفُونَ عِندَ رَبِّهِمْ يَرْجِعُ بَعْضُهُمْ إِلَىٰ بَعْضٍ ٱلْقَوْلَ

"موقوفون" اى محبوسون، په نېز د خداى ﷻ يعني للحساب واقامة الحجة يعني يو له بله خبري سره كوي او بحث او سوال و جواب سره وايي.

**پوه سه:** چي دا جمله حال ده له ضمير څخه د موقوفون، او يا خبر بعد الخبر ده الظالمون، والتقدير اذ الظالمون موقوفون ويرجع بعضهم آه.

يَقُولُ ٱلَّذِينَ ٱسْتُضْعِفُوا۟ لِلَّذِينَ ٱسْتَكْبَرُوا۟

دا جمله بيان دى د يرجع بعضهم آه، او مراد د الذين استضعفوا څخه تابعان دي. او د الذين استكبروا څخه رئيسان د كافرانو دي، يعني وبه وايي تابعان وهغو كسانو ته چي متكبران ددوى وه يعني رئيسان.

لَوْلَآ اَنۡتُمۡ لَكُنَّا مُؤۡمِنِيۡنَ ﴿۳۱﴾

كه تاسي نه وای چي موږ مو له ايمان راوړلو څخه بالله ورسوله منع كولو، نو هر آئينه موږ به وای ايمان به مو پر خدای او رسول راوړی وای، مطلب دادی چي تاسي موږ په دې عذاب كې د ورځي د قيامت واقع كړو.

قَالَ الَّذِيۡنَ اسۡتَكۡبَرُوۡا لِلَّذِيۡنَ اسۡتُضۡعِفُوۡۤا اَنَحۡنُ صَدَدۡنٰكُمۡ

وه به وايي هغه كسان چي متكبران وه و مستضعفينو ته يعني په جواب كې د اتباع، آيا موږ منع كړي واست تاسي، والاستفهام للانكار يعني موږ خو تاسي نه واست منع كړي.

عَنِ الۡهُدٰى بَعۡدَ اِذۡ جَآءَكُمۡ بَلۡ كُنۡتُمۡ مُّجۡرِمِيۡنَ ﴿۳۲﴾

له هدايت او له قبول څخه د اسلام وروسته تر دې چي دعوت د دين د اسلام او د توحيد تاسي ته راغلی په دعوت د نبي او قرآن. بلكې تاسي په خپله مجرم ياست چي تقليد ز موږ مو مختاره كړی بېله دليله، او متابعت د رسول مؤيد بالمعجزات مو پرېښو.

**قانون:** همزه د استفهام چي پر اسم داخله سي مثل انا قلت هذا معنی يې داده چي دا خبره خو ما نه ده كړې بلكې دا بل چا كړې وه، وفي الآية حيث دخل همزة الاستفهام الانكاري على ضمير نحن هم هغه قانون جاري دی يعني منع له هدی څخه ستاسي خو موږ نه ده كړې بلكې تاسي په خپل اختيار كړې ده كما قال الله تعالى بل كنتم مجرمين فافهم.

وَقَالَ الَّذِيۡنَ اسۡتُضۡعِفُوۡا لِلَّذِيۡنَ اسۡتَكۡبَرُوۡا بَلۡ مَكۡرُ الَّيۡلِ وَالنَّهَارِ

او وه به وايي هغه كسان چي مستضعفين وه (يعني د رد لپاره د جواب سابق د مستكبرينو انحن الى قوله بل كنتم مجرمين) و مستكبرينو ته، يعني وه به وايي اتباع و رؤساء متبوعينو ته، ومعنی د قول د اتباع داده چي موږ صد له هدی څخه په خپل خوښه نه دی كړی "بل مكر آه" بلكې موږ صد چي كړی دی ستاسي د مكر په سبب ليلاً ونهاراً.

**درويش وايي:** چي اصل فاعل د مصدر چي مكر دی او مفعول د هغه متروك دی

او اضافت د مصدر و ظرف ته سوی ده مجازًا و اصل الكلام ای مكركم ايانا في الليل والنهار چي تاسي به زموږ سره مكر كاوه د شپې او د ورځې چي خبردار چي ايمان رانه وړئ او د رسول خبره ونه منئ، فائده د ذكر د ليل او نهار داده چي تاسي رئيسانو به على الاستمرار صد زموږ كاوه له قبول څخه د هدايت او د ايمان.

**درويش وايي:** چي مظهري په نقل له غير څخه داسي وايي: وقيل عنوا بمكر الليل والنهار طول السلامة وطول الامل فهما صدنا انتهى، وهذا ليس بشئ اذ السباق (بالباء الموحدة) والسياق (بالياء التحتانية) بين الاتباع والمتبوعين وفيما نقل تسليم للتابعين ان صددنا عن الهدى ليس منكم ايها المتبوعين بل باغترارنا بطول السلامة وطول الامل فتدبر.

## إِذْ تَأْمُرُونَنَآ أَن نَّكْفُرَ بِٱللَّهِ وَنَجْعَلَ لَهُۥٓ أَندَادًا ۚ

اذ بدل دی من الليل والنهار چي تاسي به موږ امر كولو په دې سره چي موږ كفر وكړو په خدای ج سره يعني په توحيد د خدای ج. او موږ وګرځوو خدای ج لره امثال په عبادت كي، چي بتان دي.

## وَأَسَرُّوا۟ ٱلنَّدَامَةَ لَمَّا رَأَوُا۟ ٱلْعَذَابَ ۚ

او دواړو ډلو اتباع او متبوعينو پټه ساتل پښېماني پر ضلال او اضلال او هري ډلي خپل پښېماني پټه ساتل له بلې ډلې څخه له جهته د پيغور د بلي ډلي له خوا څخه.

## وَجَعَلْنَا ٱلْأَغْلَـٰلَ فِىٓ أَعْنَاقِ ٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟ ۚ

"وجعلنا" عطف دی د رؤا العذاب او تعبير په ماضي مع هذا الامر في المستقبل يعني يوم القيامة لتحقق وقوعها حتمًا كما مر في امثاله.

**پوه سه:** چي اغلال جمع د غُل ده بضم الغين المعجمة وهو الطوق من الحديد.

**ترجمه:** موږ ګرځولي دي طوقونه په غاړو كي د هغه كسانو چي په دنيا كي يې كفر مختاره كړی ؤ.

**سوال:** في اعناقهم چي ويل سوي وای اخصر به نه وای لسبق المرجع؟

**ځواب:** هو! لكن په اظهار كي اعلان د ذم ددوی دی، او بل اشاره و سبب ته د جعل الاغلال في اعناقهم ده.

**فائده:** دا جعل الاغلال في اعناقهم ددې لپاره دی چې په دغه طوق کې بيا غنخير د اوسپنې بند کړي او کافر لکه سپی په هغه غنخير اور ته کشوي.

هَلْ يُجْزَوْنَ إِلَّا مَا كَانُوا يَعْمَلُونَ ۝

الاستفهام انکاري، يعني جزاء نه ورکړل کېږي مګر (بحذف المضاف بعد حرف الاستفهام اى الا جزاء ما کانوا يعملون اى في الدنيا).

**درويش وايي:** چې قهستاني رح وايي چې غل طوق دی د اوسپنې چې د سړي لاس تر زنه ورلاندي کړي وروسته دغه طوق پر لاس سرېږه وروتړي تاچې دا سړی سرهم نسي ښورولای، وهو معتاد في الظلمة في قديم الزمان في الدنيا.

وَمَا أَرْسَلْنَا فِي قَرْيَةٍ مِّن نَّذِيرٍ

مونږ نه دی استولی په يو وطن کي (يعني له قريه څخه مراد متعارفه معنی نه د يعني مقابل البلد بلکې مطلق ځای د اقامت د خلکو که بلد وي او که قريه متعارفه وي) "من نذير" يو بېرونکی د خلکو له عذاب څخه د خدای ج که ايمان را نه وړي، کلمه د من زائده ده لپاره د استغراق د نفي، روح المعاني وايي چې دا آيت لپاره د تسلي د عليه الصلوة والسلام دی چې ده ته د قوم قريشو له خوا خصوصًا المترفين منهم ډېر ازار ورسېدی، وحاصل التسلية چې ازار د رسولانو د مترفينو د خوا څخه عادت قديمه دی، وقالوا البلية اذا عمت هانت، په پښتو کي وايي د عالمه سره غم نه دی غم، ابن المنذر او ابن ابی حاتم په سند صحيح سره له ابی رزين رض څخه روايت کړی دی چې په مکه مکرمه کي دوه کسه وه چې په تجارت سره شريکان وه، هغه يو په مکه کي پاته سو او هغه بل شام ته ولاړی، په دې شپو او ورځو کي رسول الله ﷺ ته نبوت ورکړل سو، نو مکي وال شريک و شامي شريک ته دا حال د نبوت د عليه الصلوة والسلام ورواستاوه، شامي شريک ورته نوشته کړه چې د دغه مدعي النبوة متابعت چا کړی هم دی او که څرنګه، مکي وال ورته نوشته کړه چې چا يې متابعت نه دی کړی مګر يو څو ارزال يعني خوارانو مسکينانو خلګو يې متابعت کړی دی، د قريشو څخه يې هيڅ چا متابعت نه دی کړی، نو شامي تجارت په شام کي متوقف کړی او د مکې پر خوا راستون سو، نو مکې ته چې راورسېدی د مکې

وال سره يې وليدل او ورته وه يې ويل چې دغه مدعي النبوة ته ما وروله چې زه يې وويڼم، دا شامي شريک بعض کتابونه ويلي وه، نو عليه الصلوة والسلام ته ورغلی او ورته وه يې ويل چې ته خلک و څه شي ته رابولې؟ عليه الصلوة والسلام ورته وويل الی کذا وکذا (يعني مثلاً الی التوحيد والی عقيدة بعث بعد الموت الی غير ذالک) نو سړي ورته وويل اشهد انک رسول الله، عليه الصلوة والسلام ورته وويل: ما علمک بذالک؟ هغه ورته وويل لم يبعث نبي الا اتبعه رزالة الناس ومساکينهم وما ارسلنا في قرية من نذير کما مر تفسيره.

## إِلَّا قَالَ مُتْرَفُوهَآ

دا جمله حال ده په تقدير د ''قد'' له ''نذير'' څخه، کما هو القانون النحوي في الماضي الواقع حالاً يعني الا وقد قال مترفوها، يعني متنعمين او شتمني والا د هغې قريې، وجه د قول مترفوا د قريې داده چې د مترفين حال يعني غنی ددوی باعث پر تکذيب د رسول ده يعني في الاغلب للتکبر والمفاخرة بزخارف الدنيا والانهماک في الشهوات والاستهانة بالفقراء التابعين للرسول لکه چې وروسته آيت دلالت پر کوي.

**نکته:** فقير د في الاغلب قيد ددې لپاره ووايه چې په مکه کې ابوبکر الصديق ﷺ د شتمنو خلکو څخه د مکې ؤ، راويان وايي چې ده په هغه وخت کې څلويښت زره (۴۰۰۰۰) درهمه درلوده، چې د هغه ډېره لويه سرمايه د تجارت وه، لکن ده بې طلبه د معجزې د عليه الصلوة والسلام او بې چون و چرا وويل: اشهد ان لا اله الا الله وان محمداً رسول الله، ځکه يې د صديق اکبر نوم په ټوله امت محمدي کې وګاټه.

## إِنَّا بِمَآ أُرْسِلْتُم بِهِۦ كَٰفِرُونَ ﴿٣٤﴾

موږ په هغه شي چې تاسي په راستول سوي ياست په هغه (يعني على زعمکم) کافران يو يعني منکران يو.

**پوهنه:** چې روح البيان او مظهري په دې ځای کې يو نهايت مجمله خبره کړې ده يعني من مقابلة الجمع بالجمع، ددې خبرې توضيح داده چې جمع اول الرسل دی المدلول عليه بقوله تعالی بما ارسلتم، والجمع الثاني کافرون ده يعني فقد کفر کل مترف برسوله وخاطبه بمثل ما في الآية يعني (بما ارسلتم الآية)

وَقَالُوا نَحْنُ أَكْثَرُ أَمْوَالًا وَأَوْلَادًا وَمَا نَحْنُ بِمُعَذَّبِينَ ﴿٣٥﴾

دوی وویل موږ ډیر یو ازروی مال و اولاد تر تاسي "قالوا" الضمیر راجع الی المترفین، والمفضل علیه محذوف یعني منکم ایها الرسل "وما نحن بمعذبین" یعني في القیامة لکه تاسي چي موږ به بېروئ، یا له دې سببه موږ معذبین نه یو چي قیامت بعث بعد الموت نسته کما هو عقیدتهم، او یا له دې سببه چي موږ پر خدای ج ګران یو، نو که قیامت وي هم علی الفرض والتقدیر، نو خدای ج زموږ سپکاوی په دوږخ سره نه کوي کما في الدنیا.

**فائده:** اموالاً و اولاداً تمییز د نسبت څخه د اکثر ونحن ته، حاصل ددوی د کلام دادی که نبوت امکان پذیر وي نو موږ تر تاسي اولی یو په دغه منصب سره په دلیل ددې چي موږ پر خدای ج ګران یو او د خدای ج دوستان یو، ولې موږ ته یې اموال او اولاد په کثرت راکړي دي نه تاسي ته ایها الرسل.

قُلْ إِنَّ رَبِّي يَبْسُطُ الرِّزْقَ لِمَنْ يَشَاءُ وَيَقْدِرُ

ووایه یا محمد (ﷺ) په رد کې ددې ګمان او قیاس ددوی، چي رب زما ورکوي رزق یعني په کثرت سره و هغه چا ته چي اراده یې سي (لپاره د امتحان د بنده چي شکر یې وایي او که نه) "ویقدر" ضمیر د یقدر و رزق ته راجع دی، یعني تنګوي رزق و من یشاء ته ابتلاءً لصبره علی الرزق الضیق.

**درویش وایي:** چي حاصل د رد د کافرانو د قول او زعم دادی چي فراخي د رزق په دنیا کي دلیل د تکریم عند الله نه ده، او نه هم ضیق الرزق په دنیا کي علامه د توهین او سپکاوي ده په نېزد د خدای ج لان الدنیا دار الابتلاء لا دار الجزاء، نو څکه احوال او صفات د خلګو په دنیا کي مختلف دي فمنهم مؤمن ومنهم کافر ومنهم عالم ومنهم جاهل الی غیر ذالک ... بیت:

بر فلک برتر بود اسرار او .... شئًا لله شئًا لله کار او

وَلَٰكِنَّ أَكْثَرَ النَّاسِ لَا يَعْلَمُونَ ﴿٣٦﴾

لکن اکثره خلک یعني کفار په حکمت د خدای ﷻ په توسیع کي د رزق پر بعض کسانو او په تضییق کي پر بعض کسانو نه پوهېږي چي حکمت ابتلاء د رب

العزت ده، بلكې ددوى دا زعم فاسد دى چي كثرة الاولاد و الاموال علامه د كرامت عند الله ده وبالعكس قلة المال والمنال والاولاد دليل د اهانت دى عند الله، په حديث شريف كي راغلي دي الدنيا عرض حاضر يأكل منها البر والفاجر والآخرة وعد صادق يحكم فيها ملك قاهر .... بيت:

اديم زمين سفره عام اوست .... بدين خوان يغما چه دشمن چه دوست
نفس را بدخونباز ونعمت دنيا مكن .... آب ونان سير كامل ميكند مزدوررا

وَمَآ أَمۡوَٰلُكُمۡ وَلَآ أَوۡلَٰدُكُم بِٱلَّتِي تُقَرِّبُكُمۡ عِندَنَا زُلۡفَىٰٓ

**پوه سه:** چي دا كلام مستأنف دى له جانبه څخه د خداى ﷻ لپاره د تحقيق د حق مبالغةً في رد قول الكفرة ونحن اكثر اموالاً و اولاداً، اى ما جماعت اموالكم و اولادكم ايها الناس "بالتي" تا د التي په تاويل د اموالكم و اولادكم په جماعت سره كما اشرنا اليه. نحات وايي چي جمع مكسر چي دلته اموالكم واولادكم ده كه عقلاء وي او كه د غير عقلاوي سره برابر دي په حكم كي د تانيث بتاويل الجماعة، او بعض مفسرين وايي چي موصوف د التي الخصله دى اى بالخصلة التي "تقربكم عندنا زلفى" چي تاسي دي په نيز زموږ په نزدې والي.

**پوه سه:** چي زلفى منصوب دى تقديراً يعني مفعول مطلق دى د تقربكم، الزلفى والزلفة والقربى والقربة بمعنى واحد.

**سوال:** تقربكم خو له بابه د تفعيل دى، او زلفى مصدر مجرد دى، نو څرنګه يې انبتكم مفعول مطلق كېداى سي؟

**ځواب:** نحات د بصرې دا روا بولي نحو: انبتكم من الارض نباتاً، او اهل كوفه نحات وايي: چي وروسته تر فعل مزيد فعل مجرد محذوف، نو دا مجرد مصدر د فعل محذوف مفعول مطلق دى، والتقدير تقربكم فقربكم زلفى، او اخفش رح وايي چي زلفى اسم مصدر دى كانه قال بالتي تقربكم عندنا تقريباً فافهم.

إِلَّا مَنۡ ءَامَنَ وَعَمِلَ صَٰلِحٗا

مگر نه هغه څوک چي ايمان يې راوړى وي او عمل صالح يې هم كړي وي.

**پوه سه:** چي ظاهره داده چي دا استثناء منقطع ده يعني لكن من آمن وعمل صالحًا

يعني فايمانه وعمله يقربه عني، كذا قال ابن عباس ﷜، او دا هم ممكنه ده چي استثناء دي متصل وي له مفعول څخه د يقربكم، والمعنى ان الاموال والاولاد لايقرب الى الله احد الا المؤمن الصالح يعني ينفق ماله في سبيل الله ويعلم اولاده الخير او باعثه كوي يې پر صلاح، او دا هم احتمال را وړل سوی دی چي استثناء دي متصله وي د اموالكم او اولادكم څخه بحذف المضاف ومن آمن ته، والتقدير الا اولاد من آمن واولاده فانها تقربه الى الله، ولي چي غالبًا چي مؤمن صالح به مال په لار کي د خير صرفوي او اولاد به پر خير باعثه کوي، او دغه اموال او اولاد به دی و خدای ﷻ ته نژدې کړي.

# فَأُولَٰٓئِكَ لَهُمْ جَزَآءُ ٱلضِّعْفِ بِمَا عَمِلُوا۟ وَهُمْ فِى ٱلْغُرُفَٰتِ ءَامِنُونَ ﴿٣٧﴾

**پوه سه**: چي کلمه د فاء لپاره د ترتب پر ماقبل او لفظ د اولئک مبتداء ده جزاء په رفع سره يې خبر دی، مضاف و ضعف ته دی من قبيل اضافة المصدر الى المفعول او کلمه د با په بما عملوا کي سببيه ده او کلمه د ما يا مصدريه يا موصوله ده، والحاصل ان الله يضعف جزاء حسناتهم فيجزون بالحسنة الواحدة عشرًا بالغًا الى سبعمائة الى ما شاء الله، وذالک التفاوت بحسب تفاوت الاخلاص في العمل والوقت والمحل وغيرها من موجبات الزيادة على العشرة فتدبر "وهم في الغرفت آمنون" او دوی به په لوړو درجو کي د جنت په امن او سېږي.

**پوه سه**: چي حمزه ﷫ له قراء سبعه وُ څخه غرفة مفرد وايي بارادة الجنس يشمل الواحد والكثير، او نور قاريان يې په جمع سره وايي، وهذه القرئة واضح والغرف المنازل الرفيعة من الجنة جمع د غرفة ده چي په عربي يې البيت فوق البيت بولي او په پښتو يې بالا خانه بولي.

**فائده**: د آمنون پر اخه لمن ده اى من جميع الآفات كالموت والهرم والمرض والعدو والخوف والحزن والجوع والعطش الى غير ذالک.

**دروېش وايي**: چي پښتانه وايي چي دنيا يو خوب او خيال دی، دا يوه ډېره زېبا او په زړه پوري خبره د اولياء الله ده، ابراهيم بن ادهم ﷫ يو سړي ته وويل چي يو درهم په خوب کي ستا خوښ دی او که يو دينار په ويښه؟ (درهم د سپينو زرو روپې ده او دينار د سرو زرو روپې) هغه سړي ورته وويل چي دينار مي خوښ دی په ويښه، ابراهيم ﷫

ورته وویل کذبت، ولي چې دا دنیا نعمتونه او جاه و جلال لکه درهم چې څوک په خوب کې خوښ لري په دې معنی چې د خوب په حالت کې که څه هم سړی په درهم خوشاله وي لکن چونکه خوب خو دوام نه لري چې راویښ سي درهم نه وي، او هغه شی چې ته محبت ورسره لرې په دینا کې یعني من طاعات الله واذکار وغیر ذالک چې په آخرت کې ثواب ورکول کېږي چې د آخرت ژوند حیات حقیقي او دائم دی لکه په ویښه دینار دی، فافهم هداک الله تعالی، ددې حکایت مطابق یو د پښتو شاعر وایي:

په تصور مي ځان باچا کړی .... سر مي راپورته کړی ملنګ د دنیا ومه

وَالَّذِيْنَ يَسْعَوْنَ فِىٓ اٰيٰتِنَا مُعٰجِزِيْنَ اُولٰٓئِكَ فِى الْعَذَابِ مُحْضَرُوْنَ۝

او هغه څوک چې کوشش کوي په ابطال د آیاتو زموږ (بحذف المضاف یعني لفظ ابطال) یعني چې دوی زما عجز فرض کړي چې عذاب به نه کړي را، هم دغه کسان په عذاب کې به حاضر کړل سي یعني عذاب النار في یوم القیامة ویحتمل عذاب الدنیا کالمشرکین في یوم بدر.

**پوه سه**: چې له آیتو څخه آیات قرآنیه مراد دي او کوشش کونکی په ابطال کې کې تول له کفرة فجرة دي من المشرکین والیهود والنصاری وغیر هؤلاء.

قُلْ اِنَّ رَبِّيْ يَبْسُطُ الرِّزْقَ لِمَنْ يَّشَآءُ مِنْ عِبَادِهٖ وَيَقْدِرُ لَهٗ

ته ووایه یا محمد (ﷺ) و کافرانو ته د مکې بلکې عمومًا خلګو ته چې رب زما فراخه کوي رزق و هغه چا ته چې دده اراده وي د بندګانو څخه دده او تنګوي رزق و من یشاء ته، نو ضمیر د له راجع دی و من یشاء ته.

**پوښتنه**: دا آیت خو دمخه قریبًا ذکر سو نو دا اوس ذکر به یې تکرار نه وي؟

**ځواب**: مظهري رح ددې پوښتنې په ځواب کې وایي چې دا آیت د توسیع او د تنګی نسبت و شخص واحد ته دی په دوه وخته وما سبق في شخصین فلا تکرار انتهی، او روح البیان هم بعینه دغه ځواب راوړی دی او روح المعاني هم دغه ځواب خو راوړی دی.

**درویش وایي**: چې پر دغه توجیه د عدم تکرار څه قرینه ده چې په دې آیت کې توسیع او تضییق مراد دی نظر و شخص واحد ته په دوه وخته کې او په آیت سابق کې نظر و دوه شخص ته مراد ده؟

والجواب: قرينه يې داده چي په آيت كي "له" چي راجع و من ته دى او په سابق آيت كي "له" نه دى راوړى، نو دا وفهمېدل چي په سابق آيت كي توسيع او تضييق وه يو من ته نه دى او د 'له' چي ضمير راوړى راجع و من مذكور سابقًا ته دى دا ښكار كوي چي توسيع او تضييق نسبت و يوه من ته دي ولا يتصور ذالك الا في وقتين فافهم وتدبر غاية التدبير.

**فقير وايي:** چي د عدم تكرار وجه السيد محمود الآلوسي رح ډېره په زړه پوري راوړې ده، حيث قال في تفسير الآيت الثانية اى يوسعه سبحانه عليه تارةً ويضيقه عليه اخرى فلا تخشوا الفقر (اى المؤمنون) وانفقوا في سبيل الله وتقربوا اليه ج باموالكم وانفسكم فمساق الآية للوعظ للمؤمنين والحث على التقرب اليه تعالى بالانفاق بخلاف مساق نظيرها المتقدم فانه للرد على الكفرة فلا تكرار اذًا.

**درويش وايي:** چي حاسد چي فقط كتاب فروش وي دى په دقيق عبارت څه پوهېږي، اخير دا نعره وكړي چي عبيد الله سارق دى، ومن غاية جهله لايفرق بين النقل والسرقة ولا يعلم ان مبنى الدين المبين على النقل من لدن رسول الله ﷺ الى الوقت الحاضر، وايضًا كتب التفاسير والفقه بل كتب جميع العلوم مملوة من النقل.

## وَمَآ أَنفَقْتُم مِّن شَيْءٍ فَهُوَ يُخْلِفُهُۥ ۖ وَهُوَ خَيْرُ ٱلرَّٰزِقِينَ ۝

هغه شى چي تاسي يې نفقه كړئ يعني في سبيل الله كالجهاد، ولو شيًا قليلاً، خداى ج خلف او عوض وركوي يا ژر يعني په دې دنيا كي كالغنيمة او يا يې ذخيره كرځوي د قيامت د ورځي لپاره، والحاصل فما لكم لاتنفعون اموالكم في سبيل الله.

**پوه سه:** چي كلمه د ما شرطيه ده په محل كي د نصب ده او من شيئ بيان دى، او جواب د شرط يې "فهو آه" دى، او تقديم د مسند اليه يعني "فهو" پر مسند فعلى يعنى "يخلفه" لپاره د حصر دى او تاكيد كما تقرر في كتب النحو.

خداى ج بهترين د رزق وركونكو دى، ولي انسانان كه و چاته رزق وركوي هغه صرف او صرف واسطه دي په رسولو كي د رزق د خداى ﷻ و خلكو ته، واطلاق الرازق على غيره تعالى انما هو بالمجاز والرازق الحقيقي هو الله ﷻ.

**سوال:** پر دې تقدير خو په لفظ كي د الرازقين جمع په منځ كي د حقيقت او مجاز لازمېږي، وقد منعه الاصوليون جميعًا؟

**ځواب:** په الرازقين کي مراد عموم مجاز دی يعني مراد معنى مجازي عامة للحقيقة والمجاز السابق يعني الموصليين للنفع، فتدبر.

وَيَوْمَ يَحْشُرُهُمْ جَمِيعًا ثُمَّ يَقُولُ لِلْمَلَٰٓئِكَةِ أَهَٰٓؤُلَآءِ إِيَّاكُمْ كَانُوا۟ يَعْبُدُونَ ﴿٤٠﴾

او هغه ورځ چي حشر سي دوی ټوله يعني المتبوعين والتابعين، وبعبارة اخرىٰ المستكبرين والضعفاء.

**پوهسه:** چي يوم منصوب دی په اذکر مقدر سره، او ضمير د يحشرهم راجع و خدای ﷻ ته دی "ثم يقول" ای الرب تبارک وتعالى، عطف دی پر يحشرهم چي صيغه د غائب وه کماهو قرائة اکثر القراء، او بعض قراء يې په نون سره وايي يعني نقول "للملائكة" و ملائكو ته يعني دا هغه کافران دي چي عبادت د ملکو به يې کاوه او دا به يې هم ويل چي ملائکه بنات الله دي؟ "اياكم كانوا يعبدون" ستاسي دوی وه چي عبادت يې کاوه يعني په دنيا کي.

**پوښتنه:** د ملکو څخه ددې سوال څه فائده ده، ولي خدای ج ته خو په علم ازلي دا معلومه وه چي ملائکه ددوی په عبادت نه وې راضي؟

**ځواب:** دا سوال د عابدانو څخه د ملکو د ذليل کېدو لپاره دی، او سرزنش د هغو دی او عابدان د ملکو نا اميده کول دي له شفاعت څخه د ملکو لکه دوی چي به دا زعم کاوه.

**پوښتنه:** مشرکانو خو بعض د لمر او د سپوږمۍ عبادت کاوه، او بعضو د مطلق ستورو عبادت کاوه او بعضو د بتانو عبادت، نو تخصيص د ملکو د څه حکمت لپاره وکړل سو؟

**ځواب:** تخصيص د ملکو يو ددې لپاره دی چي ملائکه اشرف د معبوداتو د مشرکانو دي، او بله وجه يې داده چي ملائکه قابل د سوال او ځواب دي کما سيأتي بخلاف سائر معبودات المشرکين کما ذکرنا هغه خو قابل د سوال او جواب نه دي، او بله وجه يې داده چي اصل او مبدء د ټولو عباداتو د مشرکانو عبادت د ملکو دی.

قَالُوا۟ سُبْحَٰنَكَ أَنتَ وَلِيُّنَا مِن دُونِهِم ۖ

وويل ملکو پاکي ده تا لره (سبحان مصدر د افعل محذوف دی ای تنزهک

تنزيها (کماهو معنی د سبحانک تسبيحًا ده) عن الشرک والشريک) ته يا الله زموږ ولي او دوست يې نه دوی يعني مشرکان، يعني لا موالات بيننا وبينهم، ددې ويلو غرض د ملکو دا ؤ چي موږ په عبادت ددوی راضي نه ؤ لانا نعلم ان معبودنا انت بلا شريک فکيف نرضیٰ بجعل المشرکين ايانا شريکًا لک.

**بَلْ كَانُوا يَعْبُدُونَ الْجِنَّ أَكْثَرُهُم بِهِم مُّؤْمِنُونَ**

بلکې دوی عبادت د شيطانانو کاوه، يعني شيطانانو و دوی ته عبادت کول د ملکو ښائسته کړی ؤ، او دا به يې دوی ته وسوسه وراچول چي که تاسي عبادت د ملکو وکړئ دوی به ستاسي شفاعت وکړي و خدای ج ته، او بعض مفسران په نقل د مظهري وايي چي شيطانانو به دوی ته ځانونه متمثل ښکاره کړي وه او دوی ته به يې ويل يعني په خيال کي به يې دا وراچول چي موږ ملکي يو فيعبدنهم، نو پر دې تقدير عبارت د شيطانانو علی الحقيقة دی "اکثرهم بهم مؤمنون" ای اکثر الناس چي مشرکان دي پر جن به يې ايمان ؤ.

**فَالْيَوْمَ لَا يَمْلِكُ بَعْضُكُمْ لِبَعْضٍ نَّفْعًا وَلَا ضَرًّا**

نو نن ورځ يعني په ورځ د قيامت مالک نه دي بعض خلک من الملائکة والجن والانس نور بعضو لره نفع نسي رسولای يعني يا دي ثواب ورکړي يا دي شفاعت وکړي او نه ضرر ور رسولای سي او نه عذاب ورکولای سي، کريمه: لمن الملک اليوم لله الواحد القهار.

**وَنَقُولُ لِلَّذِينَ ظَلَمُوا ذُوقُوا عَذَابَ النَّارِ الَّتِي كُنتُم بِهَا تُكَذِّبُونَ**

او موږ به ووايو هغه کسانو ته يعني مشرکينو ته چي ظلم يې کړی ؤ په دنيا کي يعني چي عبادت چي حق د خدای ج ؤ بې ځايه يې کړی ؤ چي بتان وه وغيرها کما هو معنی الظلم، نو تاسي برداشتوئ عذاب د اور يعني په جهنم کي هسي اور چي تاسي يې تکذيب کاوه يعني في الدنيا.

**بوه سه:** چي جمله د نقول عطف ده پر لايملک.

وَإِذَا تُتْلَىٰ عَلَيْهِمْ آيَاتُنَا بَيِّنَاتٍ

او هغه وخت چي تلاوت وکړل سي پر دوی یعني مشرکین د اهل مکه آیاتونه زموږ یعني آیات القرآن العزیز "بینات" چي واضحات الدلالات دي پر خپلو معانیو، یعني دا تلاوت د آیات د قرآن پر ژبه د رسول کریم ﷺ وي.

قَالُوا مَا هَٰذَا إِلَّا رَجُلٌ يُرِيدُ أَنْ يَصُدَّكُمْ عَمَّا كَانَ يَعْبُدُ آبَاؤُكُمْ

دوی وایي نه دی (اشاره و علیه الصلوة والسلام ته کوي) یعني محمد ﷺ مگر یو سړی دی چي تاسي منع کوي د هغو خدایانو څه چي ستاسي آباء یې عبادت کاوه، مراد څني بتان دي.

وَقَالُوا مَا هَٰذَا إِلَّا إِفْكٌ مُفْتَرًى

او دوی وایي یعني د قرآن په باره کي نه دی دا قرآن مگر درواغ دی یعني د واقع سره برابر نه دی چي علیه الصلوة والسلام په درواغو په خدای پوري تړلی دی، یعني دی وایي چي دا د خدای کلام دی او د خدای کلام هم نه دی.

وَقَالَ الَّذِينَ كَفَرُوا لِلْحَقِّ لَمَّا جَاءَهُمْ إِنْ هَٰذَا إِلَّا سِحْرٌ مُبِينٌ ۝

او وایي دغه کسان چي کافران دي یعني کفار مکة و هغه حق ته (چي مراد څني امر د نبوت د علیه الصلوة والسلام یا مراد دین د اسلام دی یا قرآن دی) هغه وخت چي دوی ته راغلی (یعني په اول وهلت کي د راتگ بېله فکر او غور کولو) نه دی دا مگر نه دی ښکاره سحر یعنون چي سحریت یې ظاهر هم دی.

**پوه سه:** چي اول حکم ددوی یعني الا افک په اعتبار د معنی د قرآن دی، او دوهم حکم ددوی یعني الا سحر مبین په اعتبار د لفظ او اعجاز د قرآن دی، غرض ددوی دا ؤ چي موږ چي مثل یې نسو جوړولای کریمه: ان کنتم في ريب مما نزلنا على عبدنا فأتوا بسورة من مثله، دا علیه الصلوة والسلام پر موږ سحر وکړی چي له ایتان څخه د مثل د سورة یې موږ عاجزه وگرځولو.

**درویش وایي:** چي دا ټولي خبري چي یې کولې عنادًا او تکبرًا یې کولې، ولي هغه د دوو مشر عتبة بن ربیعة به ویل ماهو شعر ولا کهانة ولا سحر.

**فائده**: دا فعل چي خدای ﷻ مکرر راوړی یعني قالوا ما هذا، وقال الذين كفروا والتصريح بلفظ الكفر په دي انکار عظیم ددوی پر انکار او تعجيب عظيم دی من کفرهم فتدبر.

وَمَآ اٰتَيْنٰهُمْ مِّنْ كُتُبٍ يَّدْرُسُوْنَهَا وَمَآ اَرْسَلْنَآ اِلَيْهِمْ قَبْلَكَ مِنْ نَّذِيْرٍ ؕ

موږ دوی ته نه دي ورکړي یعني کفار مکې ته یعني داسي کتابونه چي په هغو کتابو کي دي دلیل وي پر صحت ددوی د شرک، چي دوی دي درس کوي، او موږ نه دی استولی دوی ته تر تا دمخه یو بېرونکی یعني چي دوی ته یې دعوت ورکړی وای د توحید او دوی یې بېرولي وای پر ترک د ایمان، والحاصل چي دوی نو د څه د رکه دعوی د حقیقت د شرک کوي. او دا قرآن افک مفتری بولي او یا یې سحر بولي او علیه الصلوة والسلام ته نسبت د کذب کوي.

**فائده**: دا وروسته آیتونه د خدای پاک له خوا تهدید دي کفارو ته د مکې.

وَكَذَّبَ الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِهِمْ ۙ

او تکذیب کړی دی تر دوی دمخه امتو د رسولانو چي عاد وه او ثمود وه او قوم ابراهیم وه او قوم لوط وه او اصحاب مدین وه او اصحاب ایکة وه.

**پوه سه**: چي دا جمله عطف ده على قال الذين كفروا باندي.

وَمَا بَلَغُوْا مِعْشَارَ مَآ اٰتَيْنٰهُمْ فَكَذَّبُوْا رُسُلِيْ ۗ فَكَيْفَ كَانَ نَكِيْرِ ۧ

او نه وه رسېدلي کفار د مکې و لسمي حصې ته د اما اعطينا الامم الماضية یعني د نعمتو څخه او عدد ته د هغو او طول عمر ته د هغو، دا هر امت چي ذکر سول د خپل خپل رسول تکذیب یې وکړی، نو ما هغه امم تولـه كه څه هم تر کفار د مکې بالاوه هلاک کړه، نو څرنګه ؤ زما انکار پر هغو.

**فائده**: تنوین په نکیر کي عوض دی د مضاف الیه څخه ای کیف کان انكاري عليهم بالعقوبة والاهلاک بصغيرهم وكبيرهم.

**پوه سه**: چي د کیف جواب محذوف دی ای واقع موقعه یعني ما ظلمناهم ولكن كانوا انفسهم يظلمون.

**پوه سه:** چي دا بيان د اهلاک د امم ماضيهؤ چي د وی تکذيب د خپلو رسولانو وکړی بېرول دي د کفارو د مکې چي تاسي چي تکذيب وکړی د خپل رسول محمد (ﷺ) تاسي ته به هم ورته عذاب د امم ماضيهؤ راسي ... بيت:

پند گير از مصائب ديگران ..... تا نگيرند ديگران زتو پند

**سوال:** كذب دوه ځايه په دې آيت كي راغلی يعني وكذب الذين آه فكذبوا رسلي آه، نو به تكرار نه وي؟

**ځواب:** صيغه د تفعيل په اول و كذب الذين لپاره د تكثير ده او په كذبوا كي لپاره د تعديه ورسلي ته والمكذب فيهما واحد، والمعنى انهم اكثروا التكذيب، نو د دوی طبع وګرځېدل حتى چي دلاوره سوه على تكذيب الرسل يعني هر چاته به يې ويل چي دروغ مه واياست چي دا وينا د دوی عادت وګرځېدی حتى رسولانو ته يې هم وويل چي دروغ مه واياست، او بل ځواب دادی چي اول كذبوا مطلق دی يعني مقيد په مفعول پوري نه دی، ولي منزل منزلة اللازم دی، او دويم مقيد په مفعول سره چي رسلي دی، نو دويم كذبوا تفصيل دی د اجمال د اول كذبوا، نو ځكه يې عطف بالفاء پر وكړی، او مصنف د بحر المواج وايي چي ضمير د فكذبوا رسلي راجع دی د كفارو ته د مكې، عطف دی پر ما بلغوا، فلا تكرار ايضًا ولي د دمخه د وكذب الذين من قبلهم څخه خو كفار د امم ماضيهؤ مراد وه فافهم.

قُلْ إِنَّمَآ أَعِظُكُم بِوَٰحِدَةٍ ۖ أَن تَقُومُوا۟ لِلَّهِ

ووايه يا محمد (ﷺ) و كفارو ته مكې، زه و تاسي ته وعظ او نصيحت كوم "بواحدة" اى بخصلة واحدة يعني په يوه خوی سره چي هغه مادل عليه قوله "ان تقوموا لله".

**پوه سه:** چي مراد له قيام څخه متعارف معنا نه ده يعني ضد الجلوس والرقود بلكې مراد ځني قصد مصمم دی په يو كار كي او قصد كول دي و هغه كار ته كما في قوله تعالى: ان تقوموا لليتامى بالقسط، ومعنى "لله" داده چي دا نتصاب ستاسي به خالصة لله وي او تعصب او عناد او تقليد الاباء به نه وي.

مَثْنٰى وَفُرَادٰى ثُمَّ تَتَفَكَّرُوْا

يعني دوه دوه يا يو يو (ولې چې اذدحام وي خاطر او فكر مشوش كرځي، دا دوه لفظه حال دي له فاعل څخه د تقوموا) وروسته به غور او فكر وكړئ په حال كي د محمد ﷺ يعني له ابتداء څخه د بلوغ الى وقت دعوى النبوة، يعني چې دى ليونى ؤ يا ساحر ؤ يا شاعر ؤ يا كاهن ؤ، بلكې قريشو به محمد ﷺ امين مكة باله. دا جمله عطف ده پر تقوموا.

**الاعراب**: ان تقوموا په تأويل د مصدر يا مجرور محلاً دى بدل دى د واحدة څخه يا يې عطف بيان دى د واحدة يا مرفوع محلاً ده په حذف د هو چې مبتداء ده او يا منصوب محلاً ده په تقدير د اعني چې فعل او فاعل دي.

مَا بِصَاحِبِكُمْ مِّنْ جِنَّةٍ

نسته په صاحب كي ستاسي، يعني نفسه المباركة ﷺ هيڅ نوع د جنون، كلمه د من لپاره د استغراق د نفي دى.

**پوه سه**: چې دا جمله استيناف دى مسوق له جانبه څخه د خداى ﷻ لپاره د تنبيه پر فائده د فكر او د نظر او تأمل. حاصل ددې استيناف دادى چې داسي لويه دعوىٰ كول يعني الرسالة من الله چې تر دې دعوىٰ لاندې ملك الدنيا والآخرة ده يا به مجنون كوي چې هغه په رسوايي سره باك نه كوي چې څوك مطالبه د برهان ځني وكړي وظهور عجزه، او يا به يې هغه سړى كوي چې مؤيد من عندالله او په نبوت سره بنائسته وي او كه څوك دليل او برهان ځني وغواړي دى دادِه وي چې د فضيحة سره نه مخامخ كېږم، او كفارو ته د مكې دا معلومه وه چې انه ﷺ كما مر ارجح الناس عقلاً واصدقهم قولاً واذكاهم نفسًا وافضلهم علمًا واحسنهم اخلاقًا وعلمًا، او ټوله كمالات بشريه په ده كي موجود دي: ... ع:

آنچه خوبان همه دارند تو تنها دارى

نو بايد چې مكې وال يې تصديق د نبوت وكړي او سره د مذكوره حالاتو ظاهرونكى دى د معجزاتو باهراتو هم دى.

**نكته**: تعبير يې د عليه الصلوة والسلام په صاحب سره وكړى، ددې لپاره چې دده

مبارک حالات تر نورو خلکو تاسي مکې والو ته بنه معلوم دي، لانه نشا، بین اظهر کم کمامر سابقًا، او بل دلیل د صحت د دعوی د نبوت دادی چي دومره لویه دعوه چي څوک کوي یا به یې لپاره د جلب د نفع کوي، هغه په علیه الصلوة والسلام کي نسته، حیث یقول کریمه: ماسألتکم من اجر فهو لکم، او یا به یې دفع د ضرر کوي هغه خو هم په دې دعوه کي متصور نه دی. ولي چي په دې دعوی کي عداوت د قوم اهل مکه بلکې د ټوله عرب بلکې د ټولې دنیا والو موجود دی، نتیجه داده چي دعوی نفع یا دفع د ضرر في غیر هذه الدنیا متوقع ده، نو اصل غرض دده هغه ده.

## إِنْ هُوَ إِلَّا نَذِيرٌ لَّكُم بَيْنَ يَدَيْ عَذَابٍ شَدِيدٍ ﴿٤٦﴾

نه دی دی (ﷺ) مگر بیرونکی تاسي لره چي شرک مو مذهب گرځولی دی له حضور څخه د عذاب سخت، یعني که له شرک څخه بېزاره نه سئ او توحید ته غاړه نه کښېږدئ. چي مراد له عذاب شدید څخه عذاب دی په ورځ کي د قیامت چي ستاسي په مخ کي دی. له ابن عباس رضی الله عنه څخه روایت چي دا آیت چي نازل سو "وانذر عشیرتک الاقربین" نو علیه الصلوة والسلام سهار وختي د صفا و غره ته وختی نو یې نعره وکړه یا بني مهر یا بني عدي (الی غیر ذالک) و کوچني کوچني قبائیلو ته د قریشو حتی چي د ټولو قبائلو یو سړی یا دوه راغله چي سره جمع سوه، نو رسول الله ﷺ ورته وویل چي تاسي راته ووایاست چي که زه خبر درکړم چي د دې خوا څخه یو لښکر را روان دی چي ستاسي د غارت اراده لري یعني حمله وکړي، تاسي یې زما سره منئ، ټولو ورته وویل ما جربنا علیک الا صدقًا (موږ نه دی تجربه کړی پر تا باندي مگر رشتیا، یعني نو دا خبره ستا منو) نو علیه الصلوة والسلام ورته وویل فاني نذیر لکم من بین یدي عذاب شدید، فقال ابو لهب تبًا لک سائر الیوم (هلاک دي وي تا لره ټوله عمر) الهذا جمعتنا فانزل تبت یدا ابی لهب الی اخیر السورة. بخاري.

## قُلْ مَا سَأَلْتُكُم مِّنْ أَجْرٍ فَهُوَ لَكُمْ

هغه چي زه سوال وکړم له تاسي څخه د مزدوری (یعني پر تبلیغ د رسالت) په هغه کي ستاسي غرض دادی چي لا اسئلکم شیئًا، لکه یو سړی چي بل چاته ووایي "ان اعطیتني شیئًا فخذه، وانت تعلم انه لا یعطیک شیئًا" نو پر دې تقدیر کلمه د

ما شرطيه ده مفعول د سألتكم ده، وهذا التقدير مروي عن قتادةؒ، او بعض مفسرين وايي چي كلمه د ما موصوله ده او عائد يې محذوف دى او كلمه د من بيان د شي او فهو لكم خبر دى د ما موصوله، پر خبر يې فاء داخله كړه لتضمن كلمة ما للشرط والتقدير على هذا التقرير اى الذي (معنى د ما موصوله ده) سألتموه (دا ضمير عائد محذوف دى) فهو لكم اى ثمرته تعود اليكم، نو دا و هغه آيت ته اشاره ده لا اسئلكم عليه اجرًا الا المودة في القربٰى، نو د فهو لكم معنى داده چي قربٰى زما قربٰى ستاسي ده، قال ابن عباسؓ.

إِنْ أَجْرِيَ إِلَّا عَلَى اللَّهِ ۖ وَهُوَ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ شَهِيدٌ ﴿٤٧﴾

نه دى زما اجر او ثواب په تبليغ كي د رسالت مګر پر خداى ﷻ، يعني في غير هذه الدنيا وهو العقبٰى، او خداى ﷻ پر هر شي حاضر دى يعني عالم دى فيجازي كل واحد على اعتقاده وعمله، شيخ سعدي قدس سره السامي چه خوش گفته درباب اخذ الاجرة على التبليغ والتعليم:

زيان ميكند مرد تفسير دان ..... كه علم و ادب ميفروشد به نان

كجا عقل يا شرع فتوى دهد ..... كه اهل خـرد دين بـدنيا دهد

**سوال:** على خو كلمه د الزام ده او سره ددې پر خداى ﷻ شى واجب نشته؟

**ځواب:** معنى يې داده تفضلاً منه بناء على وعده بذلك، نو دا كلمه د الزام مثل ما ورد في الحديث المتفق عليه قال رسول اللهﷺ يا معاذ هل تدري ما حق الله على عباده وما حق العباد على الله (اى تفضلاً بناء على وعده) قلت الله ورسوله اعلم قال: حق الله على العباد (اى لزومًا واجبًا) ان يعبدوه ولا يشركوا به شيئًا وحق العباد على الله (اى تفضلاً) على ان لايعذب من لا يشرك به شيئًا.

**درويش وايي:** د اخير ددې حديث شرح وبيان طويل مذكور في شروح البخاري ومسلم.

قُلْ إِنَّ رَبِّي يَقْذِفُ بِالْحَقِّ عَلَّامُ الْغُيُوبِ ﴿٤٨﴾

**پوه سه:** چي قذف رمى دى من بعيد بنحو الحجارة او السهم نو استعارةٌ لمعنى الالقاء والباء للتعدية، والمراد بالحق الوحي اى يلقى الوحي وينزله على من اختاره من

عباده، اهل الله وايي چي اجتبأ د خداى ح ليس لعلة والاصطفاء ليس بحيلة، او يا مراد رمي دى اى يرمي بالحق على الباطل فيد مغه (د باطل سر ورمات كړئ) او يا معنى داده چي حق چي دين د اسلام دى و اطرافو ته د مځكي غورځوي يعني رسوي، نو پر دې تقدير دا آيت وعده ده چي اسلام به د ټولي نړۍ اقطارو ته ورسيږي، په حديث شريف كي چي روايت يې احمد رح كړى دى عن المقداد رض دى وايي چي ما واوريدل د رسول الله ﷺ څخه انه لايبقى على ظهر الارض بيت مدر (د خاورو كور) ولا وبر (نه د اوښ د وړيو) الا ادخله الله كلمة الاسلام الى اخير الحديث. وايي چي بيت مدر او وبر چي په حديث شريف كي راغله د عصر نبوي پر رواج چي بيوت اكثر يا د مدر وه يا د وبر وه، ورنه اسلام به داخليږي په بيوت كي هم چي په ګچو يا د اوسپني په ګاډرانو او يا په سيخ او كانګريټ الى غير ذالک جوړ سوي وي، كما هو المروج في الزمان الحاضر (۱۴۳۱) "علام الغيوب" دى ډېر زيات خبر دى په ډېرو غيبو شيانو يعني له مخلوق څخه.

**فائده:** علام كه په رفع سره وي كما في المصاحف المطبوعة، نو صفت دى د ربي چي اسم د انّ ؤ لكن حملاً على محله، يا بدل دى د يقذف د ضمير مستتر څخه چي راجع و ربي ته دى، يا خبر ثاني د ان دى او يا خبر د مبتداء محذوفي دى اى هو علام الغيوب، اهل تجربه علماء وايي چي علام الغيوب چي څوک ورد وګرځوي او په شبانه روز كي يې پنځه سوه (۵۰۰) واره وايي سره د يا نداء يعني يا علام الغيوب علمني، قوت ته حافظه به يې قوي سي او هېره به يې زائله سي. والله على كل شيئ قدير.

قُلْ جَاۤءَ الْحَقُّ وَمَا يُبْدِئُ الْبَاطِلُ وَمَا يُعِيْدُ ﴿۴۹﴾

ته ووايه يا محمد (ﷺ) چي راغلى حق يعني القرآن والاسلام والتوحيد، او نه به سي ښكاره باطل چي شرک يعني د باطل روح قبض سو.

**درويش وايي:** چي مراد عند اكثر المفسرين له عدم ظهور څخه د شرک او بېرته راګرځېدلو څخه د هغه په مكه معظمه كي دى كما يدل عليه الحديث المروي عن ابن مسعود رض چي رسول الله ﷺ داخل سو مكې ته يعني في عام فتحها، او پر شا وخوا د كعبې مباركې (۳۶۰) بتان موجود وه، نو د عليه الصلوة والسلام په لاس كي لكړه وه يعني يو لرګى ؤ، بت به يې په واهه و يقول: جاء الحق ومايبدئ الباطل وما يعيد، وجاء مثله في موضع آخر من القرآن قال عز من قائل: بل يقذف بالحق على الباطل

فيدمغه فاذا هو ازاهق، اى ذاهب، البغوي ؒ وايي چي كفارو د مكې و عليه الصلوة والسلام ته وويل: انك قد ضللت حتى تركت دين ابائك، فانزل الله ﷻ هذه الآية.

قُلْ إِن ضَلَلْتُ فَإِنَّمَآ أَضِلُّ عَلَىٰ نَفْسِى

ته ووايه يا محمد (ﷺ) دوى ته، يعني دغه دين چي عبارت له توحيد څخه دى چي ما خپل دين گرځولى دى كه گمراهي وي لكه تاسي چي واياست، يعني وبال ددې ضلال خو ماته راجع دى، نو زه به څرنگه پېرزوينه د وبال پر ځان كوم سره ددې چي لېونى نه يم او ماته يوه دنيايي نفع هم نسته پكښې.

وَإِنِ ٱهْتَدَيْتُ فَبِمَا يُوحِىٓ إِلَىَّ رَبِّىٓ ۚ إِنَّهُۥ سَمِيعٌ قَرِيبٌ ﴿٥٠﴾

او كه زه پر هدايت يم په دغه دين كي، نو دا هدايت له جانبه څخه د خداى ؒ بالوحي الي، ولي تاسي اهل مكه ته زه معلوم يم چي امي يم، نه په دې ښار كي د مكې ما له يو چا څخه يو شى ليكلى دى او نه مي قرائت پر يو چا ويلى دى، نو چي دا اهتداء په وحي الهي ده زما د ځان له خوا نه ده، نو پر تاسي اهل مكه دا واجبه ده چي زما متابعت به كوئ فتهتدوا كما اهتديت، والحاصل ان هذا استدلال على النبوة.

په تحقيق خداى ﷻ اوريدونكى دى د اقوالو د خلكو او نژدې دى خلكو ته (نه په مكان كي) بلكې په قدرت او علم پر هر ضال او مهتد كي كه څه هم ضال خپل ضلال پټ ساتي ... ابيات:

دوست نزديكتر زمن بمن است .... وين عجبتر كه مـن ازو دوام
چـه كنم با كه تـوان گفت كه او ..... دركنار من ومن ازو مهجورم
ع :.... نعره كمتر زن كه نزديكست يار

وهذه الآية اشارة الى احال اهل الشهود فانهم يراعون الادب في كل حال مع الرب ؒ. نو نعرې نه وهي كما لايصح القريب القريب.

وَلَوْ تَرَىٰٓ إِذْ فَزِعُوا۟ فَلَا فَوْتَ

"ولوترى" ايها المخاطب الصالح للخطاب "اذ فزعوا" يعني وقت فزع الكفار فقيل عند الموت، وقال قتادة ؒ عند البعث، وجواب لو محذوف يعني لرئيت امرًا فظيعًا "فلا فوت" يعني لهم يعني فلا يفوتون الله، يعني نه په تېښتنه او نه په وركره

د فديه د ځان د خوا چي ځان دي له عذابه په وساتي او نه په قلعه کي د حفاظت.

وَأُخِذُوا مِن مَّكَانٍ قَرِيبٍ ﴿٥١﴾

او دوی به ونیول سي لپاره د عذاب له نژدې ځایه څخه، قیل من ظهر الارض الی بطنها یعني القبر او من موقف الحساب الی النار.

وَقَالُوا آمَنَّا بِهِ

او وویل دوی چي موږ ایمان راوړی دی ای بمحمد ﷺ انه رسول الله.

**یوه سه:** چي دا اقرار د دوی هغه وخت دی چي سکرات الموت پر ده راسي او ملائکة الموت مع المسوح فیه نار، دوی ووینې او یا عند البعث من القبور اذا عاینوا العذاب. او یا چي دوږخ ته داخلیږي.

**تفریع:** بعض مفسرین چي په یوم البدر سره تفسیر کوي بعید دی. ولي چي په یوم البدر کي خو دوی امنا به نه وایه حتی چي د ابن مسعود رضی الله عنه څخه روایت دی چي زه په قتلی ؤ کي د بدر ګرځېدم پر ابو جهل پېښ سوم چي مړ نه ؤ، نو تر ږیري مي ونیوی او داسي مي ورته وویل الحمد لله الذي اخزاک یا عدو الله، ده راته وویل بما اخذ اني الله هل زاد علیّ رجل قتله قومه. یعني آمنا بمحمد ﷺ یې نه وویل بلې خپل کبر یې ښکاره کړی.

وَأَنَّىٰ لَهُمُ التَّنَاوُشُ مِن مَّكَانٍ بَعِيدٍ ﴿٥٢﴾

**یوه سه:** چي تناوش اخذ الشیئ من مکان قریب، والمعنی انی لهم ان یتحرکوا ویطلبوا الایمان والتوبة "من مکان بعید" د لېري ځای څخه، ولي چي تناول د ایمان او توبه په وخت کي د تکلیف بالایمان ؤ في الدنیا بالاختیار وقد بعد ذالک الوقت.

**یوه سه:** چي د دې ایمان او توبې د کافرانو مثال چي یو سړی چي یو شی چي دده څخه په مقدار د یوه زراع لېري وي نو دی خو هغه شی په اساني سره را اخستلای سي، اما چي هغه شی چي یو فرسخ مثلاً لېري وي، نو د هغه را خستل وده ته محال دی کذالک الکفار حین کانوا في الدنیا ودوی ته ایمان او توبه ډېره نژدې وه، اما چي دوی په سکرات کي سوه یا له قبرو څخه بعث سي بیا نو تناول د ایمان بمحمد (ﷺ) او توبه له شرک څخه ډېره لېري سوه، چي دوی ته یې تناول ممکن نه دی.

وَّقَدْ كَفَرُوْا بِهٖ مِنْ قَبْلُ

او حال دا دی چي دوی کړی وُ کفر دمخه تر دې.

**پوه سه:** چي د (به) ضمیر یا راجع دی خدای ج ته چي د هغه دمخه تېر سو څو واره، علام الغیوب سمیع قریب الا علی الله ان ربي یا محمد ﷺ ته راجع دی، چي ذکر یې په دې قول کي تېر سو ما بصاحبکم او یا و قرآن ته المذکور بقوله جاء الحق او یا وعذاب المفهوم من قوله واخذوا.

**پوه سه:** چي وقد کفروا حال دی له فاعل څخه د قالوا او د من قبل معنی داده قبل ذالک الوقت یعني في اوان التکلیف.

وَيَقْذِفُوْنَ بِالْغَيْبِ مِنْ مَّكَانٍۭ بَعِيْدٍ ۝

او دوی ویشتل کوي له لېري ځای څخه. مجاهد رح وایي چي دوی ویشتی محمد ﷺ په داسي شي سره چي دوی علم نه پر درلودی، یقولون، مفتر، شاعر، کاهن، مجنون، ساحر، کذاب وهذا تکلم بالغیب، او قتاده رح وایي چي په حال کي د اخرت دوی ویشتل کول په غیب سره بمجرد الظن الباطل حیث یقولون لابعث بعد الموت ولاحساب ولاجنة ولا نارًا.

**پوه سه:** چي دا آیت تمثیل دی د دوی د حال په حال سره د هغه چا چي دی ښکار کوي او غشی ولي و داسي شي ته چي ویني یې نه له ډېره ځایه څخه چي هیڅ امکان د رسېدو د غشي و هغه صید ته نه وي.

**فائده:** ویقذفون. عطف دی علی قوله وقد کفروا به.

**سوال:** [illegible] خو مضارع ده او قد کفروا خو ماضي ده فکیف حال العطف؟

**ځواب:** یقذفون حکایت د حال ماضیه دی یعني یقذفون که څه هم په معنی کي د ماضي ده لکن چونکه دا یو حال عجیب وُ، نو یې حاضر فرض کړی، تعبیر یې په مضارع په معنی د حال ښني وکړی، وبیانه مفصلاً في کتب النحو، چي د ایمان وخت چي دنیا وه پر تا تېره سوه کافر اوس ایمان غواړي احمق.

این خیال است و محال است و جنون

## وَحِيلَ بَيْنَهُمْ وَبَيْنَ مَا يَشْتَهُونَ

**پوه سه:** چي حيل فعل مجهول دی نحو قيل او مفعول مالم يسم فاعله يې بينهم دی چي ظرف دی.

**سوال:** مفعول مالم يسم فاعله خو مرفوع وي، او بينهم خو منصوب دی؟

**ځواب:** هو! لکن چونکه د بين غالب استعمال په ظرفيت کي دی چي نصب غواړي، دلته که څه هم فاعل د فعل مجهول دی چي بايد مرفوع وای، لکن دی يې پر خپل غالب حال چي نصب دی پرېښو، او بعض نحات وايي چي حيل مسند و خپل مصدر ته دی ای وقع الحيلولة.

**درويش وايي:** چي دا دواړه احتماله په هغه محاوره کي جاري دي وقد حيل بين العير والنزوان.

**ترجمة الآية:** حائل او واقع کړل سو په منځ کي د کافرانو او د هغه شي چي ددوی اشتهاء ورته کېږي يعني ايمان د تني ورځي به موږ ته فائده وکړي او يا نجات له اوره څخه به پيدا کړو يا به مو خدای ج دنيا ته بيرته واستوي موږ به ايمان راوړو، يأکل مايشتهيه الطبع من الماکولات والمشروبات وغيرها التي کانت ميسرة لهم في الدنيا.

## كَمَا فُعِلَ بِأَشْيَاعِهِمْ مِنْ قَبْلُ ۚ إِنَّهُمْ كَانُوا فِي شَكٍّ مُرِيبٍ ﴿٥٤﴾

لکه چي داغسي فعل کړل سوی وُ په اشباهو سره ددوی يعني کفار الامم الماضية دمخه تر کفارو د مکې، چي هغه هم په شک کي وه د بعث بعد الموت بلکې منکر وه. يا له نزول څخه د عذاب په شک کي وه لکه کفار مکه ''مريب'' چي دوی يې په تردد کي واقع کړي وه.

**درويش وايي:** چي الحمدلله والمنة والتوفيق والصلوة والسلام عليه الصلوة والسلام خير البرية وآله وصحبه البررة چي تفسير د سورة سبا پر نهه بجې د دوشنبې د ورځي اته ويشت د شهر شعبان سنه (۱۴۳۱) هجري قمري وپای ته ورسېدی. وروسته به تفسير د سورة الملائکة شروع سي ان شاء الله العزيز.

سورة فاطر مكية وهي خمس واربعون آية وخمس ركوعات بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

سورة الملائكة، روح المعاني په اصل نوم سورة فاطر ياد كړې دی او سورة الملائكة يې وروسته ذكر كړې دی، او دا سورة ټوله مكي دی كما روی عن ابن عباس وقتادة وغيرهما ﷺ، او ټوله مفسرين وايي چي آيتونه يې پنځه څلوښت دي او روح البيان وايي چي بعض قراء يې آيتونه شپږ څلوښت بولي.

اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ فَاطِرِ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ

ټوله ثناء او صفت خاص خدای ﷻ لره دی (نو الف لام لپاره د استغراق دی كما هو مذهب اهل السنة) او يا جنس ثناء و صفت خدای ج لره دی كما هو مذهب المعتزلة.

**درويش وايي**: قال في المطول ومآلهما واحد چي دی خالق د اسمانو او مځكي دی بېله مثال سابق.

**بوه سه**: چي فاطر صفت د الله تعالى دی.

**سوال**: د فاطر اضافت خو معمول ته لفظي ده يعني تعريف نه فائده كوي كما تقرر في النحو نو دی خو نكره دی، نو څرنګه صفت د الله واقع كېدای سي چي معرفة دی؟

**ځواب**: اضافت د صفاتو و معمول ته هلته لفظي دی چي صفت په معنى د حال يا استقبال وي كما تقرر في النحو دلته خو فاطر په معنى د ماضي دی نو اضافت يې معنوي دی وهي يفيد التعريف كما في كتب النحو او څوك چي دا اضافت لفظي بولي جعل فاطر بدلاً عن الاسم الجليل، وفي روح البيان وهو قليل في المشتق.

جَاعِلِ الْمَلٰٓئِكَةِ رُسُلًا

ګرځونكی دی خدای ﷻ ملكو لره رسولان يعني وسائط بين الله وانبيائه والصالحين من عباده چي بندګانو ته رسالات د خدای ج رسوي يعني يا په ذريعه د وحي كما للانبياء او الالهام او الرؤياء الصالحة كما للصالحين من عباده، او يا معنى داده چي دوی رسوي اثار د صنع د خدای ﷻ كالامطار و الثلوج والرياح وغيرها من امور العالم وهم الملائكة الموكلون بامور العالم.

**فائده**: اضافت د "جاعل" و ملکو ته لفظيه دی يعني اضافت د صفت و معمول ته ولي چي جاعلاً عمل کړی دی په رسلاً کي نصب يې ورکړی دی وقد تقرر في النحو چي اعمال د جاعلاً په مفعول ثاني کي چي رسلاً دی نه دی روا بېله اعمال په مفعول اول کي چي الملائکة دی. نو جاعل دلته په معنی د حال دی يا د استقبال دی الی محمد ﷺ في الحال والی خواص امته في الاستقبال کما عرفت من معنی الرسالة بحيث يشمل الرؤياء الصالحة والالهامات، نو پر دې تقدير چي دا اضافت لفظيه سي مفيد د تعريف نه سي. نو جاعل صفت د الله نه دی بلکې بدل يې دی، روح البيان وايي چي مراد له ملکو څخه جبرئيل او ميکائيل او اسرافيل او عزرائيل والحفظة الکرام الکاتبين ونحوهم. بعض مفسرين وايي چي اسرافيل هيڅ نبي ته راغلی بېله محمد ﷺ، او په انسان العيون کي وايي چي اسرافيل و عليه الصلوة والسلام ته شپږ مياشتي د مخه تر نبوت دده راتلی چي عليه الصلوة والسلام به يې اواز اورېدی او شخص دده به يې نه ليدی.

أُولِىٓ أَجۡنِحَةٍ مَّثۡنَىٰ وَثُلَٰثَ وَرُبَٰعَۚ

چي خاوندا کي دغه ملائکه د وزرو.

**فائده**: اولی جمع د ذو ده خلاف اللفظ، او اولی اجنحة بدل دی له الملائکة څخه په قول د مظهري، او روح البيان وايي صفت دی د رسلاً.

**فائده**: تر الف وروسته يې واو ليکلی دی په حال کي د نصب او جر تاچي التباس په الی حرف جر سره رانه سي، او په حال کي د رفع يې هم په واو سره وليکی حملاً عليهما، روح البيان "مثنٰی" لفظ يې مفرد دی او معنی يې مکرره ده ای اثنين اثنين "وثلث ورباع" درې درې او څلور څلور، قتاده او مقاتل رح وايي چي معنی يې داده چي بعض ملکي دوه وزرونه لري او بعض درې او بعض څلور.

**فائده**: دا مثنٰی وثلث ورباع لپاره د حصر نه دي يعني چي وزرونه د ملکو په دغو درو کي حصر دي ولدفع توهم الحصر. قال الله تعالی:

يَزِيدُ فِى ٱلۡخَلۡقِ مَا يَشَآءُۚ

خدای ﷻ زياتوي په خلق د وزرو د ملکو هغه قدر چي د خدای ﷻ ورته مشيت او اراده سي.

**پوه سه:** چي مثنٰى وثلٰث وربٰع په محل کي د جر دي صفات دي د اجنحة ؤ.

**پوه سه:** چي يزيد في الخلق آه پوازي په زيادت د وزرو د ملکو خاص نه دی بلکې و زيادت ته د نور مخلوق هم شامل دی، روی مسلم في الصحيح عن ابن مسعود رض في تفسير قوله تعالى لقد رئى من آيات ربه الکبرٰی چي د معراج په قصه کي راغلی دی قال رئى (يعني رسول اللهﷺ) جبرئيل في صورة له ستمائة جناح ينتشر من ريشه الدر والياقوت.

**پوه سه:** چي جمله د يزيد في الخلق آه جمله مستانفه ده او ردت لپاره د دلالت پر دې چي دا تفاوت د ملکو په وزرو کي يا نور زيادات په خلق کي دا صرف او صرف په مشيت پوري د خدای ﷻ مربوط دی لحکمة لا امر يستند عنه ذواتهم.

**فائده:** پوه سه! چي دا آيت شامل دی زياداتو لره د صور او معاني کملاحة الوجه وحسن الصوت وسماحة النفس وزيادة العقل والفهم وغير ذالک، او هغه چي بعض مفسرين لکه ابن شهاب چي وايي چي مراد ددوی زيادة الخلق حسن الصوت دی، يا قتادة رح وايي چي ملاحة د سترګو مراد دی، او بعض وايي زيادت د عقل او فهم مراد دی کل ذالک عن سبيل التمثيل لا على سبيل الحصر والتعيين کذا في روح المعاني و روح البيان وقد اورد في ذالک بيانًا طويلاً والمظهري وغير ذالک فافهم.

إِنَّ اللَّهَ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ ①

په تحقيق خدای ج پر هر شي قادر دی هذه الآية بمنزلة الدليل على الاستيناف المذکور کما لايخفٰى.

مَا يَفْتَحِ اللَّهُ لِلنَّاسِ مِن رَّحْمَةٍ

هغه چي ورکړی دی خدای ج و خلګو ته "من رحمة" ای نعمة دينية کالايمان والعلم والنبوة وتوفيق الحسنات او دنيوية کالمطر والرزق والامن والصحة والجاه والجلال والمال والولد.

**درويش وايي:** چي تولـه مفسرين پر دې متفق دي چي په دې کي مجاز دی، ولي چي اصل معنی د فتح خلاصول دي د مغلق شي لکه يو مرغه چي په قفس کي

بندي وي پند يعني دروازه ورخلاصه کړل سي نو مرغه و خپل سر ته ايله سي والاطلاق کناية عن الاعطاء کما قيل اطلق السلطان الجند ارزاقهم (ورکړې باچاه و لښکريانو ته تنخاوي ددوی) فالفتح مجاز عن الارسال بعلاقة السببية، فان فتح المغلق سبب لاطلاق مافيه وارساله. حاصل د کلام دادی چي دا ارزاق د عبادو ګويا بند وه په قفس کي د مشيت د خدای او خدای دروازه ورخلاصه کړه حتی چي بندګانو ته ورسېدی وهذا هو معنی الاعطاء فافهم.

فَلَا مُمْسِكَ لَهَا ۖ وَمَا يُمْسِكْ فَلَا مُرْسِلَ لَهُ مِنْ بَعْدِهِ ۚ

نو منع کونکی نسته د هغه نعمت چي له چا څخه يې بند کړي او يمنع من اعطائها او هغه رحمت چي منع کي خدای له چا څخه د هغه رحمت او نعمت اله کونکی نسته.

**سوال:** په اول کې ضمير مؤنث راوړی يعني لها، او وروسته يې ضمير مذکر راوړی يعني له حکمت يې څه دی؟

**ځواب:** د موصول اول يعني ما بفتح الله بيان خدای ﷻ په رحمت سره وکړی، نو يې مراعات د لفظ د رحمت په ضمير مؤنث راوړی، او دوهم موصول يعني مايمسک عام دی رحمت او غضب دواړو ته شامل دی په مراعات د لفظ ما ضمير مذکر يې راوړی فافهم.

**درويش وايي:** چي په دې آيت کي فتح تر امساک دمخه راوړه اشاره د هغه حديث قدسي ته ده ان رحمتي سبقت غضبي او کما قال فتدبر "من بعده" ای من بعد امساکه تعالی.

وَهُوَ الْعَزِيزُ الْحَكِيمُ ۝

او خدای غالب دی پر ما يشاء چي څوک مانع د مشيت دده نسي کرځېدای "الحکيم" چي د حکمت او فائدې له دائرې څخه وتلي عبث کارونه نه کوي، بخاري او مسلم له مغيره بن شعبة څخه روايت کړی دی چي رسول الله ﷺ به وروسته تر لمانځه دا ورد وايه: لاَ اله الا الله وحده لاشريک له، له الملک وله الحمد. وهو علی کل شيئ قدير. لامانع لما اعطيت ولا معطي لما ملعت ولا ينفع ذا الجد منک الجد (او فائده نه کوي خاوند ته د غنٰی ستا له عذابه څخه غنٰی دده)

**درویش وایي:** چي ابن المنذر له عامر بن عبد قیس رضي الله عنه څخه روایت کړی دی چي څلور آیاته د کتاب چي زه ووایم زه باک نه کوم ما اصبح علي وامسیٰ، هغه دغه آیتونه دي (۱) مایفتح الله للناس من رحمة فلاممسک لها و ما یمسک فلا مرسل له من بعده (کمامر آنفًا) (۲) وان یمسسک الله بضر فلا کاشف له الا هو وان یروک بخیر فلا راد لفضله (ترجمه یې ظاهره ده) (۳) وسیجعل الله بعد عسر یسرًا (۴) وما من دابة في الارض الا علی الله رزقها، روح المعاني وایي وبعد مابین الله سبحانه انه الموجد للملک والملکوت (ای العالم السفلي والعالم العلوي) والمتصرف فیهما علی الاطلاق (یعني بېله شریکه) امر الناس قاطبة (ټوله) او یا اهل مکه کما روی عن ابن عباس رضي الله عنه واختاره الطیبي بشکر نعمه ﷻ انتهی.

**درویش وایي:** چي ورته شان نزول مظهري او روح البیان هم بیان کړی دی فقال:

## یَآیُّهَا النَّاسُ اذْكُرُوا نِعْمَتَ اللّٰهِ عَلَیْكُمْ ط

ای ټولو خلکو یا ای اهل مکه تاسي یې یاد کړئ نعمت د خدای ﷻ (مراد له ذکر څخه د نعمت شکر د نعمت یعني چونکه نعمت صرف او خاص زما د خوا دی بېله شراکته د چا نو تاسي باید خاص زما شکر ووایاست چي اشاره و توحید ته ده او کفران زما د نعمت ونه کړئ چي زما سره په معبودیت کي بل څوک شریک کړئ).

**پوه سه:** چي نعمت خاصه د اهل مکه اوسېدل ددوی دي په حرم کي ومنع الغارات منهم او نعم عامه د خدای ﷻ دي جعل الارض کمهد (لکه زانګو د طفل) ورفع السماء بلا عمد (بېله میلانو) وخلقکم وزاد في الخلق مایشاء وفتح ابواب الرزق ولا ممسک له په راتلونکي آیت کي خدای ﷻ له دې څخه کوي چي بل چا لره دي زما په صنع کي مدخل وي حتی یستحق الاشراک به.

**درویش وایي:** چي له معاذ رضي الله عنه څخه مرفوع و علیه الصلوة والسلام ته روایت راغلی دی چي علیه الصلوة والسلام وویل: لایزال (همېشه) ید الله مبسوطة علی هذه الامة (بسط الید کنایه ده د رزق کثیر څخه) مالم یرفق خیارهم بشرارهم (چي نرمي او غوړه مالي نه کوي خیارهم ددې امت د بدو خلګو ددې امت یعني ګناه کاران ددې امت) ویعظم برهم فاجرهم (او تعظیم نه کوي ښه ددې امت د فاجر د امت) ویعن قرائهم امرائهم علی معصیة الله (مرسته نه کوي قراء یعني علماء د

امت د امراء د امت پر معصیت د خدای ج) فاذا فعلوا ذالک نزع الله يده عنهم (چې دوی دغه مذکوره کارونه وکړي خدای ج خپل لاس ځني کش کړي.

**بوه سه:** چې نزع الید کنایه ده له تنګي څخه د رزق انتهی.

**حکایت:** له شیخ ابو یعقوب رح څخه روایت دی چې زه یو وخت په حرم محترم کې وم او ډېر ورځې سوم چې لس ورځې مې د خورک هیڅ شی نه ؤ خوړلی، نو په بدن کې مې ضعف محسوس کړی، نو نفس مې راته وویل چې ته یوې شېلې ته د مکې ووځه شاید چې یو خوارکي شی به پیدا کړې، نو ووتم په شېله کې یو شلغم چا غورځولی ؤ هغه مې راواخستی، څرنګه چې ما یې په خورک شروع کول یو سړی راغلی ماته کښېنستی او دسترخوان یې پېچلی زما و مخ ته کښېښېنو وقال هذه لک، ما ورته وویل چې څرنګه دې زما تخصیص وکړی؟ ده راته وویل چې موږ (یعنې په کښتۍ کې سپاره خلک) د لسو ورځو رایسته په دریاب کې ؤ حتی چې کښتۍ د غرق په حالت کې سوه، نو هر چا د کښتۍ د سوا ریانو پر ځان نذر کښېښېنو چې که موږ سالم له کښتۍ څخه ووتلو زه به فلانی شی خیراتوم، نو ما پر ځان دا نذر وکړی ان خلصني الله عن الغرق زه به دغه شی (اشاره یې و سترخوان ته وکړ) خیراتوم پر اول سړي چې سترګې مې پر ولګېږي د مجاورینو څخه د حرم، نو دادی پر تا مې اولاً سترګې ولګېدې. ما ورته وویل چې ته دسترخوان خلاص کړه، ده چې سترخوان خلاص کړی په سترخوان کې غوړه ډوډۍ وه او بادام وه د پوسته را ایستلي او د جوز مغزونه او کوره وه، نو شیخ یعقوب رح وایي چې ما یو مټ د هر شي واخستی هغه سړي ته مې وویل رد بالباقي الی صبیانک هدیة مني الیهم، شیخ قدس سره وایي چې ما باره پر خپل ځان منت وکړی چې رزق په تا پسې را راوان ؤ د لسو ورځو رایسته تا یې په شېله کې طلب کاوه، صائب چې یو نامورې شاعر دی وایي:

صائب فریب نعمت الوان نمی خوریم .... روزئ خود زخوان کرم میخوریم ما
کشاده عقدهٔ روزی بدست تقدیر است .... مکن ز رزق شکایت ازین وآن زنهار
ومن یتوکل علی الله فهو حسبه:
آنان که زره وار بصورت محقر اند .... فرد از خیال وناز بفردوس ننگرند

هَلْ مِنْ خَالِقٍ غَيْرُ اللّٰهِ يَرْزُقُكُمْ مِّنَ السَّمَآءِ وَالْاَرْضِ ۭ

آيا سته يو خالق غير د الله ؓ څخه چي تاسي ته دي رزق درکړي له اسمان څخه په اوربښت سره يا د ځمکي په نباتاتو سره، والاستفهام للانکاريعني نسته خالق غير الله.

**پوه سه:** چي من اول زائد دى، ولي استفهام لپاره د انکار دی په معنی د نفي او وروسته تر نفي من زائد راځي لپاره د استغراق د نفي کما هو القانون النحوي.

**فائده:** حمزه او کسائي رحمهما الله لفظ د غير په جر سره وايي نظرًا الی لفظ خالق لانه مجرور لفظًا، او نور قراء يې په رفع سره وايي حملاً علی محل خالق، ولي چي خالق مبتداء مرفوع محلاً او غير الله يې خبر دی، او يا خالق مبتداء ده محذوف الخبر، تقديره هل لكم (هذا هو الخبر المحذوف) من خالق غير الله، او پر دې تقدير غير الله صفت د خالق دی.

**سوال:** غير الله خو مضاف دی و معرفې ته او خالق خو نکره دی فكيف يصح التوصيف؟

**ځواب:** نحات وايي چي لفظ د غير متوغل في الابهام په اضافت و معرفې ته نه معرفه کيږي حتی يصح هذا التركيب هل جائك رجل غير زيد، او جمله د يرزقكم آه كلام ابتداء دی لامحل له من الاعراب روح المعاني، او مظهري دا احتمال راوړی دی چي د يرزقكم جمله په محل کي د جر ده حملاً علی اللفظ يا په محل کي د رفع حملاً علی المعنی صفت د خالق وي آه، روح المعاني هغه په ډېر بسط سره رد کړې ده فارجع الی هذين التفسيرين مع التدبر الخالي من التعصب.

لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ ۖ فَاَنّٰی تُؤْفَكُوْنَ ۝

نسته معبود بالحق بيله ده. نو له دې سببه ايها المشركون تاسي مصرف له توحيد څخه د معبود بالحق الی المعبودات بالباطلة او سره ددې چي تاسي په دې سره اقرار کوئ چي خالق د سمٰوات والارض بلکې د انس او جن وغيرهم او رازق د تولو هم دی دی وبس.

وَإِن يُكَذِّبُوكَ فَقَدْ كُذِّبَتْ رُسُلٌ مِّن قَبْلِكَ

كه كفار مكه ستا تكذيب كوي په دعوه كي د توحيد د معبود او بعث بعد الموت او ثواب و عقاب، په تحقيق سره تكذيب كړل سوی دی د ډېرو رسولانو د خپلو قومو له خوا ترتا دمخه.

**پوه سه:** چي ان شرطي دی او اصل جزاء يې محذوف ده يعني فلا تحزن ته غم مه كوه لان البلية اذا عمت هانت، پښتانه وايي: د عالم سره غم نه غم، او يا يې جزاء داده فتاس (ته اقتداء وكړه بمن كان قبلك چي هغه هم د تكذيب د قوم سره دست گرېوان وه پر ځای د جزاء دا قول دی (فقد كذبت آه) دا اقامت سبب دی په ځای كي د مسبب.

**فائده:** رسل چي يې نكره راوړی يو لپاره د تكثير يعني رسل ذو عدد كثير او بل لپاره د تعظيم يعني رسل اصحاب معجزات باهرات او ذو اعمار طوال او يا اولی العزم رسولان وه، د دې دواړو فائده زيادت تسلي د عليه الصلوة والسلام وه او باعثه كول دده پر صبر كما صبروا.

وَإِلَى اللَّهِ تُرْجَعُ الْأُمُورُ ﴿٤﴾

**پوه سه:** چي تقديم د او مجرور لپاره د حصر دی يعني لا الی غيره او ترجع مشتق د رجع په معنی د رد چي متعدي دی لا من الرجوع چي لازمي دی والا لا يصح صيغة المجهول منه كما لا يخفی، حاصل د آيت دا دی چي تا ته به خدای ج پر صبر ثواب په آخرت كي دركړي او نصرت پر اعداء په دنيا كي او كفارو ته به خدای ج په دې دنيا كي عذاب د قتل او نهب الاموال او استرقاق النساء والذريات په دنيا كي يا اعطاء الجزية عن يد وهم صاغرون كما هو شان اهل الذمة، او په اخرت كي به عذاب النار وركړي.

**پوه سه:** چي بعض قراء ترجع پر صيغه د معلوم وايي يعني بفتح التاء وكسر الجيم نو پر دې تقدير مشتق د رجوع څخه دی چي لازمي دی.

يَا أَيُّهَا النَّاسُ إِنَّ وَعْدَ اللَّهِ حَقٌّ فَلَا تَغُرَّنَّكُمُ الْحَيَاةُ الدُّنْيَا

ای خلكو په تحقيق سره وعده ده بالبعث بعد الموت والجزاء "حق" يعني ثابت ده لا محالة، نو تاسي دې نه خطا باسي ژوند د دنيا يعني شغل په لذائذو او په زخاف كي د دنيا له طلب څخه د آخرت، والسعي لها.

وَلَا يَغُرَّنَّكُم بِاللَّهِ الْغَرُورُ ۝

چي تاسي ته مهلت درکړي او حلم کوي د تاسي په تعجيل سره عذاب تاسي ته درنه کړي ''الغرور'' يعني الشيطان چي تاسي ته وايي چي نه بعث بعد الموت سته او نه عذاب، ويقول لکم ان هي ال الحيوات الدنيا، او يا مسلمانانو ته تمنٰی د مغفرت مع المعاصي په زړو کي وراچوي، ولي دا که څه هم احتمال خو لري، ولي چي مرتکب د کبيره ګناه که څه هم بې توبې مړ سي مغفرت يې محتمل او ممکن دی لکن پر دې احتمال تکيه کول د دې سره مشابهت لري چي يو سړی زهر قاتل خوري پر دې احتمال چي ترياق (چي د زهر دواده) پيدا سي.

إِنَّ الشَّيْطَانَ لَكُمْ عَدُوٌّ فَاتَّخِذُوهُ عَدُوًّا ۚ

په تحقيق شيطان ستاسي دښمن دی د لوی نيکه له وخته څخه (يعني آدم ؑ او عداوت يې عام دی او قديم دی حيث قال فبعزتک لاغوينهم اجمعين) تاسي هم دښمن و بولئ دی يعني يقين پر عداوت دده وکړئ او د قبول د وسوسو دده پر حذر اوسه: از بزرگی پرسيدند که چگونه شيطان دشمن گيريم؟ گفت از پی ارزو رويد وتابع هوای نفس مشويد، وهرچه کنيد بايد موافق شرع شريف باشد و مخالف صبح باشد آه فلايکفی العداوة باللسان فقط بل يجب ان يکون بالقلب والجوارح مثل الصلوات الخمس جميعًا، علماء رح وايي لايقوی المرء عليه ای علی الشيطان الا بعداوة الذکر، وتلاوت القرآن والاستعاذه بالله العظيم من اعوذ بالله العظيم من الشيطان الرجيم. د مثال په توګه که پر سړي د شپانه سپی حمله وکړي، دفع يې ډېره مشکله ده مګر په دې سره چي شپانه ته ورناري کړې چي سپی راڅخه ګوره. هغه يې صرف په يوه رغ يعني چيغه دفع کولای سي، او بل سبب د دفع د شيطان دادی چي د سړي په زړه کي چي شرع خلاف وسوسه پيدا سوه د خدای ج وطاعت ته رجوع علی رغم انف الشيطان وبالله التوفيق.

إِنَّمَا يَدْعُو حِزْبَهُ لِيَكُونُوا مِنْ أَصْحَابِ السَّعِيرِ ۝

شيطان خامخا بولي خپله ډله يعني د انسانانو څخه د معاصيو ته او اتباع ته هوا او خواهشاتو نفسانيه ؤ، تاچي وګرځي اتباع دده ملازمين د اور، دادی

خدای پاک حال د موافقینو د شیطان بیانوي (حرف جر متعلق دی په یدعوا پوري د اثبات د عداوت دده)

الَّذِينَ كَفَرُوا لَهُمْ عَذَابٌ شَدِيدٌ ۖ

هغه کسان چي کفر وکړي یعني په خدای ﷻ شریک یعني باثبات الشریک له بمتابعة الشیطان، دوی لره دی عذاب سخت یعني بالنار، اوس خدای پاک حال د مخالفینو د شیطان بیانوي په راتلونکي آیت سره.

**درویش وایي:** چي په دې عنایت سره د دې آیت د ماقبل سره ربط پیدا سو.

وَالَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ لَهُم مَّغْفِرَةٌ وَأَجْرٌ كَبِيرٌ ۝٧

او هغه کسان چي ایمان یې راوړی وي پر خدای ﷻ یعني بتوحیده او عمل د خصلاتو صالحاتو هم کوي یعني وخالفوا الشیطان في الشرک والمعاصي، دوی لره بخښنه یعني د بعض ګنهو که له دوی څخه سرزرد سوی وي او مزدوري یعني ثواب دی لوی.

أَفَمَن زُيِّنَ لَهُ سُوءُ عَمَلِهِ فَرَآهُ حَسَنًا ۖ

آیا هغه څوک چي ده ته بنائسته کړل سوی وي، والمزین هو الشیطان بدعمل دده نو دده په زړو کي عمل بد ښه ایسي یعني دی وایي چي زه ښه عمل کوم.

**بوه سه:** چي "فرآه" عطف دی پر زین، د هغه تقریر او اثبات دی یعني خدای ﷻ ښویولي وي او عقل یې مغلوب وي او هوٰی نفساني یې غالبه وي، او د شیطان وسوسه ورسره ملګرې وي، نو امر سیئ حسن ورته ښکارېږي او باطل حق ورته برېښي کمن هداه الله الی الحق ولم یجد الشیطان الیه سبیلاً حتی عرف الحق من الباطل والحسن من الاعمال من قبیحها.

**فائده:** جواب د استفهام في القرآن محذوف دی وهو ما ذکرنا ای کمن هداه الله فحذف الجواب لدلالة قوله تعالی.

فَإِنَّ اللَّهَ يُضِلُّ مَن يَشَاءُ وَيَهْدِي مَن يَشَاءُ ۖ

په تحقیق خدای ﷻ ګمراه کوي هغه څوک چي اراده یې ورته وسي او هدایت ورکوي هغه چاته چي اراده یې وسي.

**پوه سه:** چي همزه په افمن زين كي لپاره د انكار دى او فاء لپاره د عطف ده پر مقدر باندي، تقديره اتطمع ان تهتدى كل رجل. نو گمراه د خداى د مهدي د خداى سره برابر وي لاتطمع ذالك فان الله يضل من يشاء ويهدي من يشاء.

فَلَا تَذْهَبْ نَفْسُكَ عَلَيْهِمْ حَسَرٰتٍ

"تذهب نفسک" يعني لاتهلک نفسک "عليهم" اى على ضلالهم "حسرات" مفعول له دى او منصوب على العلية دى اى للحسرات على غيهم وضلالهم.

**پوه سه:** چي حسرت شدة الحزن دى على مافات يعني سخت غم دى پر هغه چي دلاسه يې ووځي لکه د سړي زوى چي مړ سي.

**فائده:** حسرات يې په صيغه د جمع راوړه لپاره د دلالت چي پر رسول كريم ﷺ ډېر غمونه کوته وه په سبب د احوال د قوم چي دوى به ايمان نه راوړى او ورځ په ورځ به يې بد عملونه ډېرېدله. بغوي رح وايي قال ابن عباس رض چي دا آيت په شان كي د ابو جهل او د مشركانو د مكې نازل سوى دى، او په يوه بل روايت كي د ابن عباس رض داسي راغلي دي چي عليه الصلوة والسلام چي خداى ج ته خواست وكړى چي خدايه ته عزت و دين ته خپل وركړې په ابو جهل بن هشام يا په عمر بن الخطاب. فهدى الله عزوجل عمر رض واضل اباجهل يعني پر ضلال يې پرېښو ففيهما نزلت هذه الآية يعني فان الله يضل من يشاء آه. او سعيد بن جبير رح وايي چي دا آيت په اهل الاهواء او البدع كي نازل سوى دى لكه معتزله، شيعه، خوارج، روافض وغيرهم من فرق الضلال انتهى.

**درويش وايي:** چي دا شان نزول ضعيف دى ولي چي اهل الاهواء والبدع كما ذكرنا په وخت د نزول د قرآن نه وي موجودي.

اِنَّ اللّٰهَ عَلِيْمٌۢ بِمَا يَصْنَعُوْنَ ﴿۸﴾

په تحقيق خداى ج خبر دى په مايصنعون يعني په عملو د قريشو د مكې نو خداى ج به هر چا ته جزاء د خپل عمل وركړي.

وَاللّٰهُ الَّذِيْٓ اَرْسَلَ الرِّيٰحَ فَتُثِيْرُ سَحَابًا

عطف دى على ان وعد الله حق. والمعنى وعد الله بالبعث حق وهذه الآية الى

اخيرها كما سيأتي دليل دى حقيقة البعث، او خداى ﷻ هغه ذات مقتدر دى چي را استولي يې دي باد ونه يعني پيدا كړي يې دي.

**پوه سه:** چي لفظ الله مبتداء ده الذي سره د صله يې خبر دى.

**فائده:** رياح جمع د ريح ده، ريح ځلور قسمه دى، جنوبي مقابل يې شمالي او شرقي چي دې دړو ته رياح الرحمة وايي چي اوربنت په دوى پورې مربوط دى. واما الدبور چي مقابل د شرقي دى چي په پښتو يې د كښې باد بولي فريح العذاب كما ورد في الحديث الصحيح نصرت بالصباح واهلكت عاد بالدبور "فتثير سحابًا" راپورته كوي وريځ.

**سوال:** ارسل ماضي صيغه وه، نو څرنګه مضارع چي فتثير پر عطف كړه؟

**ځواب:** علماء وايي چي د استحضار د حالت ماضيه عجيبه دى والمراد يهجه ونشره لانزال المطر.

## فَسُقْنَٰهُ إِلَىٰ بَلَدٍ مَّيِّتٍ فَأَحْيَيْنَا بِهِ ٱلْأَرْضَ بَعْدَ مَوْتِهَا

نو دا وريځ موږ روانه كړو فيه التفات من الغيبة الى التكلم و يو وطن ته (له بلد څخه متعارفه معنى ده چي مقابل د قريه مراد نه ده)

**پوه سه:** چي موت د مځكي دادى چي نباتات نه وي باندې "فاحيينا به الارض" نو ژوندى كړو موږ په باران سره مځكه.

**سوال:** د مطر ذكر خو دمخه نه دى راغلى، نو څرنګه يې د به ضمير ورته راجع كړى؟

**ځواب:** ذكر سحاب لكه د مطر دى لان المقصود من السحاب المطر دى، او يا ضمير راجع دى و سحاب ته لانه سبب سبب الاحياء وهو المطر، نو موږ ژوندى كړو په هغه مطر سره مځكه يعني سر سبز او شاداب و ګرځي مځكه په نباتاتو سره وذلك حيوة الارض "بعد موتها" وروسته تر مرګ ددې يعني چي سپيره وي نباتات نه وي باندې.

## كَذَٰلِكَ ٱلنُّشُورُ ۝

داغه رنګه يعني لكه احياء د نباتاتو بعد اليبس "النشور" يعني بعث الاموات من القبور، ولې چي احياء الاموات من القبور او اخراج النباتات من الارض په مقدوريه كې فرق نه سره لري.

**سوال:** په نباتاتو کي مواد یعني تخمونه مختلف سته او د امواتو خو یو د انسانیت تخم دی؟

**ځواب:** دا خو سبب د فرق په مقدوریة کي نه دی یعني چي احیاء الموتی دي محال وي او احیاء النباتات دي ممکن محسوس وي کما یزعمه المشرکون، او عجیبه خو هم داده چي نباتات او مړي په کیفیت د احیاهم سره برابر دي، یعني لکه چي احیاء د نباتاتو په باران سره کېږي د مړو ژوندي کول هم په باران سره دی. وقد روی مسلم عن عبد الله بن عمرو رض بالسند المتصل في کیفیة البعث حیث قال ثم یرسل الله مطرًا کانه الطل فینبت اجساد الناس الی اخیر الحدیث (طل شبنم ته وایي) او په بل حدیث کي چي روایت یې ابو الشیخ کړی دی چي وروسته تر نفخه اولی د اسرافیل داسي خته اوبه لکه نطفه د انسانانو پر ځمکه باران غوندي اوري ځلوېښت ورځي، نو په هغه باران سره انسانان ټوله له ځمکي څخه راووځي لکن روحان نه وي پکښي، بیا روحان د مؤمنانو له جنت څخه او روحان د کافرانو له اوره څخه راوباسي په صور کي د اسرافیل یې کښېږدي، او خدای جل جلاله اسرافیل ع ته امر وکړي چي پوه یې کړه، هغه چي یې پوه کړي ټوله روحان راووځي او هر روح خپل بدن ته ورځي ولا یدخل روح من الارواح في غیر بدنه في الدنیا.

**درویش وایي:** وقد جاء في الصحیحین وغیرهما احادیث اخر في باب البعث بعد الموت وبیان کلها ینجر الی الاطناب علی السامعین.

## مَنْ كَانَ يُرِيدُ الْعِزَّةَ فَلِلَّهِ الْعِزَّةُ جَمِيعًا ۚ

که څوک اراده لري چي عزت دي پیدا کړي یعني في الدارین.

**پوه سه:** چي عزت یو لفظ مشترک دی تقریبًا په ډېرو ژبو کي او هر قوم یې په معنی پوهېږي یعني شرف او منعه یعني مدافعین مشتق دی له دې محاورې څخه ارض عزاز ای صلبة واللام فیه للجنس، والمعنی که څوک غواړي چي عزت د ځان لپاره پیدا کړي نو طلب دي د خدای جل جلاله څخه کوي او د عزت طلب له خدای جل جلاله څخه په طاعت پوري مربوط ده والعزة لله ملکًا وخلقًا، د دې مثال داسي دی لکه یو څوک چي وایي من یطلب العلم فان العلم عند العلماء یعني فلطلبه من العلماء.

**پوه سه:** چي په دې آيت کي رد دی پر مشرکينو چي دوی طلب د عزت په عبادت د بتانو کي باله، کريمه: واتخذوا من دون الله آلهة ليكونوا لهم عزًا، فاجاب منهم كلا يعني داغسي نه ده، ورد على المنافقين ايضًا چي دوی طلب د عزت له مشرکانو څخه د مکې او يا د يهودانو څخه د مدينې، قال الله تعالى ايبتغون (الضمير راجع الى المنافقين) عندهم (الضمير راجع الى الطائفتين من الكفرة) فان العزة لله جميعًا، په مجمع البيان کي وايي چي روايت کړی دی انس رضي الله عنه له نبي کريم قال ان ربکم يقول کل يوم انا العزيز فمن اراد عز الدارين فليطع العزيز لانه تعالى مالکلها ومعطيها لمن شاء خصوصًا المطيعين، او فراء نحوي رحمه الله وايي: مَنْ كَانَ يُرِيدُ أَنْ يَعْلَمَ لِمَنِ الْعِزَّةِ فَلِلَّهِ الْعِزَّةُ جَمِيعًا.

**درويش وايي:** چي روح المعاني او مظهري دواړو د فراء رحمه الله قول را نقل کړی دی لکن هيڅ رد يې نه دی پر کړی، او روح المعاني او مظهري دواړو هغه د مخه چي تېر سو هغه تفسير يې ظاهر بللی دی والله اعلم. مفسرين رحمهم الله وايي چي په دې راتلونکي آيت کي خدای پاک دا بيان کوي چي ان ما يطلب به العزة انما هو التوحيد العمل الصالح.

## إِلَيْهِ يَصْعَدُ الْكَلِمُ الطَّيِّبُ وَالْعَمَلُ الصَّالِحُ يَرْفَعُهُ

يعني خاص و خدای جل جلاله ته پورته کېږي، مراد د پورته کېدو څخه القبول عندالله مجازًا دی قاله قتاده رحمه الله، او يا مراد صعود د کرام کاتبينو صحيفه د کلماتو طيبه وو کلم طيبه، داغه دی سبحان والحمدلله والله اکبر وتبارک الله چي دا اشاره و توحيد ته ده.

**پوه سه:** چي ويدل على هذا حديث د ابن مسعود رضي الله عنه الذي رواه البغوي رحمه الله والحاكم قال ما من عبد يقول خمس كلمات سبحان الله والحمد لله ولا اله الا الله والله اكبر وتبارک الله الا اخذهن ملک فجعلها تحت جناحة، والمعنى والله اعلم كتبها ملک من الكرام الكاتبين على صحيفة وجعل الصحيفة تحت جناحه ثم صعد بهن فلا يمر على جمع من الملائكة الا استغفروا القائلهن حتى يجيئ بها الى العرش، ففي العبارة مجاز.

**فائده:** شراح د کافيه وايي چي بعض نحات وايي کلم جمع د کلمة ده لکن

محققين د شراح د كافيه لكه شيخ رضي او جامي رحمهم الله وايي چي جمع نه ده بلكې يا اسم جنس دی يا اسم جمع لكه قوم او رهط، او دليل يې هم دغه آيت گرځولی دی يعني كه كلم جمع وای نو صفت بې مؤنث يعني الطيبة وای، او جانب مقابل وايي چي دا آيت په تاويل د بعض الكلم الطيب دی يعني الطيب صفة د كلم نه دی بلكې د بعض محذوف صفت دی فتدبر.

**پوه سه:** چي كلبي او مقاتل رحمهما الله وايي چي ضمير مستتر په يرفعه كي راجع دی و كلم ته او منصوب ضمير يې و عمل ته راجع دی، والمعنی ان العمل لايقبل الا ان يكون صادرًا عن التوحيد لكه كلمات خمسه چي اشاره و توحيد ته ده كمامر من قبل، او سفيان بن عيينة رحمه الله وايي چي ضمير مستكن راجع دی و خدای ﷻ ته، ای ان العمل الصالح ای ماكان خالصًا لوجه الله او رياء او سمعه په گډه نه وي يرفعه الله ای يقبله فان الاخلاص سبب لقبول الاقوال والاعمال، والمختار عند المظهري ان الضمير المستكن راجع الی العمل الصالح لقربه والمنصوب الی الكلم.

**درویش وايي:** الی ههنا قول ابن عباس رضي الله عنهما وسعيد بن جبير وعكرمة واكثر المفسرين رحمهم الله، او الحسن او قتادة رحمهما الله وايي چي الكلم الطيب ذكر الله يعني ای ذكر كان مامر من قوله سبحان الله الی اخيره او غير ذالک مثل يا الله يا رحمٰن يا رحيم الی غير ذالک والعمل الصالح اداء الفريضة كالصلوة والصوم وغيرهما فمن ذكر الله بای ذكر كان ولم يؤد الفريضة اية فريضة كانت لم يقبل ذكره ورد كلامه علی عمله، دوی وايي وليس الايمان بالتمنی والتجلی لكن ما وقر في القلوب (چي په زړو كي يې قرار نيولی وي يعني منافق نه وي) وصدقه الاعمال (او اعمال چي اداء د فريضه ده هغه د زړه د ايمان تصديق كوي) فمن قال حسنًا (يعني الكلم الطيب چي د مخه يې بيان تېر سو سبحان الله آه) وعمل غير صالح مثلاً زنی، درواغ وغير ذالک رد الله عليه قوله چي كلم طيب وي، دوی وايي ومن قال حسنًا يعني الكلم الطيب وعمل صالحًا لكه لمونځ، روژه وغير ذالک يرفعه (ای العمل الصالح القول) دليل يې هم دوی په دې آيت اليه يصعد الكلم الطيب والعمل الصالح يرفعه (يعني بارجاع الضمير المستتر في يرفعه الی العمل، والضمير المنصوب الی القول، دوی وايي چي په حديث شريف كي راغلي دي لايقبل قولاً الا بالعمل ولا قولاً وعملاً الا بنية آه.

**درويش وايي:** چي ددې قول د الحسن او قتاده رحمه الله حاصل دادى چي كلم طيب چي بيان يې نژدې تېر سو چي هره يوه متضمن ايمان لره وه پر ذات د خداى ج او توحيد د خداى ج دا بېله عمل صالح اعتبار نه لري، نو بناءً على ما ذكر من تفسير قول الحسن وقتاده رحمه الله مظهري او ابن عطية رحمه الله داسي سوال پر كړى دى چي څرنګه كېداى سي چي ايمان دي بې عمل صالح اعتبار او فائده نه لري، وقد قال رسول الله ﷺ من شهد ان لا اله الا الله وحده لاشريک له وان محمدًا عبده ورسوله وان عيسىٰ عبده ورسوله وابن امته وكلمة القاها الى مريم وروح منه وان الجنة حق والنار حق ادخله الجنة على ما كان من عمل رواه الشيخان عن عبادة بن الصامت رضي الله عنه بل المراد من الآية ان القول الطيب اذا كان معه عمل صالح يرفع شان القول الطيب ويزيد في ثوابه، وهذا لاشک فيه ولي چي ثواب د قول طيب من المؤمن الصالح المطيع لله زيات دى تر ثواب د هغه قول طيب د هغه چا چي مطيع لله نه وي په عمل صالح كي، او د حديث مذكور معنى داده: لايقبل قولاً الا بعمل يعني قول المنافق بلاعمل الطيب والجوارح لايعتد به. ولي منافق خو هم لمونځ هم روژه نيول ظاهرًا وكذا القول المقرون بالعمل كقول المنافق المقرون بالعمل لايعتد بها اى بالقول والعمل الا بنية اى باعتقاد واخلاص من القلب، وما قيل ان معنى الآية العمل صالح يرفع القائل الى درجته فنداء من بعيد لان الكلام في الكلم الطيب والعمل الصالح فاين ذكر القائل حتى يكون مرجع الضمير المنصوب والله اعلم بالصواب.

**درويش وايي:** چي وهذا تفسير الآية حسب الطاقة والله الموفق والمعين.

## وَالَّذِينَ يَمْكُرُونَ السَّيِّئَاتِ

**پوښتنه:** يمكرون خو لازمي دى ليس بمعتد الى مفعول به، نو دلته سيئات څرنګه مفعول به راغلى دى؟

**ځواب:** سيئات مفعول به نه دى بلكي مفعول مطلق دى بتقدير الموصوف يمكرون المكرات السيئات، ابو العالية وايي چي ځني مراد په دې آيت كي مكرات سيئات د قريشو د دار الندوة په محفل كي چي دوى مكرات په باره كي د عليه الصلوة والسلام تر بحث لاندي نيولي ؤ كمامر في سورة البقرة في تفسير قوله تعالى واذ

یمکربک الذین کفروا (۱) لیثبتوک چي تا بندي کړي (۲) او یقتلونک یا دې مړ کړي (۳) او یخرجوک یا دي له مکې څخه وباسي، او کلبي رح وايي چي معنی ددې آيت داده والذين يعملون السيئات، وقال مقاتل رح ...... هم اهل الرياء في الاعمال.

**درویش وايي:** والكل صحيح والاول هو الاولى و يقتضيه ما بعده.

**لَهُمۡ عَذَابٞ شَدِيدٞۖ وَمَكۡرُ أُوْلَٰٓئِكَ هُوَ يَبُورُ ⑩**

"لهم عذاب شديد" دا جمله خبر د موصول ده او دوی لره دی سخت عذاب وهو النار، او چم د کفارو د مکې چي په اخير مشوره پر قتل اجتماعي د علیه الصلوة والسلام وکړه کمامر، د هو ضمير راجع دی و خدای ج ته یعني خدای ج به يې باطل کړي ولي چي عليه الصلوة والسلام ته يې امر د هجرت ورکړی او خدای پاک عليه الصلوة والسلام د خپل یار غار سره یعني ابوبکر الصدیق رض روغ رمټ مدينې منورې ته ورسول.

**درویش وايي:** چي ددې آيت تطبيق پر تفسير د الکلبي رح یا د شهر بن حوشب د آيت سابق په ډېر تکلیف سره کېږي کما لایخفی، قال ابو یزید البسطامي قدس سره السامي گفت شبیی خانه تاریک من روشن گشت گفتم شیطان باشد من ازان عزیزتر ام وبلند همت که اورا درمن طمع افتد، واگر از نزدیک تست بگذار تامن از سرای خدمت برائ کرامت روم.

**وَٱللَّهُ خَلَقَكُم مِّن تُرَابٖ ثُمَّ مِن نُّطۡفَةٖ**

خدای ج تاسي انسانان پیدا کړي یاست، هذا معطوف على قوله تعالى والله ارسل آه، او دا هم دلیل د قدرت الهي پر بعث بعد الموت کل المعطو علیه، ولي چي بدء الخلق خو اهون اعادة نه دی "من تراب" له خاورو څخه یعني په اعتبار د اصل چي آدم ع، بیا یې پیدا کړی له نطفې څخه یعني اصل قریب ضو نطفه ده، باعتبار الاغلب، فلا یرد السوال بعیسٰی ع.

**ثُمَّ جَعَلَكُمۡ أَزۡوَٰجٗاۚ وَمَا تَحۡمِلُ مِنۡ أُنثَىٰ وَلَا تَضَعُ إِلَّا بِعِلۡمِهِۦۚ**

بیا یې گرځولي یاست صنف صنف ای ذکرانا واناسا، او حمل نه اخلي یوه ښځه (کلمه د من لپاره د استغراق د نفي ده) او نه یې وضع کوي یعني نه لنگېږي

مګر نه متلبس په علم سره د خدای ﷻ يعني خدای ﷻ په دواړو حالاتو کي د حمل او د وضع علم درباندي لري.

وَمَا يُعَمَّرُ مِن مُّعَمَّرٍ وَلَا يُنقَصُ مِنْ عُمُرِهِ إِلَّا فِي كِتَابٍ

او نه اوږدېږي عمر ای مايمد ويطول في عمره او نه کمېږي له عمر څخه د يو چا "الا في كتاب" يعني كل ذالک مكتوب في كتاب يعني اللوح المحفوظ او في صحائف الكرام الكاتبين، سعيد بن جبير ﷺ وايي: مكتوب في ام الكتاب ان فلان عمره كذا سنة ثم يكتب اسفل من ذالک، يعني د عمر تر نوشتې لاندي، ذهب يوم ذهب يومان ذهب لثلة ايام حتى ينقضى عمره، وقيل معناه لايزداد في عمر احد (يعني تر هغه مكتوب في اللوح المحفوظ) ولاينقص او نه تر مكتوب کمېږي الا في كتاب اى اللوح المحفوظ (يعني که زيادت او که نقصان هغه هورې په لوح محفوظ کي نوشته) يعني په لوح محفوظ کي نوشته وي چي عمر د فلاني اوويا کاله دی يا هغه بعض حسنات وکړي عمر يې زيات نوشته سي، يا بعض سيئات وکړي عمر يې کم سي فكل ذالک مكتوبة في اللوح المحفوظ ويؤيد ذالک قوله عليه الصلوة والسلام لايرد القضاء الا الدعاء ولايزيد في العمر الا البر، رواه الترمذي عن سلمان الفارسي ﷺ.

**سوال:** په ما يعمر من معمر کي خو تحصيل د حاصل دی ولي چي دی چي معمر دی نو تعمير يې څرنګه کېږي؟

**ځواب:** له معمر څخه مراد من احد دی معمر يې په اعتبار د ما يؤل اليه بولي نو قوله تعالى اني اعصر خمرًا، اى اعصر عنبًا يؤل الى الخمر كذا ههنا ما يعمر من احد يؤل الى المعمر، په روح المعاني کي وايي وقيل الزيادة والنقصان في عمر واحد باعتبار اسباب مختلفة في لوح محفوظ مثل ان يكتب في ان حج فلان فعمره ستون والا فاربعون فاذا حج فقد بلغ ستين، نو عمر يې دراز سو، واذا لم يحج فلا يجاوز الاربعين فقد نقص من عمره الذي هو الغاية وهي ستون سنة وكذا ان تصدق او وصل الرحم فعمره ستون والا فاربعون واليه اشار عليه الصلوة والسلام بقوله الصدقة والصلة تعمران الديار وتزيدان في الاعمار، وايضًا جاء في الحديث ان المرء ليصل

رحمه وما بقي من عمره الا ثلاثة ايام، نو خدای ج يې اجل وځنډوي دېرش کاله نور وانه ليقطع الرحم وقد بقي من عمره (۳۰) فيرده الله الى ثلثة ايام، وفي الحديث بر الوالدين يزيد في العمر والكذب ينقص الرزق والدعاء يرد القضاء انتهى قول رد المحتار، او بعض علماء وايي چي زيادت د عمر صرفول دي في الطاعات ومرضات الله ونقصان صرف في المعاصي، قال الحافظ الشيرازي رح:

فدای دوست نکردیم عمرو مال دریغ .... که کار عـــشق زما این قدر نمی آید
اوقـــات خوش آن که بایار بسر رفت .... باقی همه بی حاصلی وبی خبری بود

إِنَّ ذَٰلِكَ عَلَى اللَّهِ يَسِيرٌ ⑪

يعني دا كتابة الآجال والاعمال وخدای ج ته اسانه دی.

**پوښتنه:** دا احاديث مذكوره ددې تقاضا نه كوي چي افعال مذكوره في الاحاديث المذكور د خدای ج و تقدير ته تغيير رسوي، وهو محال؟

**ځواب:** يا! تغيير وتقدير ته نه لازمېږي لانه كتب في اللوح المحفوظ تقدير تعالى ايضًا معلقًا سواء كان في زيادة العمر او في نقصانه كمامر لان ما لايجوز تغييره من القضاء الالهي هو القضاء المبرم اى القاطع بدون التعليق بشئ وكذا لايغير ما في علمه الازلي.

**سوال:** بعض جهال وايي چي ددې په رڼا كي دا لازمېږي چي انسان لره دوه اجله سته لكه معتزله چي وايي؟

**ځواب:** اهل السنة والجماعة چي تعدد د اجل روا نه بولي كما ورد في القرآن الكريم: اذا جاء اجلهم لا يستأخرون ساعة ولايستقدمون، هغه تعدد د اجل دی په قضاء مبرم كي وهذه الآحاديث لاتقتضيه فافهم هداک الله.

وَمَا يَسْتَوِي الْبَحْرَانِ ۖ

او نه دي سره برابر دا دوه رودونه.

**پوه سه:** چي بحر هر فراخ ځای ته چي ډېر اوبه پكښې جمع وي كه جاري وي لكه دجله، فرات، نيل مبارک، هلمند وغير ذالک او كه ولاړي وي لكه بحر محيط د ډالې كاسه الى غير ذالک او هم دا سبب دی چي جامع عالم ته بحر وايي.

**سوال:** هذا څو اسم اشاره مشار اليه څه دی في القرآن؟
**ځواب:** هذا دلته په معنی د احدهما دی.

هٰذَا عَذْبٌ فُرَاتٌ سَآئِغٌ شَرَابُهٗ وَهٰذَا مِلْحٌ اُجَاجٌ

دیوه دریاب اوبه شیریني خوږې دي او دېري ښه خوږې وي.

**پوهه:** چي فرات مشتق له فرط څخه دی وهو الکسر نو ډېري شیریني اوبو ته چي فرات وايي لانه يكسر العطش ''سائغ شرابه'' چي تر ستوني په اسانی سره تېرېږي اوبه، ولي چي په تجربه سره ثابته ده چي خوږو شیانو ته که اوبه وي او که بل شی ستونی فراخه کېږي، وبالعکس ترخه يا خوا ګرځن شي ته ستونی تنګېږي دا طبع انساني ده، وبالفارسية: ګوارنده په پښتو وايي دارو درمان.

**فائده:** جمله د هذا فرات سره د خپل مقابل يعني وهذا ملح اجاج صفت دی د البحران.

**سوال:** البحران معرفه دی باللام او جمله څو په حکم کي د نکرې ده کما تقرر في کتب النحو، توصيف د معرفې يې په نکره سره مما يمنعه النحات؟

**ځواب:** الف ولام په البحران کي لپاره د عهد ذهني دی لعدم صحة الجنس والاستغراق والعهد الخارجي ههنا كما لايخفٰى على المتبحر في علم النحو، او نحات وايي چي معرفه په لام ذهني سره په حکم کي نکرة دی فصح التوصيف وقد مثلوا لهذا التركيب بقول الشاعر چي د ځان مدح کوي په حلم سره .... شعر:

ولقد امر على اللئيم يسبنی .... فمضيت ثم قلت لايعنينی

يعني جمله د يسبنی صفت ده واللئيم چي معرفه باللام دی.

''وهذا ملح اجاج'' ای الآخر فلايرد سوال المذكور في هذا عزب او بل دریاب ملح اوبه يې تروې دي اجاج شديد الملوحة يعني ډېري تروې.

**فائده:** دا آیت قرآني مثل دی د مؤمن يعني هذا عزب آه او د کافر يعني هذا ملح آه. دا بيان د قدرت د خدای ﷻ دی چي خوږې او تروې اوبه ماهيت يې يو دی او په خواصو کي سره جلا دي، داغه رنګه مؤمن او کافر په نوع انساني کي شريکان دي. لکن د خواصو يې د اسمان او ځمکي فرق دی.

# وَمِن كُلٍّ تَأْكُلُونَ لَحْمًا طَرِيًّا

او د هر يوه څخه تاسي خورئ غوښي تازه چي مراد څني ماهي دى لا جميع دواب البحر كالضفدع والسرطان حتى الانسان البحري.

**يوه سه:** چي مضاف اليه د كل محذوف دى اى كل واحد من البحرين.

**يوه سه:** چي د ماهي ټولي انواع حلالي دي.

**فائده:** دا جمله استطرادًا ذكره په تمثيل د مؤمن او كافر دخل نه لري صرف صفت د بحرينو ده، وما فيهما من النعم. او بعض مفسرين وايي چي ذكر ددې جملې استطرادي نه دى بلكې لپاره د تمام د تمثيل د مؤمن او كافر يې راوړه په دې معنى چي مؤمن او كافر كه څه هم په بعض خواصو او فوائدو كي سره شريكان دي لكه نطق، كتابت، تجارت، نجاري، بنايي الى غير ذالك لكن په مقصود بالذات كي نه دي سره شريكان، ولي چي مقصود له خلق څخه د انسان معرفت د الوهيت بالحق د خداى ج وعبادته على سبيل التوحيد، قال الله ﷻ ما خلقت الجن والانس الا ليعبدون، دا مقصود بالذات من خلق الانسان په مؤمن كي سته او په كافر كي نسته، لكه او به د بحرين چي په بعض خواصو كي سره شريكان دي، حيث قال ﷻ ومن كل تأكلون لحمًا طريًا، لكن په اصل مقصود كي چي شرب د حيواناتو او انسانانو دى نه دي سره شريكاني.

**فائده:** لحم يې په طري سره موصوف كړى لپاره د تنبيه پر دې چي د ماهي غوښي به سرى ژر خوري ولي چي د ماهي غوښي لطيفي دي ډېر ژر خرابيږي.

**مسئلة شرعية:** امام مالك او الثوري رح په دغه آيت دليل وايي چي كه چا قسم واخستى چي زه غوښي نه خورم او د ماهي غوښي يې و خوړلې په قسم كي حانث دى، ولي چي خداى ج اطلاق د لحم پر كړى دى، او نور امامان وايي چي مبنى د ايمانو پر عرف ده او په عرف كي د ماهي غوښو ته غوښي يا په عربي لحم نه وايي، دليل يې دادى چي كه يو سړي بل ته وويل چي ماته له بازاره غوښي راوړه كه يې د ماهي غوښي ورته راوړې هغه غوښي پر راوړونكي تاوان دي لانه فعل خلاف امر الآمر.

**يوه سه:** چي روح المعاني ددې غوښو د ماهي او عدم حنث الحالف من اكل اللحم

باكل لحم السمک، يو ډېر ښايسته مثال ويلې دي، وايي چې كه چا قسم واخستې والله لايركب دابة، نو پر كافر سپور سو نه دى حانث، او سره ددې چې اطلاق د دابة پر كافر په قرآن كي راغلى دى حيث قالﷻ: ان شر الدواب عند الله الذين كفروا.

**پوښتنه**: خداى پاک ماهي ته غوښې وويلې مع انه حيوان يعني داسې يې ونه ويل ومن كل تخرجون سمكا، يعني نورو حيواناتو ته صرف غوښه نه ويل كېږي مثلاً غويي غوښه نه بولي وهكذا الابل والضان والمعز؟

**ځواب**: ددې لپاره يې تعبير په لحم سره څنې وكړى په سمک يې تعبير ونه كړى چې تنبيه پر دې راسي چې د ماهي غير له غوښو چې د خوراک لپاره دي بله فائده نسته پكښې بخلاف الحيوانات المذكورة مثلاً في الابل فوائد جمة غير اكل لحمها كالركوب و وبرها وغيرهما وكذا البواقي من الحيوانات المذكورة، لكن روح المعاني وايي دعوى انحصار الانتفاع بالسمک في اكل اللحم لا اظنها تامة انتهى لعل مراده ان السمک فيه فوائد سوى فائدة اللحم لان السماک الكبار له هډوكي څخه يې عجيب آلات خلک جوړوي ويخرج من بطن بعضها اللؤلؤ الثمينة ويوجد في بعضها من الاحجار الثمينة من احجار البحر كما يشهد به التجارب.

وَتَسْتَخْرِجُونَ حِلْيَةً تَلْبَسُونَهَا ۚ

تاسي راباسئ (لكن د توره دريابه نه د عذب شېرين دريابه) زېور وهي اللؤلؤ والمرجان چې تاسي يې اغوندئ يا ښځې يا نر.

**پوه سه**: چې تستخرجون عطف دى پر تأكلون بدون لحاظ الجار والمجرور المتعلق بتأكلون، او د لباس څخه متعارفه معنى مراد نه ده، مثلاً غاړكۍ په عرف كي لباس نه بولي او ګوتمۍ چې لؤلؤ يا مرجان غمى پكښې وي هم يې په عرف كي لباس نه بولي.

**سوال**: زېورات خو عموماً ښځې اغوندي او د تلبسون خطاب و نر ته وسو؟

**ځواب**: بعض ښځي طبعيت والا نر هم څيني زېور اغوندي كه څه هم اغلب يې ښځې اغوندي. او بل ځواب دادى چې ښځه چې زر او زېور په لاس يا پښو يا په غاړه كړي د ازواج يعني مړو لپاره ځانونه ښائسته كوي.

وَتَرَى الْفُلْكَ فِيهِ مَوَاخِرَ

ته وینې ایها المخاطب الغیر المعین (عطف علی من کل تأکلون) الفلک فیه ای في کل واحد من البحرین العزب و الملح.

**درویش وایي:** چي د فلک لفظ مفرد او جمع دواړه دی فرق یې اعتباري دی که مفرد وي ضمه د فاء یې لکه ضمه د قفل ده او که جمع وي ضمه یې لکه ضمه د اسد جمع اسد ده، فرق د مفرد او جمع یې چي په قرآن مجید کي واقع سي په قرائنو سره کېږي مثلاً ضمیر مذکر ورته راجع کېږي یا مؤنث صفت یا خبر مذکر دی یا مؤنث وهکذا په دې ځای کي خو جمع دی بقرینة لفظ مواخر "مواخر" جمع د ماخرة ده علی وزن فاعلة مشتق ده له مخر څخه چي معنی یې شق یعني څیرل ده یعني دا کښتیانې چي په دریاب کي رواني وي او اوبه د دریاب څیري څوک د یوې خوا څوک د بلې خوا.

لِتَبْتَغُوا مِنْ فَضْلِهِ وَلَعَلَّكُمْ تَشْكُرُونَ ⑫

تاچي تاسي طلب وکړئ له رزق څخه د خدای ج په ذریعه د تجارت د بحر په کښتیو کي، لعل په معنی د لام کی دی ای لکی تشکر الله.

**بوه سه:** چي لعلکم عطف دی پر لتبتغوا.

**سوال:** معطوف علیه مصدر په لام د جر ده او معطوف په حرف ترجي سره؟

**ځواب:** دمخه موږ وویل چي لعل په معنی د لام کی دی، فالتقدیر ولتشکروا.

يُولِجُ اللَّيْلَ فِي النَّهَارِ وَيُولِجُ النَّهَارَ فِي اللَّيْلِ ۙ

داخلوي خدای ج ساعات د شپې په ورځ کي (یعني شپه کوتاه او ورځ اوږده کړي لکه په دوبي کي، دا آیت متصل دی په هغه آیت پوري والله خلقکم من تراب الی قوله علی الله یسیر، په دې معنی چي دواړه بیان د عظیم قدرت د خدای ج دي او جمله د ما یستوي آه جمله معترضه ده) او داخلوي ساعات د ورځي په شپه کي لکه په ژمي کي چي شپه اوږدېږي او ورځ لنډېږي.

وَسَخَّرَ الشَّمْسَ وَالْقَمَرَ كُلٌّ يَجْرِي لِأَجَلٍ مُسَمًّى ۚ

او مسخر یې کړځولي دي لمر او سپوږمۍ (په دې معنی چي هر یو خپل شبانه

روزي رفتار كوي طلوعًا و غروبًا الى ماشاء الله) هر يو د لمر او سپوږمۍ. (نو تنوين عوض د مضاف اليه دی) تګ كي يعني په اسمان كي د معين وخت لپاره، چي يا يوه دوره ده يا تر منتهٰی پوري يا د قيامت تر ورځي چي دا نظام شمسي او قمري په هغه ورځ ختم كړځي.

**يوه سه:** چي كل يجري د بيان د تسخير الهي دی.

## ذٰلِكُمُ اللّٰهُ رَبُّكُمْ لَهُ الْمُلْكُ ۚ وَالَّذِيْنَ تَدْعُوْنَ مِنْ دُوْنِهٖ

څوك چي مذكوره كارونه كوي هغه الله دی "ذالكم الله" مبتداء او خبر دی "ربكم" خبر بعد الخبر دی "له الملك" خبر آخر دی چي دې ته اخبار مترادفه وايي. او هغه شيان چي تاسي يې عبادت كوئ، ماسوی له خدايه.

**يوه سه:** چي عائد و موصول ته عائد محذوف دی ای تدعونها "من دونه" حال دی له ضمير څخه د تدعون يعني كائنة من دونه تعالى.

## مَا يَمْلِكُوْنَ مِنْ قِطْمِيْرٍ ﴿۱۳﴾

نه دي مالكان دوی د يو اډنى شي چي قطمير يې بولي چي د خورما پر مند كي هغه سپين نازك خور دی، نو دوی چي نه دي مالكان ددې حقير جسم، نو د لوی اجسامو څه به څرنګه مالكان وي، مطلب دادی چي ستاسي معبودان بتان دومره بې قدرته دي نو تاسي يې عبادت ولي كوئ.

## اِنْ تَدْعُوْهُمْ لَا يَسْمَعُوْا دُعَآءَكُمْ ۚ وَلَوْ سَمِعُوْا مَا اسْتَجَابُوْا لَكُمْ ۗ

"ان تدعوهم" كه تاسي دوی وبولئ د حاجت روايي لپاره يعني په مهم كار كي دوی نه اوري ستاسي دغه دعاء او بلنه لكونها جمادات فضلاً عن قضاء الحاجات، او كه دوی وه هم اوري على فرض المحال بيا ستاسي پوره كول د حاجت نسي كولای لعدم قدرتهم على الانفاع.

**سوال:** د عيسٰی او عزير او د ملكو خو هم بعض خلكو عبادت كاوه، نو هغه حاجت روايي نسي كولای؟

**ځواب:** هغه له دوی څخه یعني د عبادت کونکو او د هغو له عبادت څخه بېزاره دي.

وَيَوْمَ الْقِيٰمَةِ يَكْفُرُوْنَ بِشِرْكِكُمْ ۚ وَلَا يُنَبِّئُكَ مِثْلُ خَبِيْرٍ ﴿۱۴﴾

او په ورځ د قیامت دغه ستاسي معبودان منکره سي ستاسي له عبادت څخه او وایي به ماکنتم ایانا تعبدون ، تاسي زموږ عبادت نه دی کړی بلکه عبادت د شیطان مو کړی دی، او تا به په حقیقت حال دمشرکانو او ددوئ د معبودانو خبر نه کړي، یعني هغه مخبر په مثل د عالم خبیر چي خدای فانه تعالی خبیر بکل شئ ازلا و ابدا.

**پوښتنه:** دا بې ځایه ده او دا دنیا د معبودانو 'ماکنتم ایانا تعبدون، په بتانو کي څرنګه متصور ده ولي بتان خو جمادات دي، نو دوی څرنګه دا نطق کولای سي ماکنتم ایانا آه؟

**ځواب:** خدای جل جلاله یې پر خبرو راولي دغه جمادات والله علي کل شئ قدیر لپاره د رسوایي د عابدانو چي دوئ به ددغو بتانو عبادت کاوه په امید دشفاعت هغه دوئ ته مصیبت سو.

**فائده:** مخاطب په آیت کي رسول الله دی.... بیت:

بر احوال نابوده علمش خبیر........ بر اسرا ناګفته لطفش خبیر

**سوال:** په دې آیتو کي معبوداتو ،جماداتو به مشرکانو ضمایر د عقلاؤ راجع کړي دي حکمت یې څه دی؟

**جواب:** دا ضمائر پر زعم د عابدانو بتانو ته راجع کړل سوي دي، ولي چي عابدانو د خپل معبودات ذي قدرت ذي علم به بلل لغایة جهلهم و غباوتهم.

يٰۤاَيُّهَا النَّاسُ اَنْتُمُ الْفُقَرَآءُ اِلَى اللّٰهِ ۚ

ای خلګو تاسي محتاج یاست و خدای جل جلاله ته.

**پوه سه:** چي خطاب عام دی مسلمانانو کافرانو دواړو ته، یعني همیشه په پیدائښت کي او په بقاکي د ژوند په هغو شیانو کي چي ژوند په هغو مربوط من الغذاء وصحت الجسد الي غیر ذلک و في النجات من النار او په ثواب درکولو کښي په جنت سره.

**پوښتنه**: تخصيص دفقر په انسان سره وکړئ، او سره ددې چې نور حيوانات خو هم خداى ﷻ ته محتاج دي ؟.

**جواب**: نعم چي نور حيوانات هم خداى ج ته محتاجه دي ليکن دهغو احتياج نظر و احتياج ته د انسان لکه چي نه وي محتاجه، ولي چي انسان خو ذوي العقول دى د ذوي العقولو احتياجونه ډېر دي، نظر وغير ذوي العقول مثلا انسانان کوټيو، بنګلو، ورجو، غوښو او قالينې موټران الي غير ذلک ته احتياج لري، ايت کريمه :( وخلق الانسان ضعيفا ) او ده ضعيف احتياجات ډېر وي تر قوي.

**سوال**: جنيات خو هم ذوي العقول دي، بايد دهغو احتياجات هم ډېر واى؟.

**جواب**: جنات په ملبس او مطعم کي او په مسکن کي دونه احتياج نه لري لکه انسان.

## وَاللّٰهُ هُوَ الْغَنِيُّ الْحَمِيْدُ ﴿١٥﴾

**پوه سه**: چي تعريف د النبي دپاره عهد خارجي دى اى المعروف بالاستغناء على الاخلاق و الانعام العام على الموجودات، چي محمود في ذاته مستحق الحمد من جميع خلقه.

## اِنْ يَّشَاْ يُذْهِبْكُمْ وَيَاْتِ بِخَلْقٍ جَدِيْدٍ ﴿١٦﴾

که د خداى خوښه سي تاسي به بوزي پر شاهراه د عدم، دا دليل ددې دى، چي خداى غني دى، د مخلوقه څخه، او را به ولي يعني پيدا به کړي ستاسي په بدل نور نوى مخلوق دانسانانو په ځاى يعني هغه به تر ډېر فرمان بردار وي تر تاسي.

## وَمَا ذٰلِكَ عَلَى اللّٰهِ بِعَزِيْزٍ ﴿١٧﴾

او نه دى دغه تبديل ستاسي په نورو انسانانو و خداى ج ته ګران کار.

## وَلَا تَزِرُ وَازِرَةٌ وِّزْرَ اُخْرٰى ؕ

او نسي وړلاى يو نفس ګناه کار (نو تانيث د وازرة په سبب ددې دى چي موصوف يې نفس دى چي مؤنث سماعي دى، او وزر په لغت کي ثقل ته وايي، مراد څني په آيت کي ګناه ده) ګناه د بل نفس ګناه کار.

**سوال:** په یو بل آیت کې راغلي دي وليحملن اثقالهم واثقالاً مع اثقالهم؟

**ځواب:** دا آیت په شان کې د هغو کسانو دی چې هم په خپل ګمراه او ضال وي او نور کسان يې هم ګمراهان کړي وي چې داسي سړي ته ضال مضل وايي، نو دا کسان به حمل کوي اثقال د اضلال د نورو کسانو سره ثقل د ضلال خپل، وليس شيئ منها اوزار غيرهم كذا في روح المعاني.

**پوښتنه:** مسلم د ابو موسی الاشعري ﷺ څخه روايت کړی دی چې مرفوع و عليه الصلوة والسلام ته دی انه يجيئ يوم القيامة ناس من المسلمين بذنوب امثال الجبال يغفرها لهم ويقعها على اليهود والنصارى (نو په دې حديث کې خو اثقال د مؤمنانو پر يهودانو او نصارى واچول سول) او دغه رنګه په بل حديث کې راغلي دي چې ورځ چې د قيامت سي خدای ج وهر مسلمان ته (يعني چې ګناه کار وي) يو يهودي يا نصراني په لاس ورکړي او ورته ووايي هذا فداک من النار ستا فديه له اور څخه ده، نو ددې په مقتضی خو هم ګناه وزر د مسلمان پر يهودي او نصراني واچول سو، وامثال ذالک؟

**ځواب:** ددې احاديثو ځواب دادی چې يهودانو يا نصارى ؤ يوه طريقه وضع کړې وه چې مسلمان هم پر هغه طريقه ولاړ سي، نو خدای ﷻ هغه مسلمان وبخښي او دده ګناه پر هغه يهودي او نصراني واچوي چې هغه طريقه سيئه يې وضع کړې وه نو پر يهودي يا نصراني باندي وزر د تسبب ولوېدی، فهذه الاحاديث امثال قوله عليه الصلوة والسلام من سن في الاسلام سنة سيئة فله وزرها ووزر من عمل بها الى يوم القيامة انتهى باختصار.

وَإِنْ تَدْعُ مُثْقَلَةٌ إِلَىٰ حِمْلِهَا لَا يُحْمَلْ مِنْهُ شَيْءٌ

او که وبولي يو نفس مثقله يعني په خپلو ګنهو سره درونډ وي، يو بل څوک "الى حملها" چې ته دا زما درونډ د ګناه پېټی راسره يوسه "لايحمل منه شئ" يعني نفس دا خواست د هغه نفس مثقله نه ورسره مني نو په دې آیت کې يې نفي ددې وکړې چې د يوه نفس ګناه دې بل نفس ورسره يوسي يعني هغه اول نفس دې د ګناه معاف سي لکه چې خدای ج نفي کړې دې چې يو پر نفس دې بل نفس په ګناه بار کړي.



Scanned by CamScanner

# وَلَوْ كَانَ ذَا قُرْبٰى

که څه هم وي هغه نفس چي دته دعوت د حمل ورکړي يعني د ګناه د حمل ''ذا قربٰى '' خاوند د قرابت له ابن عباس رض څخه بغوي رح روايت کړی دی يلقى الاب والام ابنهما فيقول اى احدهما يا بني احمل عني بعض ذنوبي زوي يې ورته وايي لا استطيع په وسه مي نه ده پوره حسبي ما علي يعني پر ما په خپل د ګناه درونډ بار پروت دی، او دغه رنګه يو سړی خپله ماينه تېنګه کړي چي زه ستا مېړه وم په دنيا کي او په عين حال کي ورته وايي چي ته خو پر ما ډېره مهربانه او زه ډېر درباندي ګران وم نو ته يو مثقال ذرة ستا له حسناتو څخه راکړه شايد چي زه به له اوره په خلاص سم، ماينه يې ورته وايي چي دا خو تا ډېر لږ شی طلب کړی زما څخه لکن در کړه مي په وس نه ده پوره، ولي زه په خپله دغه قدر ته محتاجه يم... ابيات:

هيچ رحـــمی نه بـرادر به بـــرادر دارد .... هيچ خيری نه پدر را به پسر مى آيد
دختران از پهلوی مادر بکند قصد فرار ....دوستی از همه خويش بسری آيد

# اِنَّمَا تُنْذِرُ الَّذِيْنَ يَخْشَوْنَ رَبَّهُمْ بِالْغَيْبِ وَاَقَامُوا الصَّلٰوةَ

اخفش يې معنى داسي کړې ده انما تنفع بانذارک، هغه کسان چي دوی بېرېږي له خدای ج څخه په غيب سره چي خدای ج يې نه دی ليدلی او يا معنى داده غائبين من عذابه ج يعني چي د خدای ج عذاب يې نه وي ليدلی يعني په دنيا کي بېرېږي، او يا معنى داده چي په غياب کي له خلکو څخه يعني رياء کار نه وي په خپلو خلوتو يعني داسي نه وي لکه يو شاعر چي وايي:

واعظان که اين جلوه در منبر و محراب ميکنند
چـــون بخلوت ميروند کاری ديگران ميکنند

''واقاموا الصلوة'' او دوی پر ښه وجهه اداء کوي لمونځ يعني پنځه وخته.

**پوه سه:** چي په يخشون ربهم آه کي اشاره و اجتناب ته د معاصي وکړه او په اقاموا الصلوة کي اشاره و دې ته وکړه چي واجبات د دين ټولو له پر ځای کوي، ولي صلوة عماد الدين دی. قال رسول الله ﷺ الصلوة عماد الدين فمن اقامها فقد اقام الدين ومن هدمها فقد هدم الدين، او دا دوی له بېرې د خدای ج نو دوی ستا په انذار سره نفع اخلي.

**فائده:** په اوله جمله کي يې فعل مضارع راوړه او په دوهمه جمله کي يې ماضي چي دواړي په سبب د عطف د يوه موصول صله دي اشاره ودې ته ده چي دوی مستمر دي پر ښو کارو في جميع الازمنة كما قال المظهري، وفيه نظر لان الدال على الاستمرار هو المضارع دون الماضي كما تقرر في النحو فافهم، والحق ما في كشف الاسرار غاير بين الفعلين لان اوقات الخشية دائمة (يعني ځکه يې مضارع راوړه چي دال پر استمرار ده كمامر آنفًا) و اوقات الصلوة معينة منقفية (يعني له دې جهته په لمانځه کي صيغه د ماضي ذکر کړه الدالة على الانقضاء فافهم ايها المطالع للتفسير الايوبي، وخذ ما صفا ودع ما كدر.

وَمَنْ تَزَكّٰى فَاِنَّمَا يَتَزَكّٰى لِنَفْسِهٖ ۚ وَاِلَى اللّٰهِ الْمَصِيْرُ ﴿١٨﴾

څوک چي له خيري څخه د مصائبو ځان پاک ساتي، نو دی ځان پاک نه ساتي مګر د خپلي فائدې او نفعې لپاره، او خدای ج ته ده رجوع د خلکو يعني بالبعث بعد الموت فيجازيهم على التزكية وغير ذالک.

**فائده:** جمله د من تزکی آه جمله معترضه ده لپاره د تاکيد د امر د خشية.

وَمَا يَسْتَوِي الْاَعْمٰى وَالْبَصِيْرُ ﴿١٩﴾ وَلَا الظُّلُمٰتُ وَلَا النُّوْرُ ﴿٢٠﴾

نه دی برابر ړوند (له لاري څخه د خدای ج اى الكافر والجاهل) او ليدونکی (اى المؤمن او العالم) او نه تاريکه (اى الكفر) او نور (اى الايمان)

**فائده:** ظلمات يې جمع راوړه او نور يې مفرد لان انواع الكفر كثيرة من الشرک والدهرية واليهودية والنصرانية وغيرهما، والايمان نوع واحد.

وَلَا الظِّلُّ وَلَا الْحَرُوْرُ ﴿٢١﴾ وَمَا يَسْتَوِي الْاَحْيَآءُ وَلَا الْاَمْوَاتُ ۚ

او نه سايه (چي مراد څني جنت يا ثواب دی) او نه ګرمي (چي مراد څني دوږخ او عذاب دی) او نه دي سره برابر ژوندي او مړي، دا مثال دی د مؤمنانو او کافرانو. او بعض وايي مثال دی د علماء او جهال.

**فائده:** دا تمثيل ابلغ دی تر دمخه تمثيلاتو. ولي چي د حي او ميت په منځ کي ډېر بعد دی تر نورو مثالو، له دې سببه يې لام مکرر راوړی په ولا الاموات کي.

**إِنَّ اللَّهَ يُسْمِعُ مَنْ يَشَاءُ ۖ وَمَا أَنْتَ بِمُسْمِعٍ مَنْ فِي الْقُبُورِ ﴿٢٢﴾**

په تحقیق خدای ج اورېدای سي په هغه چي اراده يې ورته وسي د هدایت (نو هغه په قرآني آیتو کي ښه غور او فکر کوئ او نصائحو ته د قرآن په دقیقه توګه غور نسئ، نو حاصل د معنی یسمع یهدیه) او ته نه يې یا محمد ﷺ اورېدونکی د هغه چا چي په قبرو کي وي.

**پوه سه:** چي د من في القبور څخه مراد مصرین علی الکفر دي لکه ابوجهل وغیره، نو دوی یې مشابه کړه د مړو سره، په دې کي علیه الصلوة والسلام ته نا امیدي او اقناط کلي ورکوي ددوی له ایمان څخه.

**درویش وایي:** چي وما انت بمسمع بناء پر عرف عام ده یعني مړي خبري نه اوري.

**درویش وایي:** چي مسئله د سماع الموتی علی الحقیقة ډېره پېچیده او مختلف فیها مسئله ده، له دې ځایه او د وما انت بمسمع آه تعلق ورکول لکه بعض مفسرینو چي تعلق ورکړی زما په عقیده دا مسئله له دې ځای سره تعلق نه لري، او بله خبره داده چي مسمع چي اسم فاعل له بابه د افعال دی مجرد د هغه چي سماع ده په هغه معنی مراد ده لکه یسمع چي مضارع له بابه د افعال ده له مجرد څخه چي سماع د هدایت مراد ده، نو په مسمع کي چي هم هدایت مراد دی، نو ددې آیت معنی راجع کېږي و هغه آیت ته انک لاتهتدي من احببت ولکن الله یهدي من یشاء نو د سماع الموتی سره څه تعلق لري، ولله در المظهري رح چي سره ددې چي د احادیث نبویه لوی بحر دی په مسئله احادیث د سماع صرف نظر ګرځولی، او روح المعاني هم دلته د سماع الموتی د مسئلې حواله و بل ځای ته د خپل تفسیر کړې ده.

**إِنْ أَنْتَ إِلَّا نَذِيرٌ ﴿٢٣﴾**

نه يې ته یا محمد ﷺ مګر نه ېېرونکی د کفارو په دوږخ سره یعني هدایت ددوی پر تا نه دی لازم.

**إِنَّا أَرْسَلْنَاكَ بِالْحَقِّ بَشِيرًا وَنَذِيرًا ۚ**

په تحقیق موږ ته استولی يې یعني رسول مو ګرځولی يې په حق سره چي ته

زېرې ورکونکی یې مؤمنانو ته بالجنة والثواب او بېرونکی یې کفارو لره په دوږخ او عقاب حق سره.

**پوه سه:** چې بالحق یا حال دی له فاعل څخه د ارسلناک ای محقین ستا په ارسال کې، یا حال دی له ضمیر منصوب څخه چې علیه الصلوة والسلام یې مخاطب دی ای محقًا. یا بالحق صفت د مصدر محذوف دی ای ارسالاً متلبسًا بالحق، والمآل واحد بالتلازم بین هذه التراجم.

وَإِن مِّنْ أُمَّةٍ إِلَّا خَلَا فِيهَا نَذِيرٌ ﴿٢٤﴾

او نسته یو امت له امم سابقهؤ څخه مګر تېر سوی دی په هغه امت کې بېرونکی ددوی یا نبي بعد نبي کانبیاء بني اسرائیل چې تعداد یې څلور زره ته بالغ ؤ، او یا قائم مقام د نبي لکه علماء کاملین د امت د علیه الصلوة والسلام کما قال علیه الصلوة والسلام: علماء امتي کانبیاء بني اسرائیل في اجراء وضیفة الانذار.

**پوښتنه:** په دې وروستني آیت کې یې یوازې نذیر راوړی له دې سببه چې په انذار هر سړی پوهېږي چې بشارت ورسره ملګری دی لکه چې په مخکني آیت کې چې تېر سو.

**سوال:** لکه انذار چې قرینه د بشارت ده داغه رنګه بشارت خو هم قرینه د انذار ده، نو ولې اکتفاء بالبشارة ونه کړه په دې وروستني آیت کې؟

**ځواب:** لان دفع د ضرر چې په انذار پورې مربوط ده اهم ده تر نفع چې په بشارت پورې مربوط ده، ولان التخلیة بالخاء المعجمة اقدم واهم من التحلیة بالحاء المهملة فافهم، بیا خدای ج لپاره د تسلي د خپل حبیب ﷺ وایي:

وَإِن يُكَذِّبُوكَ فَقَدْ كَذَّبَ الَّذِينَ مِن قَبْلِهِمْ ۚ

او که تکذیب وکړي کفار د مکې ستا یعني چې ته رسول الله نه یې.

**پوه سه:** چې جزاء د شرط محذوف ده په قرینه د مابعد آیت ای لاتهتم بتکذیبک واصبر علی اذاهم کما صبر من قبلک من الانبیاء، گفته اند: صبر اگرچه تلخست لکن بر شیرین دارد، والعاقبة للمتقین بشارت شیرین دارد.

جَاءَتْهُمْ رُسُلُهُم بِالْبَيِّنَاتِ وَبِالزُّبُرِ وَبِالْكِتَابِ الْمُنِيرِ ﴿٢٥﴾

چې راتګ کړی ؤ دوی ته رسولانو ددوی دا جمله حال ده له فاعل څخه د کذب

په تقدير د قد كما هو القانون النحوي في الماضي الواقع حالاً "بالبينٰت" په ښکاره معجزاتو سره چې دلالت پر صدق ددوی يې کاوه په دعوه کې د نبوت "وبالزبر" جمع د زبور ده يعني صحيفه لکه صحف د ابراهيم؈، او په کتاب روښانه سره لکه تورات د موسیٰ؈ او انجيل د عيسیٰ؈.

**سوال:** هر رسول خو زبر او کتاب منير نه درلودی؟

**ځواب:** نعم! دلته مراد تفصيل او تقسيم دی المعلوم لکل احد.

ثُمَّ اَخَذْتُ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا فَكَيْفَ كَانَ نَكِيْرِ ﴿۲۶﴾

ثم لپاره د تراخي دی يعني وروسته تر کلو کلو د جريان د تبليغاتو د رسولانو ما ونيول هغه کسان چې کفر ته يې دوام ورکړی ؤ.

**پوه سه:** چې کسره د راء عوض او دال پر ياء محذوفه ده والاصل نکيري ؤ، نو څرنګه ؤ زما انکار پر دوی بنزول العذاب پر دوی، استفهام لپاره د تقرير دی ای هو اقع موقعه اللائق بهم.

اَلَمْ تَرَ اَنَّ اللّٰهَ اَنْزَلَ مِنَ السَّمَآءِ مَآءً ۚ فَاَخْرَجْنَا بِهٖ ثَمَرٰتٍ مُّخْتَلِفًا اَلْوَانُهَا ۭ وَمِنَ الْجِبَالِ جُدَدٌ

ته نه وينې ايها المخاطب الغير المعين چې خدای ج نازل کړي دي له اسمان څخه اوبه چې باران دی "فاخرجنا" نو را ايستلي دي موږ (فيه التفات من الغيبة الى التكلم) په هغو ابو سره ميوې چې مختلف رنګونه د هغو ميوو دي.

**فائده:** الوان که څه هم جمع د لون ده لکن مراد ځني عام معنی ده ای اجناسها، مثلاً انګور يو جنس دی، خورما بل جنس دی وهکذا واصنافها لکه سپين کشمش، نعل، کلمک، آيته وغيرها د انګورو صنفونه دي، او برني خومرا او عجوه خورما وغيرهما صنفونه د خورما دي وهكذا كل جنس من اجناس الثمرات لها اصناف وانواع، يا يې رنګ جلا وي، تور، سپين، سور، ژړ، شين او نور رنګونه د ميوو.

**پوه سه:** چې اولاً جدد جمع د جدة ده په معنی د طريقې، او ابو الفضل وايي چې جدة په لارو کې هغې لارې ته وايي چې رنګ يې له رنګ څخه د نژدې لارې مخالف وي، دی وايي ومنه جدة الحمار لخط الذي في وسط ظهر الحمار والوحش.

وثانيًا: حمل د جدد پر جبال نه دی صحيح لان الجبال ليس نفس الطريق، نو بعض مفسرين ذو ورسره محذوف بولي ای ذو جدد، او بعض يې حمل مبالغةً بولي.

ثالثًا: من الجبال جدد جمله اسميه ده حال ده له فاعل څخه د اخرجنا ای اخرجنا حال كون من الجبال جدد، نو اتيتک والشمس طالعة، والمعنى په غرو كې لارې او ليكې سته.

بِيضٌ وَحُمْرٌ مُّخْتَلِفٌ أَلْوَانُهَا وَغَرَابِيبُ سُودٌ ۝٢٧

"بيض و حمر" جمع د ابيض او د احمر ده، سپين او سور چې رنګونه سره مختلف وي په شدة او ضعف سره، او غټې د برې دي چې تكې تورې دي، عطف دی پر بيض، والتقدير جدد بيض وحمر وسود غرابيب نو غرابيب تاكيد دی د سود چې مضمر دی او وروسته بيان دی محذوف، ولي غرابيب خو تاكيد دی، تاكيد خو بايد تر مؤكد وروسته وي، نو دا مذكور سود مؤكد نه دی بلكې بيان د مؤكد دی.

وَمِنَ النَّاسِ وَالدَّوَابِّ وَالْأَنْعَامِ مُخْتَلِفٌ أَلْوَانُهُ

"ومن الناس" عطف دی على ومن الجبال، او د خلكو څخه او د ما يدب على الارض يعني پر مځكه چې حركت كوي هر حيوان چې دا معنى د دابة ده او انعام چې اوښان، غواګې، پسونه او بزوګانې يعني د انسانانو او د دوابو او د انعامو رنګونه هم سره مخالف دي چې دوه شخصه د هرې نوع څخه چې وي په يوه رنګ چې هيڅ تفاوت دې نه وي نه پيدا كېږي.

**سوال:** د الوانه ضمير يې مذكر راوړی په دې سبب چې راجع وبعض ته دی چې معنى من ده په من الناس كې.

كَذَٰلِكَ ۗ إِنَّمَا يَخْشَى اللَّهَ مِنْ عِبَادِهِ الْعُلَمَاءُ ۗ

"كذالک" صفت د مصدر محذوف دی ای اختلافًا مثل اختلاف الثمار والجبال.

**يوه سه:** چې دا آيت تكملة د هغه آيت انما تنذر الذين ربهم بالغيب په دې معنى تكمله ده چې تعيين د من يخشاه ﷻ من الناس په دې آيت كې كوي يعني انما يخشاه ج بالغيب هغه كسان چې علم لري پر خدای ج په صفات جميله ؤ سره او په صفاتو جليله ؤ سره او په افعال محكمه ؤ سره د خدای ج كما مر نبذ منها من ابتداء السورة الى ههنا.

**درویش وايي**: چي په دې آيت کي له علماء څخه رسمي په صرف نامه د عالم نه دی مراد، بلکې هغه علماء کامل چي اثار د خشية پکښې ظاهر وي او عامل په خپل علم سره وي ... ع: نه هر که سر بتراشد قلندری داند

اکثر د تنی زماني علماء طلاب الدنیا دي علم واسطه د زکوة او صدقه وغیره ته گرځوي، او قال و حال یې سره برابر نه وي ... بیت:

واعظان که این جلوه در منبر و محراب میکنند
چـون بخلوت میروند کاری دیگران میکنند

حافظ شیرازي رحمه الله وايي:

بر زبانت یا صمد پیدا و در دل یاصنم .. ای بباطن کافر ظاهر مسلمانی چه سود

**بوه سه**: چي قرائت متواتره د دې آيت په نصب سره د اسم جليل دی بناءً على انه مفعول يخشى او په رفع سره د العلماء بناء على انه فاعل يخشى، لكن مع هذا عمر بن عبدالعزيز وابن سيرين، او بعض علماء يې نسبت و امام الائمة ابو حنيفة رحمه الله ته هم کړی دی (وعندي تلك النسبة ليست مطابقة لروات قرائته والله اعلم)

**البته**: که يو وخت امام ابو حنيفة رحمه الله دا قرائت پر وجه د جواز ویلی وي امکان لري، يعني په رفع د اسم جليل بناءً على انه فاعل يخشى او په نصب د العلماء بناءً على انه مفعول يخشى، لكن په مخکې بيان سوي ترجمه د يخشى نه ده مراد، بلکې عبدالله بن عمرو رضي الله عنه ترجمه د يخشى په يختار سره کړې ده ای انما يختار الله من عباده العلماء، وهذا معنى صحيح، او روح البيان وايي چي خشيت استعاره د تعظيم فالمعنى انما يعظمهم (اى العلماء) الله من جميع عباده انتهى.

**درویش وايي**: وفي قلبي من هذا المعنى اضطراب والله اعلم بالصواب.

**بوه سه**: چي څوک چي فکر ووهي په خلق کي د خدای ج کما مر بيانه من اول السورة الى ههنا واستدل به على ذاته وصفاته وافعاله والائه هم العلماء حقًا وهم المرادون في هذه الآية لا كعلماء اليهود والنصارى، ولي که څه علم درلودی لکن دوی تجاهل اختيار کړی ؤ لاجل حفظ رياستهم على عوامهم وحفظ ماكلهم، شيخ اجل عارف کامل شهاب الدين السهروردي رحمه الله وايي چي په دې آيت دليل دی پر دې چي من لا خشية له فليس بعالم. حاصل د دې آيت دا دی چي کمال خشية د خدای ج څخه خاصه د انبياء عليهم الصلوة والسلام ده ثم الاولياء الكمل رحمهم الله ثم الامثل فالامثل.

إِنَّ اللَّهَ عَزِيزٌ غَفُورٌ ﴿٢٨﴾

په تحقیق خدای[۳۴] غالب دی څوک مانع دده د مشیت نسي کېدای او بخښونکی د ګنهو دی د بندګانو بتوبةٍ یقینًا بلا وجوب علیه وبدون التوبة احتمالاً لکمال الرحمة.

إِنَّ الَّذِينَ يَتْلُونَ كِتَٰبَ اللَّهِ

په تحقیق هغه کسان چي دائمًا کتاب الله وایي.

**فائده:** فقیر قید د دائمًا وواېه له دې سببه چي یتلون مضارع ده پر استمرار دلالت کوي په ځای کي د مدح کما ههنا یا په مقام کي د ذم کما في قوله تعالی ویقولون (ای الکفار) متی هذا الوعد (ای وعد نزول العذاب) ان کنتم صادقین.

**پوه سه:** چي له تلاوت څخه مراد تلاوت مجرده نه دی بلکې تلاوت مع العمل بما فیه، ولي چي په دې آیت کي یتلون عنوان ددوی د مدح وګرځېدی عنوان د مدح تلاوت مع العمل دی وبس، او یا مراد جنس کتب الله کالتورات والانجیل وغیرهما، نو په دې کي مدح د علماء د تورات مع العمل دی وبس، او یا مراد جنس کتب الله کالتورات والانجیل وغیرهما، نو په دې کي مدح د علماء د تورات او انجیل دی چي تحریف د خپلو یې نه وکړی.

**پوه سه:** چي له یتلون څخه مراد علماء د قرآن دي لا القراء المجردین عن فهم معانیه.

وَأَقَامُوا الصَّلَوٰةَ

"واقاموا الصلوة" او دوام پر لمونځو کوي سره د مراعات د حقوق د لمانځه کتعدیل الارکان چي د ډېرو عوامو په لمونځو چي یوازي یې ګذاري د تعدیل الارکان هیڅ نمونه نه وي پکښې هم دغه یعني مراعات معنی د اقامة الصلوة چي په قرآن مبارک کي ذکر کېږي که په صیغه د فعل ماضي وي کما ههنا او یا په لفظ مضارع وي لکه و یقیمون الصلوة په بل ځای کي د قرآن یا په صیغه د اسم فاعل له بابه د افعال لکه والمقیمین الصلوة الآیة، او یو مجرد دی یعني قیام الصلوة هغه عام مطلق اداء ته د لمانځه وایي ځکه قیام په ټوله قرآن کي یو ځای په حال کي د منافقانو ذکر سوی دی، کریمه: واذا قاموا الی الصلوة قاموا کسالی الی اخیر الآیة.

وَأَنفَقُوا مِمَّا رَزَقْنَاهُمْ سِرًّا وَعَلَانِيَةً يَرْجُونَ تِجَارَةً لَّن تَبُورَ ﴿٢٩﴾

او دوی انفاق کوي د هغو اموالو څخه چي دوی ته په رزق ورکړي دي په پټه او په علانیه یعني ښکاره، یعني څرنګه چي پر لاس ورغلی که سر وي او که علن وي، او بعض مفسرین وایي چي سر په نفلي انفاقو کي افضل لانه ابعد من الریاء والعلانیة په فرضي انفاق چي زکوة دی افضل دی تاچي بل غني به هم اقتداء پسي وکړي او دی به تهمت د بخل بالزکات خلاص سي "یرجون تجارة لن تبور" دی امید کوي د پیدا کولو د ثواب في الانفاق چي هرګز نه هلاکیږي او دا تجارت یې د خسران سره نه مخامخ کیږي "یرجون" خبر د ان دی، لن تبور صفت د تجارت دی.

لِيُوَفِّيَهُمْ أُجُورَهُمْ وَيَزِيدَهُم مِّن فَضْلِهِ ۚ إِنَّهُ غَفُورٌ شَكُورٌ ﴿٣٠﴾

"لیوفیهم" متعلق دی په لن تبور پوري، والمعنی یرجون تجارة نافعة لیوفیهم بانفاقها "اجورهم" یعني ثواب اعمالهم.

**درویش وایي:** چي که څه هم مظهري قوله تعالی لیوفیهم یوازي په انفاق المال کرځول ده لکن د فقیر په نېز په ټولو عبادات مذکوره في هذه الآیة پوري مربوط ده یعني من قوله تعالی ان الذین یتلون کتاب الله الی قوله لیوفیهم کما لایخفی علی اللبیب الفاضل "ویزیدهم من فضله" او خدای ﷻ ورزیاتوي له فضل څخه زائد تر اجور د اعمالو ددوی یعني بالحسنة الواحدة عشرة امثالها الی سبعمائة الی ما لایتناهي.

**درویش وایي:** چي له ابن مسعود رضی الله عنه څخه په صحیح سند روایت راغلی دی په تفسیر کي د دې آیت قال قال رسول الله ﷺ یوفیهم اجورهم یدخلهم الجنة ویزیدهم من فضله الشفاعة لمن وجب له النار (ای بسبب العصیان دون الکفر، لان الکافر لاشفاعة له بالاجماع) "انه غفور شکور" خدای پاک بخښونکی دی د بعض نواقصو په بعض عبداتو کي او شکور دی ددوی د طاعاتو و قال ابن عباس رضی الله عنه غفور یغفر العضیم من ذنوبهم ویشکر القلیل من اعمالهم ای یجازي هم علیه.

وَالَّذِي أَوْحَيْنَا إِلَيْكَ مِنَ الْكِتَابِ هُوَ الْحَقُّ مُصَدِّقًا لِّمَا بَيْنَ يَدَيْهِ ۗ

هغه چي وحي کړي دي وتاته یا محمد ﷺ یعني من القرآن الکریم، نو کلمه د

من لپاره د بیان ده یا د جنس یا د تبعیض ده "هو الحق" ثابت من جانب الله دی "مصدقًا لمابین یدیه" تصدیق کونکی دی د ټوله ماتقدمه من الکتب السماویة.

**پوه سه:** چي مصدقًا حال مؤکدة دی لان حقیة القرآن یستلزم موافقة سائر الکتب الالهیة في العقائد والقصص والاخبار واصول الاحکام.

إِنَّ اللَّهَ بِعِبَادِهِ لَخَبِيرٌ بَصِيرٌ ﴿۳۱﴾

په تحقیق خدای ج په خپلو بندګانو خبر دی او دانا دی ای عالم بظواهرها و بوطنها، نتیجه یې داده چي خدای ج په دې هم خبر دی چي په تاکي یا محمد ﷺ استعداد کامل د قبول د وحي موجود دی، نو ځکه یې تاته کتاب معجز درواستاوه.

ثُمَّ أَوْرَثْنَا الْكِتَابَ الَّذِينَ اصْطَفَيْنَا مِنْ عِبَادِنَا

**پوه سه:** چي ارث دې ته وایي چي یو شی نقل سي له یو چا څخه و بل ته بېله شراء او بېله هبه او هغه بل سړی مالک وګرځي په سبب د قرابت بینهما، ومعنی الآیة موږ نقل کړی دغه کتاب چي قرآن دی له تا څخه یا محمد ﷺ، یعني د میراث اصلي معنی چي بیان سوه مراد نه ده بلکې مراد نقل دی، "الذین اصطفینا من عبادنا" هغه کسان چي مختار کړي وموږ ته زموږ په بندګانو کي.

**پوه سه:** چي کلمه د من بیان ده موصول ظرف مستقر ده حال د ضمیر منصوب څخه ای کائنین من عبادنا او اضافت د عبادو د خپل ځان لپاره د تشریف ده او عائد و موصول محذوف دی ای الذین اطفیناهم (دا هغه عائد محذوف دی) من عبادنا، والمراد بالموصول علماء امة محمد ﷺ من الصحابة والتابعین رح ومن بعدهم الی یوم القیامة، او یا مراد ټوله امت دی من الخواص والعوام کذا قال ابن عباس رض، ومعنا اصطفائهم ان الله اصطفیناهم علی سائر الامم وجعل امته امتًا وسطًا لیکونوا شهداء علی الناس، او بل کرامت یې دادی چي ددوی نسبت کړي و سید الانبیاء ﷺ ته کما قال الشاعر:

طوبیٰ لنا معشر الاسلام ان لنا .... من العنایة رکنا غیر منهدم
لـما دعـا الله داعینا لطاعته .... باکرم الرسل کنا اکرم الامم

فَمِنْهُمْ ظَالِمٌ لِّنَفْسِهِ

**پوهه**: چي ضمير د منهم راجع دی و موصول سابق ته او فاء لپاره د تفصيل ده، والمراد بالظالم لنفسه من قصر في العمل بالكتاب واسرف على نفسه او پر هغه چا هم صادق دی چي ظلم پر بل وکړي لانه بذالک ظالم لنفسه.

**فائده**: ظلم که څه هم متعدي بنفسه دی لکن لپاره د تقوية العمل يې لام ور سره راوړی.

وَمِنْهُمْ مُّقْتَصِدٌ وَمِنْهُمْ سَابِقٌ بِالْخَيْرَاتِ بِإِذْنِ اللَّهِ

او بعض ميانه رو دي يعني کاهي عمل بالقرآن کوي او کاهي مخالفت کوي، او بعض د دوی متقدم وي و ثواب ته د خدای ج وجنته په سبب د اعمال صالحه ؤ، او بعض مفسرين يې داسي ترجمه کوي چي سابق پر ظالم لنفسه او پر مقتصد يې په درجاتو کي په سبب د خير د کارو "باذن الله" يعني په توفيق د خدای ج.

**پوهه**: چي باذن الله يې د دې لپاره وو ايه چي د دې رتبې ته رسېدل صعب دی بې توفيقه نسي کېدای.

**پوهه**: چي تفسيرو ته د دې درو ډلو د امت د عليه الصلوة والسلام بما ذکرنا اشاره کوي کلام د الحسن رح کما روی عنه الظالم لنفسه من خفت حسناته والمقصد من استوت حسناته وسيئاته والسابق من رجحت و کثرت حسناته.

**درويش وايي**: چي د دغو درو طائفو ښځي ډېر تفسيرونه سته، ان شئت فارجع الى روح المعاني، البغوي رح د ابی عثمان الهندي رح څخه روايت کړی دی قال سمعت عمر بن الخطاب رض قال قال رسول الله ﷺ سابقنا سابق (ای الى الجنة بغير حساب) ومقتصدنا ناج (له عذابه خلاص دي) وظالمنا مغفور له، البغوي رح په خپل سند سره له ابی ثابت رض څخه روايت کړی دی چي يو ناولده سړی مسجد نبوي ته داخل سو او داسي دعاء يې وکړه اللهم ارحم غربتي (ته وکړې زما پر غربت يعني ناولدتيا) وآنس وحشتي (او دفع کړې زما وحشت) وسق الي جليسًا صالحًا) ماته راولېږ يو سړی چي راسره کښېني چي صالح هم وي يعني چي زما وحشت او ديغت په دفع سي) نو ابو الدرداء رض ورته وويل: ان کنت صادقًا لانا اسعد بک منک، رسول الله ﷺ دغه آيت تلاوت وکړی: منهم ظالم الآية، فقال ع اما السابق فيدخل الجنة بلا حساب واما

المقتصد فيحاسب حسابًا يسرًا واما الظالم لنفسه په يو مقام کي د حساب يې بند کړی تر وخته پورې چې دته هم (دقت او غم) پيښ سي ثم يدخله الجنة ثم قرء هذه الآية الحمد لله الذي اذهب عنا الحزن ان ربنا لغفور شكور) او په بل روايت د احمد او د ابن جرير وغيرهما داسي راغلی دی، فاما الذين ظلموا فاؤلئک يحسبون (يعني عن دخول الجنة) وطول المحشر (په اوږدو کي د محشر د ورځي وروسته خدای[۴] تلافي ددوی په رحمت سره يعني اجازه د دخول د جنت ورکړي فهم الذين يقولون الحمد لله الذي اذهب عنا الحزن ان ربنا لغفور شكور.

**درويش وايي:** چي له دې حديث څخه دا معلومه سوه چي د الذين ظلموا څخه عصات المؤمنين مراد دي، د ابو موسیٰ الاشعري رض روايت دی قال قال رسول الله ﷺ يبعث العباد يوم القيامة ثم يميز العلماء (بيا علماء ځني جلا کړي، نو خدای ﷻ دوی ته ووايي) ای دلي د علماؤ اني لم اضع علمي فيكم (ما نهٔ ايښی علم چي زما صفت دی په تاسي کي) الا لعلمي بكم (مگر هغه وخت چي زه په تاسي خبروم، يعني تاسي وظيفه د علم ساتلای سئ) او ما خپل علم تاسي ته نهٔ دركړی چي تاسي په عذاب کړم يعني دوږخ درکړم، انطلقوا فقد غفرت (ځئ جنت ته ما تاسي بخښلي ياست) اللهم اجعلني منهم برحمته.

## ذٰلِكَ هُوَ الْفَضْلُ الْكَبِيْرُ ﴿۳۲﴾

دا توريث يا اصطفا چي په دمخه آيتو کي ذکر سوه فضل دی لوی، يعني د رب[۳] له خوا څخه پر امت مرحومه د نبي چي بالمؤمنين رؤف رحيم ﷺ كما وصفه بذالک في القرآن العزيز، کريمه: لقد جائكم رسول من انفسكم الى قوله بالمؤمنين رؤف رحيم.

## جَنّٰتُ عَدْنٍ يَّدْخُلُوْنَهَا يُحَلَّوْنَ فِيْهَا مِنْ اَسَاوِرَ مِنْ ذَهَبٍ وَّلُؤْلُؤًا ۚ

جنتونه دي د اوسېدو (خبر د مبتداء محذوفي دی ای هو يعني الفضل الكبير جنت عدن يا مبتداء او خبر يې محذوف دی، والتقدير جنات عدن لهم (هذا هو الخبر المحذوف) "يدخلونها" دوی دا خلېږي وهغو جنتو ته، دا جمله صفت ده د جنات عدن "يحلون فيها" دوی ته زېور ورکول کېږي په جنتو کي، دا جمله صفت بعد صفت ده يا خبر بعد الخبر ده، د جنات يا جمله مستانفه ده استينافًا

نحويًا، ويحتمل الاستيناف البياني ايضًا فتامل جدًا.

**پوه سه:** چي اساور جمع د اسورة ده او هغه د سوار چي په پښتو یې بنګړي بولي او په فارسي يې دست برنجن او په اردو يې کنګهن بولي "من ذهب" د سرو زرو او د ملغلرو.

**پوه سه:** چي لؤلؤا په نصب سره عطف پر محل د اساور لا على لفظه او محلاً خو اساور منصوب مفعول دی د يحلون، حاصل دادی چي یو بنګړی به د سرو زرو وربه لاس کړل سي او په اصطلاح د پښتنو لاس بندی به يې د ملغلرو وي.

## وَلِبَاسُهُمْ فِيهَا حَرِيرٌ

او کالي د دوی به په جنت کي له وریښمو څخه جوړه کپړه يې بولي په اردو، لته يې بولي په پښتو، دا جمله عطف ده پر يحلون او على جنات عدن يا حال ده له فاعل څخه د يحلون، عن ابي سعيد الخدري ؓ ان النبي ﷺ تلا قوله تعالى جنات عدن يدخلونها ترپايه پوري، نو يې وويل: ان عليهم اى اهل الجنة التيجان (جمع تاج چي خلګ يې پر سر ايږدي) چي هغه ادنى ملغلره يې روښانه کوي ما بين المشرق والمغرب، رواه الترمذي، قال القرطبي قال المفسرون ليس احد من اهل الجنة الا في يده ثلاثة اسورة، سوار من فضة وسوار من الذهب وسوار من لؤلؤ، وعن ابی هريرة ؓ ان رسول الله ﷺ قال يبلغ الحلية من المؤمن حيث يبلغ الوضوء (له دي حلية څخه مراد والله اعلم سپين والى د مخ، د لاسو، د پښو تر هغه ځايه چي متوضي تر هغه ځايه په اودا سه کي پرېولي وي) متفق عليه.

وعن عمر ؓ قال قال رسول الله ﷺ من لبس الحرير (يعني من الرجال ولي ښځو ته لبس الحرير روا دی) في الدنيا لم يلبث في الآخرة، متفق عليه، وعن حذيفة ؓ قال سمعت رسول الله ﷺ لاتلبسوا الحرير ولا الديباج ولاتشربوا في آنية الذهب والفضة ولا تاكلوا في صحافها (الضمير راجع الى الفضة لان الرائج في الكفرة صحاف الفضة) فانها لهم (اى الكفرة في الدنيا ولكم في الآخرة، متفق عليه)

## وَقَالُوا الْحَمْدُ لِلَّهِ الَّذِي أَذْهَبَ عَنَّا الْحَزَنَ

او وايي به جنتيان يعني ټول كما يدل عليه الاحاديث حمد دي وي خدای ﷻ له هغه خدای ﷻ چي زموږ څخه دفع کړي حزن يعني غم.

**درويش وايي:** چي ددې آيت ويل هلته دوی کوي چي له قبرو څخه راووځي؛ لحديث ابن عمر رض قال قال رسول الله ﷺ ليس على اهل لا اله الا الله وحشة في الموت ولا في القبور ولا في النشور كاني انظر اليهم (لکه زه چي دوی ته گورم) عند النفخة (اى نفخة اسرافيل الثانية) ينفضون رؤسهم من التراب (چي دوی پاکوي سرونه خپل د قبر له خاورو څخه) يقولون الحمد لله الذي اذهب عنا الحزن، وقال ابن عباس رض حزن النار (ولي چي ملکي پر دوی زيری کوي په وخت د راوتلو له قبرو څخه بان لاخوف عليكم ولا انتم تحزنون) او قتاده رح وايي حزن الموت، وقال عكرمة رض خوف الذنوب خوف رد الطاعات، وقيل او داټوله روايات مربوط دي په بشارت پوري د ملکو فافهم.

**إِنَّ رَبَّنَا لَغَفُورٌ شَكُورٌ ۝ الَّذِي أَحَلَّنَا دَارَ الْمُقَامَةِ مِن فَضْلِهِ**

بېشکه رب زموږ يعني غفور دی د هغه کسانو چي ظلم يې پر خپلو ځانو کاوه او شكور للمقتصدين والسابقين، چي موږ به داخل کړه و سرای ته د اوسېدو چي جنت دی.

**پوه سه:** چي مقامة مصدر ميمي دی ای دار الاقامة "من فضله" ای من احسانه وكرمه اذ لا واجب على الله شيئ، د عبدالله بن ابی اوفیٰ او په صحيح روايت ثابته ده، دی وايي چي يو سړی و عليه الصلوة والسلام ته راغلی وه يې ويل يا رسول الله ﷺ ان النوم مما يقر الله به اعيننا في الدنيا (يعني په خوب زموږ سترګي خدای خونګي کوي، کنايه ده له راحت څخه په دې دنيا کي) فهل في الجنة من نوم؟ قال لا، ان النوم شريک الموت (يعني لکه په مرګ چي حواس ټوله بېکاره کېږي، او د سړي يو منبه او احساس سلبېږي داغه رنګه په خوب کي هم) وليس في الجنة موت، هغه سړي ورته وويل فما راحتهم نو راحت د جنتيانو په څه شي کي دی؟ دا خبره د سائل عليه الصلوة والسلام ته ډېره غټه خبره معلومه سوه، يعني له سببه د فهم د سائل چي د آخرت او جنت حال يې پر دنيا قياس کړی، نو ځکه يې ورته وويل ليس فيها لغوب كل امرهم راحة كما قال الله حكاية عن اهل الجنة.

**لَا يَمَسُّنَا فِيهَا نَصَبٌ وَلَا يَمَسُّنَا فِيهَا لُغُوبٌ ۝**

موږ ته نه رسېږي په جنت کي د صرف مس په توګه ستړيا، او موږ نه مسه کوي په جنت کي چي ضعف ته د تعب وايي.

**درويش وايي:** چي په جنت کي چي نه تعب او نه کلال سته چي راحت ته څه

ضرورت پیدا سي لکه هغه سړي چي د علیه الصلوة والسلام څخه پوښتنه وکړه فما راحتهم، ولي چي دا خو داسي لغوه پوښتنه ده لکه یو سړی چي د بل سړي څخه پوښتنه وکړي چي د خوشحالۍ په حالت کي خوشحالي په څه شي سره ده.

وَالَّذِينَ كَفَرُوا لَهُمْ نَارُ جَهَنَّمَ لَا يُقْضَىٰ عَلَيْهِمْ فَيَمُوتُوا

او هغه کسان چي د کفر لاره يې خپله کړې وي دوی لره دی اور د دوږخ یعني ابدًا، والذین آه عطف ده پر ثم اورثناه آه. قضا او حکم د مړیني نه پر کېږي یعني د رب العزة له خوا چي دوي دي مړه سي یعني د اور له سوځېدلو څخه به بېغمه سوي وای، بخاري او مسلم روایت کړی دی له ابن عمر څخه قال قال رسول الله ﷺ اذا صار اهل الجنة الجنة چي ولاړ سي اهل جنت و جنت ته و اهل النار الی النار جيئ بالموت، مرګ راولي او په منځ کي د جنت او دوږخ يې ودروي او ذبح يې کړي وروسته منادي ناري کړي یا اهل الجنة لاموت ويا اهل النار لاموت فيزداد اهل الجنة فرحًا یعني بالخلود في الجنة الی فرحهم یعني د مخه هم خوشاله وه په نداء يې نوره خوشالي زیاته سي، ويزداد اهل النار حزنًا علی حزنهم یعني د دوږخیانو غم زیات سي، ولي د تايید في النار نداء يې واورېدل.

**پوښتنه:** موت خو معنی د جسم نه دی یعني د حیوان په شکل چي ذبح دي سي؟

**ځواب:** نعم! منم چي موت معنی د حیوان نه دی لکن د دې حدیث شریف معنی داده والله اعلم چي خدای يې په شکل د یو غټ پسه راولي کما جاء في حديث اخر للبخاري او د کبش په صورت په موت سره يې معرفي کړی و جنتیانو ته او د دوږخیانو او ذبح يې کړي یعني هغه منادی يې ذبح کړي دا کار صرف د ډېري خوشالۍ د مؤمنانو او د غم د کافرانو د غم ډېرېدو لپاره.

وَلَا يُخَفَّفُ عَنْهُم مِّنْ عَذَابِهَا ۚ كَذَٰلِكَ نَجْزِي كُلَّ كَفُورٍ ﴿٣٦﴾

او نه سپکول کېږي له دوی څخه بعض له عذاب څخه د اور بلکي كلما نضجت جلودهم بدلوا بجلود غيرها ليذوقوا العذاب الآية، داغه رنګه موږ جزاء ورکوو یعني مثل الجزاء المذکور موږ جزاء ورکوو هر کافر بالله ته.

**سوال:** کفور خو صیغه د مبالغې ده نو آیا معنی يې داده چي د ډېر سخت کافر

دغه جزاء ده يعني چي كفر يې كمزوري وي لكه كفر د مشركانو چي سخت دی تر كفر د يهودانو او د يهودانو نظر و كفر ته د مشركانو كمزوري هغه ته مذكوره عذاب او جزاء نشته؟

**ځواب:** يا دا يې معنی نه ده بلكې كفر په لغت كي ناشكری ته وايي، نو كافران ټوله مع تفاوت درجات كفرهم سخت او ډېر ناشكره دي، ولي چي ټولو د منعم حقيقي ﷻ شكر نه وكړی، نو كفار ټوله په ناشكری اعظم درجة دي تر هغه چا چي د منعم مجازي شكر نه كړي اداء كه يو سړی چي د يو سړي سره ښه وكړي يعني يو نعمت وركړي او هغه يې شكر نه كړی اداء.

**وَهُمْ يَصْطَرِخُونَ فِيهَا رَبَّنَا أَخْرِجْنَا نَعْمَلْ صَالِحًا غَيْرَ الَّذِي كُنَّا نَعْمَلُ**

او دوی بغاري او چغي په شدت سره وهي په اور كي لكه چي معنی د صراخ ده، دا جمله عطف ده پر ولهم نار جهنم يا حال ده له ضمير مجرور څخه په لهم كي "ربنا اخرجنا" بحذف حرف النداء يعني يا ربنا موږ وباسه يعني له اور څخه موږ عمل صالح كوو يعني ايمان به راوړو او د ايمان په مقتضٰى به ښه عملونه كوو.

**پوه سه:** چي ددوی مراد خروج دی و دنيا ته كما جاء صراحة في موضع آخر "غير الذي كنا نعمل".

**پوه سه:** چي غير الذي بدل دی د عملاً صالحًا څخه، روح المعاني وايي چي ربنا الی اخيره منصوب وي په اضمار د قول يعني و يقولون په عطف پر يصطرخون باندي، او يا بېله واو يعني يقولون چي تفسير سي د ماقبل.

**فائده:** دوی چي تقييد د عمل صالح په دې سره وكړي چي غير الذي كنا نعمل لپاره د اعتراف په دې سره چي هغه موږ چي عمل صالح باله په دنيا كي يعني الشرك والكفر هغه خو نن ناصالح ثابت سو، نو چي بيرته موږ دنيا ته رد كړي موږ به غير د هغه عمل وكړو يعني ايمان به راوړو، او يا دا خبره ددوی اظهار د تحسر او ندامت دی پر ما فعلوا في الدنيا لكن دا ندامت او تحسر فائده نه كوي دوی ته سعدي شيرازي رحمه الله وايي:

تو پيش از عقوبت دری عفو كوب .... كه سودی نه دارد فغان زير چوب

ولهذا قال الله ﷻ في جوابهم:

**أَوَلَمْ نُعَمِّرْكُم مَّا يَتَذَكَّرُ فِيهِ مَن تَذَكَّرَ وَجَاءَكُمُ النَّذِيرُ**

**فائده:** الهمزة للانكار دخلت على حرف النفي، ونفي النفي اثبات يعني دغومره عمر مي درکړی ؤ، والواو للعطف على مقدار تقديره الم نترکم في دار التکليف ولم يعمرکم ما يتذکر اى عمرًا يتذکر چي پند واخلئ په هغه عمر کي من تذکر چي مؤمنان ځندي مراد دی يعني تاسي کافرانو ته مي دغومره عمر درکړی ؤ په دنيا کي لکه مؤمنانو ته چي مي ورکړی ؤ هغو پند واخستی او ايمان يې راوړی او تاسي تر پايه پوري پر شرک او کفر باندي داده واست، البغوي رح وايي چي قتاده، عطاء او کلبي رح وايي چي عمر د تذکر اتلس کاله دی، او حسن رح وايي عمر د تذکر څلوېښت کاله دی او ابن عباس رض وايي چي عمر د تذکر شپېته کاله دی او د علي رض څخه هم شپېته کاله مروي دی، لحديث ابى هريرة رض عن النبي ﷺ قال اعذر الله الى امرئى اخر اجله حتى بلغ (۶۰) سنة، رواه البخاري، او له ابن عباس رض څخه روايت دی ان النبي ﷺ قال اذا کان يوم القيامة قيل اين ابناء الستين وهو العمر الذي قال الله تعالى اولم نعمرکم مايتذکر فيه من تذکر.

**پوه سه:** چي معنى د حديث چي انفًا تېر سو اعذر الله الى امرء اخر اجله حتى بلغ ستين سنة سلب الله کل عذر لکل امرئي اخر اجله حتى بلغ (۶۰) سنة، ولي چي د عليه الصلوة والسلام د امتيانو عمرونه غالبًا کم دي، لما رواه الترمذي عن ابى هريرة رض وابو يعلى في مسنده عن انس رض کلاهما عن النبي ﷺ قال اعمار امتي مابين ستين الى سبعين واقلهم من يجوز ذالک.

**درويش وايي:** چي د اقل له جملي څخه يو زه يم چي عمر مي اوس په اووه نيوي (۹۷) کاله کي داخل دی والله اعلم اى وقت يجئ اجلي.

**مسئله:** بعد البلوغ في دار الاسلام هيڅ عذر معقول چا لره نسته په ترک کي د فرائضو من الصلوة والصوم خصوصًا الايمان بالله، نو د هغه کافر عذر دفع دی چي زه خو کما قال رسول الله ﷺ و شپېتو کالو ته نه يم رسېدلی "وجائکم النذير" او تاسي ته درغلی ؤ بېرونکی د يوم الحساب او يوم العقاب څخه يعني د هغه د قول قبلونه مو نه وکړه والمراد بالنذير محمد ﷺ پر قول د ابن ابى حاتم او ابن جرير عن زيد رح وهو قول اکثر المفسرين رح، وقيل المراد بالنذير القرآن، ددې قولينو معنى داده چي نذير

محمد ﷺ او قرآن دي ددې امت لپاره وغيرهما من الانبياء والكتب لغير هذه الامة،
وقيل چي مراد له نذير څخه عقل سالم دی يعني چي باوله نه وي، او دا رايه د بعض
متكلمينو ده چي مجرد عقل كافي دی لوجوب الايمان بالله حتى چي دوی وايي چي
هغه سړی كافر دی چي په لويو غرونو كي اوسېږي چي عاقل سي بلوغ ته ورسېږي ولم
يبلغه دعوة نبي، د تحفه نصائح هم دغه مذهب مختار دی حيث يقول:

گر انبياء هم نامـدی نی شرع بودی درجهان
واجب شدی برهمه گان ايمان به خالق مقتدر

وقال عكرمه وسفيان بن عيينة و وكيع رح المراد بالنذير الشيب يعني سپين
ږيرتوب، له ابن عباس رض څخه روايت دی الشيب بريد الموت، وقيل النذير موت
الاقارب والاقران (يعني همزولي)

فَذُوقُوا فَمَا لِلظَّٰلِمِينَ مِن نَّصِيرٍ ۝٣٧

نو وڅكئ اى العذاب، نو نسته د ظالمانو لپاره كوم مرسته كونكی، من زائد
دی لپاره د استغراق د نفي، يعني نسته ظالمانو يعني كافرانو لره هيڅ كومكي.

إِنَّ ٱللَّهَ عَٰلِمُ غَيْبِ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضِ ۚ إِنَّهُۥ عَلِيمٌۢ بِذَاتِ ٱلصُّدُورِ ۝٣٨

خدای ج خبر دی په پټو شيانو د اسمانو لكه ملكي صورها ومقرها ووظيفتها او
په غيب سره د مځكي من الخزائن والمعادن يعني لايخفى على الله شيئ، په تحقيق
خدای ج خبر دی په هغه شي سره چي په زړو كي دی، نو چي په اخفى من الكل يعني ما
في الصدور چي خبر دی نو په نورو شيانو په طريق اولی خبر دی يو محقق وايي:

ازخـلائق روحهای پاک هست .... روحهائ شره اگل ناک هست
واجبست اظهار اين ملک وپناه .... همـچنان اظهار گندم هازکاه

**فائده:** مراد له غيب څخه غيب دی د بشر او د ملكو او د جن څخه والا فليس
مصداق الغيب في علمه تعالى، والمراد من هذه الآية انه لايخفى على الله، خافيه
دا جمله مستانفه ده، وروسته آيت ددې جملې.

هُوَ ٱلَّذِى جَعَلَكُمْ خَلَٰٓئِفَ فِى ٱلْأَرْضِ

خدای ج هغه ذات مقتدر دی چي تاسي يعني عمومي انسانان بعض خليفه گان

د نورو کړ ځولي دي، نو پر دې تقدير مخاطب په ضمير د کم تېوله انسانان دي، او يا معنی داده چي امت د يو نبي خليفه يعني وروسته امت د بل نبي پيدا کړي ياست تاچي د مخني امت څخه وروستني امت پند واخلي..... بيت:

پند گير از مصائب ديگران..... تا نگيرند ديگران ز تو پند

**بوه سه:** چي خلائف جمع د خليفه ده او خلفاء جمع د خليف ده ولا فرق في المعنی فافهم.

**فَمَنْ كَفَرَ فَعَلَيْهِ كُفْرُهُ ۖ وَلَا يَزِيدُ الْكَافِرِينَ كُفْرُهُمْ عِنْدَ رَبِّهِمْ إِلَّا مَقْتًا ۖ**

که چا کفر وکړی ستاسي څخه پر هغه د هغه د کفر عذاب دی او نه زياتوي کافرانو ته کفر د دوی يعني هر څو چي دوام پر کفر کوي په دربار کي د رب د دوی مگر غضب شديد.

**وَلَا يَزِيدُ الْكَافِرِينَ كُفْرُهُمْ إِلَّا خَسَارًا ﴿٣٩﴾**

او نه زياتوي کافرانو ته کفر د دوی مگر نه تاوان يعني په آخرت کي.

**سوال:** لفظ د الکافرين يې د مقتًا سره هم راوړی او د خسارًا سره هم، يعني داسي نه وويل سول ولايزيد الکافرين کفرهم الا مقتًا وخسارًا مع انه اخصر؟

**ځواب:** اشاره ودې ته ده چي کفر مقتضي د هر يوه د مقت او خسار دی استقلالاً يعني يو د بل تبع نه دي، نو بايد عاقل له کفر څخه ډېر اجتناب وکړي.

**قُلْ أَرَأَيْتُمْ شُرَكَاءَكُمُ الَّذِينَ تَدْعُونَ مِنْ دُونِ اللَّهِ**

ووايه يا محمد (ﷺ) و کفارو ته د مکې تاسي خبر راکړئ ستاسي د شريکانو چي تاسي يې عبادت کوئ ماسوی له خدای ج څخه يعني چي دا بتان زموږ مستحق د عبادت دي من دون الله.

**فائده:** اضافت د شرکاؤ يې و دوی ته وکړی له دې کبله چي دوی شرکاء د خدای ج بولي يعني شرکاء يعني بتان خو دعوی د شراکت نه لري بلکي دغه بتان به په ورځ د قيامت ستاسي څخه بېزاري ښکاره کړي.

**أَرُونِي مَاذَا خَلَقُوا مِنَ الْأَرْضِ أَمْ لَهُمْ شِرْكٌ فِي السَّمَاوَاتِ**

"اروني" تاکيد د اول دی لانه بمعنی اخبروني، څه شي دوی پيدا کړي دي (مفعول ثان دی من ارئيتم محمول دی پر شرکاء چي مفعول اول دی) "من الارض"

اى من اجزاء الارض من الارض بيان دى د ما يعني استقلالاً ستاسي بتانو څه شى پيدا کړي دي اجزاء د مځکي حتى چي تاسي دعوى د استحقاق د عبادت کوئ.

**بوه سه:** چي ام منقطعه دى په معنى د بل للانتقال و الهمزة للاستفهام.

**بوه سه:** چي بل لپاره د اضراب او انتقال د خلق د بعض اجزاء د مځکي استقلالاً او همزه يې لپاره د استفهام له شراکت څخه د بتانو په خلق د اسمانو حتى يستحقون دعوى الوهيتهم لان الا له لابد انيکون خالقا لشئ ما استقلالاً او شريکا لله تعالى في خلق شيئ ما وليس في اصنامکم شيئ من ذالک فدعوى الوهيتهم باطل و کذب بواح.

اَمْ اٰتَيْنٰهُمْ كِتٰبًا فَهُمْ عَلٰى بَيِّنَتٍ مِّنْهُ

''ام'' بل ء ''آتيناهم'' مقاتل ؒ وايي ء اعطينا کفار مکة ''کتاباً'' يعني چي په هغه کتاب کي ددوى شرکاء وي ''فهم'' جواب د شرط محذوف دى يعني ان کان الامر کذالک که په کتاب کي ددوى شرکاء موجود وي، نو کفار مکة ''على بينة'' اى کائبون على بينة يعني على حجة واضحة ''منه'' د هغه کتاب څخه.

**بوه سه:** چي ام په دې آيت کي هم منقطعه دى په معنى د بل للاضراب او همزه لپاره د استفهام انکاري دى.

بَلْ اِنْ يَّعِدُ الظّٰلِمُوْنَ بَعْضُهُمْ بَعْضًا اِلَّا غُرُوْرًا ۝

بلکې وعده نه کوي بعض ظالمان يعني مشرکان د بعض نورو سره مګر غرور يعني غولول يعني په ناحقه خطايستل، والحاصل انه ليس عندهم علم على شرکهم او نه کتاب سته چي دوى په هغه سره دليل ووايي بلکې غاية الامر ددوى دا دى چي مشران ددوى چي اسلاف ددوى وه خپل اتباع ته د درواغو وعدې ورکوي بېله کوم سنده او دوى ته وايي هؤلاء شفعائنا عند الله يا ورته وايي چي زموږ تېر سوي نيکه ګان تر موږ هوښياران وه هغو د دغو خدايانو عبادت کاوه لکه ښېنتانه چي يو غلط شى رواجه وي وايي: څه دي کول چي پلار و نيکه دي کول.

اِنَّ اللّٰهَ يُمْسِكُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ اَنْ تَزُوْلَا

په تحقيق خداى ؓ منع کړي په خپل قدرت کامله سره اسمانونه او مځکه چي له خپل ځاى څخه زائل سي، په دليل ددې چي ممکن شى لکه په ابتداء کي چي موجد

محتاجه دي په حال کي د بقاء. هم لابد له من علة تحفظه يا معنی د ان تزولا داده کراهة ان تزولا او لئلا تزولا ومآل الکل واحد.

**وَلَئِنْ زَالَتَآ إِنْ أَمْسَكَهُمَا مِنْ أَحَدٍ مِّنْ بَعْدِهٖ ۚ إِنَّهٗ كَانَ حَلِيمًا غَفُورًا**

روح المعاني يې داسي ترجمه کړې ده ای ان اشرفتا علی الزوال (که دوی نژدې سي و زوال ته علی سبيل الفرض والتقدير، او بعض مفسران يې داسي ترجمه کوي لزالتا وذالک اشارة الی مايقع يوم القيامة من طی السموات، کريمه: يوم تطوی السماء کطی السجيل للکتب، الآية ونسف الجبال، او مظهري رح يې داسي ترجمه کړې ده ای ان لم يوجد من الله سبحانه افاضت الوجود آه، وهذا ليس بشيئ لان الکلام في الزوال بعد اضافة الوجود کما يدل عليه السياق.

**فائده:** کلمه د لام په لئن کي موطئه ده قسم ده "ان امسکهما" نسي منع کولای اسمانونه او مځکه يعني له زوال څخه.

"من بعده" ای بعد الله ای سواه او بعد الزوال يعني ضمير راجع دی و مصدر ته د زالتا "انه کان حليمًا غفورًا" يعني په سبب د حلم يې کفارو ته مهلت ورکړی دی ولم يستعجل في عقوبتهم وبغفرانه غفر المسلمين معاصيهم ولو لا امهاله وغفرانه لم يمسک السموات والارض فيسقط السماء عليهم وينخسف الارض بهم ای بالمسلمين په سبب د گنهو ددوی.

**پوه سه:** چي ابن ابی حاتم له ابن ابی هلال رض څخه روايت کړی دی چي ماته رسېدلې ده دا خبره چي قريش به د مخه تر بعثت د رسول الله ﷺ ويل: که خدای موږ ته نبي را استولی وای زموږ له قوم څخه نه به وای يو امت له امتو څخه ډېر فرمانبرداره د خدای ﷻ يعني د امر او نهي د خدای. او نه به وای يو امت د امتو اورېدونکی او قبلونکی د خپل تر موږ يعني د خپل قوم د نبي به مو هره خبره اورېدلای او په ميدان د عمل به مو پياده کولای. او نه به هيڅ تمسک په خپل کتاب ډېر وای زموږ تر تمسک، نو خدای ﷻ دا آيت نازل کړی.

**وَأَقْسَمُوا بِاللَّهِ جَهْدَ أَيْمَانِهِمْ**

او دوی يعني قريش المفهوم مما سبق قسم اخستی و.

**پوه سه**: چې جهد ايمانهم مفعول مطلق د اقسموا ولې چې قسم او يمين سره يو شی دي نحو قعدت جلوسًا ای اقسموا اقسامًا بليغة، او بغوي رح ددئ آيت شان نزول داسې بيان کړی دی چې قريشو ته دا خبره ورسېدل قبل مبعث النبي ﷺ ان اهل الکتاب کذبوا رسلهم فقالوا لعل الله اليهود والنصاری اتت رسلهم بالبينات ای المعجزات فاقسموا. فقير وايي اول شان نزول مفصل دی د بغوي رح تر شان نزول.

## لَئِنْ جَآءَهُمْ نَذِيْرٌ لَّيَكُوْنُنَّ اَهْدٰى مِنْ اِحْدَى الْاُمَمِ

لام موطئه د قسم دی که چېرې موږ ته راغلی وای يېرونکی له عذاب څخه د خدای ج يعنې رسول، حتمًا به موږ وای پره پر لوی هدايت.

**پوه سه**: چې ليکونن ځواب د قسم محذوف لفظًا او جواب د شرط هم دی معنی وهو کثير في القرآن العزيز "من احدی الامم" يعنې د مخه تر امتو، ددوی مطلب دا ؤ چې که هر څوک له امم سابقهؤ څخه پر هدايت وي موږ به تر هغو اهدی وای.

**سوال**: ضمير د اقسموا خو و قريشو ته راجع دی کمامر، نو قريش خو داسې نه وه ويلي جائهم او داسې يې هم نه وه ويلي ليکونن بلکې هغو داسې ويلي وه لئن جائنا نذير لاکونن يعنې په ضمير د متکلم نه ضمير د غائب؟

**ځواب**: نعم! لکن خدای ج حکايت د قول ددوی وکړی بالمعنی فافهم.

**پوه سه**: چې احدٰی په معنی د واحدة ده، نو سوال دا پيدا کېږي چې دوی فقط تر يوه امت ځان اهدی باله واجاب عنه السيد الآلوسي رح بقوله والظاهر انها (ای واحدة) عامة وان کانت نکرة في الاثبات (يعنې قانون خو دادی چې نکره په نفي کې عامېږي نه په اثبات کې) لاقتضاء المقام العموم (يعنې فخر د قريشو په خپلو ځانو دلالت کوي پر عموم يعنې تر هر واحدة امت)

## فَلَمَّا جَآءَهُمْ نَذِيْرٌ مَّا زَادَهُمْ اِلَّا نُفُوْرَا ۙ

نو چې راغلی مکې والو ته (هغه مکې وال چې تاسي ددوی قسمونه واورېدل) يېرونکی د خدای ﷻ له خوا څخه چې ددوی د شرط سره برابر هم ؤ چې دوی به ويل کمامر چې قريش به وي يعنې محمدًا ﷺ، نه کړه زيات راتګ د هغه دوی مګر نه نفرت او لېرېوالی له حق څخه چې ايمان دی.

اسْتِكْبَارًا فِي الْأَرْضِ وَمَكْرَ السَّيِّئِ ۚ

كبرًا عن الايمان في ارض مكة.

**یوه سه:** چي استکبارًا بدل دی د نفورًا څخه او یا یې مفعول له دی یا یې حال دی ''ومکر السيئ'' ای العمل القبيح چي د هغه نبي ﷺ په باره کي کفارو د مکې په دار الندوة کي غونډه وکړه ان یثبتوه (یا به یې بندي کوو په یوه خونه کي) او یخرجوه (یا به یې له مکې څخه وباسو) یا به یې قتل کړو، او کلبي رح وایي چي مکر السيئ د دوی اجتماع وه پر شرک او ثبات پر شرک.

**فائده:** اصل الکلام ومکروا المکر السيئ وروسته فعل یې حذف کړی.

وَلَا يَحِيقُ الْمَكْرُ السَّيِّئُ إِلَّا بِأَهْلِهِ ۚ

او احاطه او حلول نه کوي مکر پر مکر سيئ هغه چا چي د مکر سيئ د عذاب اهل او مستحق وي، وهم کفار قریش چي په بدر کي یې پر دوی احاطه وکړه چي (٧٠) کسه یې په میدان جنګ کي ووژل سول او (٧٠) ژوندي بندیان سول، او باقي یې د هزیمت په طور د مکې پر خوا وتښتېدل، وقال ابن عباس رض لایحیق عاقبة الشرک الا بمن اشرک یعني وبال شرکهم راجع الیهم.

فَهَلْ يَنظُرُونَ إِلَّا سُنَّتَ الْأَوَّلِينَ ۚ فَلَن تَجِدَ لِسُنَّتِ اللَّهِ تَبْدِيلًا ۖ

دوی یعني اهل مکه انتظار نه وي مګر سنت او طریقت ته د خدای ج په اولینو کفارو کي چي هغه سنت استیصال ؤ، نسي پیدا کولای سنت لره د خدای ج تبدیلي یعني سنت الله لاتبدل ولا یتغیر فلم یبق لاهل مکة الا من سنة العذاب سنة بلکې د دوی څخه یې واخسته د فتح د مکې په کال.

وَلَن تَجِدَ لِسُنَّتِ اللَّهِ تَحْوِيلًا ﴿٤٣﴾

بان ینقله من المکذبین الی زعمهم.

أَوَلَمْ يَسِيرُوا فِي الْأَرْضِ فَيَنظُرُوا كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الَّذِينَ مِن قَبْلِهِمْ

او اهل مکه سیر او سفر نه کوي په مځکه کي چي وګوري چي څرنګه حال او اخیر کار د هغو چي تر کفار مکه د مخه اباد وه، والمعنی کفار مکه چي شام، عراق او یمن ته سفر کوئ اثار د ماضيينو کفار و ویني لکه آثار د قوم لوط او د ثمود او عادیانو ویني.

**پوه سه:** چي فينظروا مجزوم دى په لم سره عطفًا على يسير.

وَكَانُوٓا اَشَدَّ مِنْهُمْ قُوَّةً ؕ

"وكانوا آه" حال دى په تقدير د قد كما هو القانون في الفعل الماضي الواقع حالا، او وه هغه كفار ماضيه سخت تر تر اهل مكه "فوق" په قوت كي ومع ذالك قد اهلكهم الله ولم يغن عنهم قوتهم واموالهم شيئًا، نو ولى دا اهل مكة لايعتبرون بذالك.

وَمَا كَانَ اللّٰهُ لِيُعْجِزَهٗ مِنْ شَيْءٍ فِي السَّمٰوٰتِ وَلَا فِي الْاَرْضِ ؕ

او نه دى خداى ج عاجزه د يو شي يعني دده له عذاب څخه دي فوت سي، نه په اسمانو كي او نه په مځكه كي، دا دواړه ظرف مستقر دي صفت د شيئ دي اى كائنًا ذالك الشيئ في السمٰوٰت آه.

**پوه سه:** چي كلمه د من زائده ده او شيئ مرفوع محلاً دى فاعل د يعجز دى.

اِنَّهٗ كَانَ عَلِيْمًا قَدِيْرًا ﴿۴۴﴾

په تحقيق سره دى خداى ج خبر په ټولو شيانو وبما يستحقها او قادر دى پر هر شي چي اراده ورته وكړي.

**پوه سه:** چي تر دې ځايه خداى پاك بيان كړى حال د اهل مكه چي كفر ددوى متقضٰى د استيصال ددوى ؤ كماهو سنت الله فيمن كانوا قبلهم وقد كانوا اشد منهم قوة په دې وروسته آيت كي خداى ﷻ سبب د امهال د دوى بيانوي.

وَلَوْ يُؤَاخِذُ اللّٰهُ النَّاسَ بِمَا كَسَبُوْا مَا تَرَكَ عَلٰى ظَهْرِهَا مِنْ دَآبَّةٍ

كه چېري خداى ج ونسي خلگ يعني په سبب د كفر او معاصيو، نو بې نه واى پرې ايښې پر شا د مځكي يوه دابة.

**سوال:** كفر او معاصي خو د انسانانو څخه صادرېږي او دواب خو عام دى لان معناها كل ما يدب على الارض، نو د نورو دوابو د عدم ترک على ظهر الارض سبب څه دى، ولي چي نور دواب خو مكلف نه دي؟

**خواب:** مقصود بالذات د مځكي په پيدا اينښت انسانان او نور ټوله دواب تبع ددوى دي يعني د انسانانو چي متبوع ولاړى له ظهر څخه د مځكي نو تابع به يې هم ورسره ځي، او مظهري رح وايي چي له دابې څخه دابة عاصيه مراد ده چي انسانان دي لا مطلق الدواب والله اعلم.

وَلٰكِنْ يُّؤَخِّرُهُمْ اِلٰٓى اَجَلٍ مُّسَمًّى ۚ

لکن ځنډوي خدای ج مواخذه ددوی په عذاب سره تر يو اجل مسمٰی او معين وخت پورې، ددوی مواخذه چې يا ما بعد الموت دی يا ورځ د قيامت ده.

فَاِذَا جَآءَ اَجَلُهُمْ فَاِنَّ اللّٰهَ كَانَ بِعِبَادِهٖ بَصِيْرًا ﴿۴۵﴾

هغه وخت چې راسي اجل د مواخذه ددوی نو خدای ج دي په بندګانو سره خپل دانا او خبر فيجازيهم علی حسب اعمالهم الحسنة والسيئة.

**درويش وايي:** الحمد لله والمنة تفسير د سورة الملائکة چې په مشهور نامه سورة فاطر دی، د تفسير ايوبي پر اته بجې د ورځې د يکشنبې پر نهه د رمضان المبارک سنه (۱۴۳۱) هـ پای ته ورسېدی، وصلی الله تعالی علی سيدنا محمد وعلی آله واصحابه اجمعين بصد نياز او عجز التجاء بدرګاه قاضي الحاجات:

خدايه ستا د نعمتو د کلياتو حساب او تعداد عاصي ته نه دی معلوم فضلاً عن جزئياتها، او درويش اوس په دې طمعه دی چې زما عمره سره د صحت او عافيت دومره را زيات کړه چې د تفسير د باقي اجزاؤ څخه د قرآن عزيز هم فارغ سم، يعني په توفيق ستا تفسير ايوبي پايه تکميل ته ورسېږي، زما د عمر د سرمايې ګټه به هم همدغه تفسير وي، انک يا الله علی کل شيئ قدير وبالاجابة جدير ...... ع: ... من نيز حاضر ميشوم تفسير قرآن در بغل

**له ناظرينو څخه خواست:** څرنګه چې د سورة فاطر وروسته سورت يٰسٓ شريف شروع کېږي نو چونکه سورة يٰسٓ لږ په دوه ويشتم جزء کي دی او نور په درويشتم جزء کي دی، نو ځکه مونږ د سورت يٰسٓ ... ځای کېدو په خاطر پنځلسم جلد تفسير له سورت يٰسٓ څخه شروع کړی تاچي سورت يٰسٓ مکمل په يوه جلد کي راسي، تاچي د ويونکو لپاره اساني وي، سبب د اساني دادی چې د تفسير ايوبي ويونکی د سورت يٰسٓ په زده کړه کي څورلسم او پنځلسم جلد ته محتاج ونه ګرځي بلکې د پنځلسم جزء په ويلو سره د څورلسم جزء څخه مستغني وي.

تمت الجزء ۲۲ بالخير

# د تفسير ايوبي څوارلسم ټوک د مضامينو فهرست

تفسیر ایوبي حنفي۱۴ ټوک

د نصیراحمد احمدي لخوا

سکین او pdf سو.

تاریخ. ۲۲-۱۰-۱۳۹۸

واتساپ 0749849569

د دعا محتاج احمدي!

د سرور کائنات فخر موجودات سردار کل عالم حضرت محمد مصطفیٰ ﷺ او د هغه د اصحاب کرامو ﷺ د مکمل تاریخ او ژوندانه په اره د حضرت مولانا شیخ الحدیث محمد یوسف بن محمد الیاس الکاندهلوي رحمة الله تعالی علیهما په زړه پوري مکمل او مدلل کتاب په خوږه کندهاري پښتو سره چهاپ سوی دی، د شائقینو لپاره تحفه بې بها ده

# حياة الصحابة

تأليف

محمد يوسف بن محمد الياس الكاندهلوي

تحقيق

وليد بن محمد بن سلامة

پښتو ژباړه

فضل الحق حقاني
غفرله ربه الباري

الناشر

مكتبة القراءة والتجويد
کاسي روډ کوټه بلوچستان

د حکیم الامت حضرت مولانا محمد اشرف علي تهانوي رحمه الله په زړه پوره او هر دل عزیز کتاب بهشتي زېور، خوږه کندهاري پښتو ژبه د اداري له خوا چهاپ ته تیار دی، له ټېر وتنو څخه پاک او په ښه خط سره لیکل سوی، ډېر ژر به شائقینو ته وړاندي سي ان شاء الله تعالی.

# بهشتي زېور

مکمل مدلل

ښه کاغذ، ښه چهاپ، ښه جلد

پښتو ژباړه

فضل الحق حقاني
غفرله ربه الباري

الناشر

مكتبة القرآة والتجويد
کاسي روډ کوټه بلوچستان

تفسیر ایوبي حنفي د نصیراحمد احمدي لخوا سکین اوpdf سو.